Bawar.net

بسم الله الرحمن الرحيم

# صفوة التفاسير

پښتو

تأليف

## محمد علي الصابوني

په مکه مکرمه کښې د پاچا عبدالعزيز پوهنتون
د شرعياتو او اسلامي زده کړو استاذ

ژباړونکې

مولوي شمس الله کمال زاده

المكتبة المعروفية
کوئټه لاهور پاکستان

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net

# صفوة التفاسير

## دريم ټوک

د قرآن کريم هغه تفسير چې د مأثور او معقول ټولګه او له خورا معتبرو تفسيرونو ټخه لکه: طبري، کشاف، قرطبي، اُلوسي، ابن کثير، بحر محيط او نورو ټخه يې غور چاڼ شوي او په روانو او نويو اسلوبو چې بيان او لغوي ارخونو ته پکښې پاملرنه شوي ليکل شوي دي۔

مؤلف


**محمد علي الصابوني**

په مکه مکرمه کښې د پاچا عبدالعزيز پوهنتون
د شرعياتو او اسلامي زده کړو استاذ


ژباړونکي:


**مولوي شمس الله کمال زاده**





المكتبة المعروفية

(کوئٹہ) کاسی روڈ شالدرہ کوئٹہ پاکستان

(لاہور) بادیہ حلیمہ سنٹر غزنی سٹریٹ اردو بازار لاہور

:03337907394-03353132868

Ph:03159807152-03337907398

E-mail:maktabamaroofia786@gmail.com

http://www.facebook.com/maktabamarofia


Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net

دچاپ ټول حقوق له مکتبه معروفیه سره محفوظ دي

# دکتاب پیژندنه


دکتاب نوم: ---------- پښتو صفوه التفاسير

تاليف: ---------- الشيخ محمد علي الصابوني رحمه الله

پښتو ژباړه: ---------- مولوي شمس الله کمال زاده

دکمپوزچاري: ---------- مرحوم انجنير عبدالله ګل (ريان) اوزياته برخه مولوي عبد البصير

خپرونکي اداره: ---------- المکتبة المعروفية (کوئټه) (لاهور)

دچاپ شمېر: ---------- ۸۰۰ ټوکه

دچاپ کال: ---------- ۱۴۴۰ هجري قمري دمحرم الحرام مياشت

دکتاب ترلاسه کولو پته ---------- المکتبة المعروفية (کوئټه) (لاهور)


منبر الواسع صابر




المکتبة المعروفية

(کوئټه) کاسي روډ شالدره کوئټه پاکستان

(لاهور) هاديه حليمه سنټر غزني سټريټ اردو بازار لاهور

:03337907394-03353132868

Ph:03159807152-03337907398

E-mail:maktabamaroofia786@gmail.com

http://www.facebook.com/maktabamarofia


Scanned by CamScanner

Scanned with CamScanner

Bawar.net



## الله تعالى فرمايي:

يَعۡتَذِرُونَ إِلَيۡكُمۡ إِذَا رَجَعۡتُمۡ إِلَيۡهِمۡۚ قُل لَّا تَعۡتَذِرُواْ لَن نُّؤۡمِنَ لَكُمۡ قَدۡ نَبَّأَنَا ٱللَّهُ مِنۡ أَخۡبَارِكُمۡۚ
وَسَيَرَى ٱللَّهُ عَمَلَكُمۡ وَرَسُولُهُۥ ثُمَّ تُرَدُّونَ إِلَىٰ عَٰلِمِ ٱلۡغَيۡبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمۡ تَعۡمَلُونَ ﴿٩٤﴾
سَيَحۡلِفُونَ بِٱللَّهِ لَكُمۡ إِذَا ٱنقَلَبۡتُمۡ إِلَيۡهِمۡ لِتُعۡرِضُواْ عَنۡهُمۡۖ فَأَعۡرِضُواْ عَنۡهُمۡۖ إِنَّهُمۡ رِجۡسٞۖ وَمَأۡوَىٰهُمۡ جَهَنَّمُ جَزَآءَۢ بِمَا
كَانُواْ يَكۡسِبُونَ ﴿٩٥﴾ يَحۡلِفُونَ لَكُمۡ لِتَرۡضَوۡاْ عَنۡهُمۡۖ فَإِن تَرۡضَوۡاْ عَنۡهُمۡ فَإِنَّ ٱللَّهَ لَا يَرۡضَىٰ عَنِ ٱلۡقَوۡمِ
ٱلۡفَٰسِقِينَ ﴿٩٦﴾ ٱلۡأَعۡرَابُ أَشَدُّ كُفۡرٗا وَنِفَاقٗا وَأَجۡدَرُ أَلَّا يَعۡلَمُواْ حُدُودَ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِۦۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ
حَكِيمٞ ﴿٩٧﴾ وَمِنَ ٱلۡأَعۡرَابِ مَن يَتَّخِذُ مَا يُنفِقُ مَغۡرَمٗا وَيَتَرَبَّصُ بِكُمُ ٱلدَّوَآئِرَۚ عَلَيۡهِمۡ دَآئِرَةُ ٱلسَّوۡءِۗ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٞ
﴿٩٨﴾ وَمِنَ ٱلۡأَعۡرَابِ مَن يُؤۡمِنُ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ وَيَتَّخِذُ مَا يُنفِقُ قُرُبَٰتٍ عِندَ ٱللَّهِ وَصَلَوَٰتِ ٱلرَّسُولِۚ
أَلَآ إِنَّهَا قُرۡبَةٞ لَّهُمۡۚ سَيُدۡخِلُهُمُ ٱللَّهُ فِي رَحۡمَتِهِۦٓۚ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴿٩٩﴾ وَٱلسَّٰبِقُونَ ٱلۡأَوَّلُونَ مِنَ ٱلۡمُهَٰجِرِينَ
وَٱلۡأَنصَارِ وَٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُوهُم بِإِحۡسَٰنٖ رَّضِيَ ٱللَّهُ عَنۡهُمۡ وَرَضُواْ عَنۡهُ وَأَعَدَّ لَهُمۡ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي تَحۡتَهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ
خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدٗاۚ ذَٰلِكَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ ﴿١٠٠﴾ وَمِمَّنۡ حَوۡلَكُم مِّنَ ٱلۡأَعۡرَابِ مُنَٰفِقُونَۖ وَمِنۡ أَهۡلِ ٱلۡمَدِينَةِ مَرَدُواْ عَلَى
ٱلنِّفَاقِ لَا تَعۡلَمُهُمۡۖ نَحۡنُ نَعۡلَمُهُمۡۚ سَنُعَذِّبُهُم مَّرَّتَيۡنِ ثُمَّ يُرَدُّونَ إِلَىٰ عَذَابٍ عَظِيمٖ ﴿١٠١﴾ وَءَاخَرُونَ ٱعۡتَرَفُواْ بِذُنُوبِهِمۡ
خَلَطُواْ عَمَلٗا صَٰلِحٗا وَءَاخَرَ سَيِّئًا عَسَى ٱللَّهُ أَن يَتُوبَ عَلَيۡهِمۡۚ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٌ ﴿١٠٢﴾ خُذۡ مِنۡ أَمۡوَٰلِهِمۡ صَدَقَةٗ تُطَهِّرُهُمۡ
وَتُزَكِّيهِم بِهَا وَصَلِّ عَلَيۡهِمۡۖ إِنَّ صَلَوٰتَكَ سَكَنٞ لَّهُمۡۗ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١٠٣﴾ أَلَمۡ يَعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ هُوَ يَقۡبَلُ ٱلتَّوۡبَةَ عَنۡ عِبَادِهِۦ
وَيَأۡخُذُ ٱلصَّدَقَٰتِ وَأَنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلتَّوَّابُ ٱلرَّحِيمُ ﴿١٠٤﴾ وَقُلِ ٱعۡمَلُواْ فَسَيَرَى ٱللَّهُ عَمَلَكُمۡ وَرَسُولُهُۥ وَٱلۡمُؤۡمِنُونَۖ وَسَتُرَدُّونَ
إِلَىٰ عَٰلِمِ ٱلۡغَيۡبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمۡ تَعۡمَلُونَ ﴿١٠٥﴾ وَءَاخَرُونَ مُرۡجَوۡنَ لِأَمۡرِ ٱللَّهِ إِمَّا يُعَذِّبُهُمۡ وَإِمَّا يَتُوبُ عَلَيۡهِمۡۗ
وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٞ ﴿١٠٦﴾ وَٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُواْ مَسۡجِدٗا ضِرَارٗا وَكُفۡرٗا وَتَفۡرِيقَۢا بَيۡنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ وَإِرۡصَادٗا لِّمَنۡ
حَارَبَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ مِن قَبۡلُۚ وَلَيَحۡلِفُنَّ إِنۡ أَرَدۡنَآ إِلَّا ٱلۡحُسۡنَىٰۖ وَٱللَّهُ يَشۡهَدُ إِنَّهُمۡ لَكَٰذِبُونَ ﴿١٠٧﴾ لَا تَقُمۡ فِيهِ أَبَدٗاۚ
لَّمَسۡجِدٌ أُسِّسَ عَلَى ٱلتَّقۡوَىٰ مِنۡ أَوَّلِ يَوۡمٍ أَحَقُّ أَن تَقُومَ فِيهِۚ فِيهِ رِجَالٞ يُحِبُّونَ أَن يَتَطَهَّرُواْۚ وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلۡمُطَّهِّرِينَ
﴿١٠٨﴾ أَفَمَنۡ أَسَّسَ بُنۡيَٰنَهُۥ عَلَىٰ تَقۡوَىٰ مِنَ ٱللَّهِ وَرِضۡوَٰنٍ خَيۡرٌ أَم مَّنۡ أَسَّسَ بُنۡيَٰنَهُۥ عَلَىٰ شَفَا جُرُفٍ هَارٖ
فَٱنۡهَارَ بِهِۦ فِي نَارِ جَهَنَّمَۗ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٠٩﴾ لَا يَزَالُ بُنۡيَٰنُهُمُ ٱلَّذِي بَنَوۡاْ رِيبَةٗ فِي قُلُوبِهِمۡ إِلَّآ أَن
تَقَطَّعَ قُلُوبُهُمۡۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿١١٠﴾ [التوبة: ٩٤ – ١١٠]

## مناسبت اوتړاو:

آيتونه لاهماغسي له منافقانوغږيږي هغوى چي له جهادڅخه پاتي شول اوبيا وروسته يې په دروغو عذرونوكي قسمونه خوړل لكه چي پدې آيتونوكي الله پاك دضرار مسجديادونه كوي هغه چي منافقانوغوښتل

Scanned by CamScanner

Bawar.net



دمسلمانانو په ضد به هلته دسيسې جوړوي اودغه به ددوى خاله وي نوالله جل جلاله خپل نبي ته وفرمايل چي هلته لمونځ ونه ګوذارې ځکه دهغه بنسټ په تقوى ندى اېښودل شوى بلکه داهل شقاق اونفاق مرکز اودمسلمانانو دتيت پرک کولولپاره دپلانونو جوړولو تالاردى اوپه ضرار مسجد باندي مشهورشو.

## لغتونه:

(انقلبتم ) راوګرزېدې ( رجس) پلېدي اوهرناولي شي ته ويل کېږي ( ومأواهم) جوهري وايې چي مأوى هغه ځاى ته چي ورته رجوع کېږي وايه شي هغه که په ورځ کي اوکه په شپه کي ( الأعراب) داعرابي جمع اودلغت پوهان وايې چي کله وويل شي (رجل عربى ) داهغه عربي سړي ته وايې چي جمع يې عرب راځي اوکه وويل شوچي ( رجل أعرابى) نودابياهغه کوچي ته وايې چي دباران اوربدلو په ځړځايونوکي اوسېږي هغه که پخپله عرب وي اوکه موالي وي نوځوک چي په عربي کليوکي ځاى په ځاى وي دوى ته عرب وايې اوځوک چي په صحرا کي هستوګن وي هغوى ته أعراب وايې ([1]) (أجدر) وړ اولائق ( مغرما) تاوان اوخسران اصل يې له غرام څخه اخيستل شوى اوهغه دشي لزوم ته وايې ([2]) ( مردوا) ثبات اواستقرار يې وکړ دکلمې اصل له نرمي اوتجرد څخه اخيستل شويدى اوله دغه ډلي څخه داهم دي چي وايې: (رملة مرداء) هغه شګي چي وابنه پکي نه زرغونېږي او داترکيب چي ( غصن امرد ) هغه ښاخ چي پاڼي ورباندي نه وي اوداسي لکه: ( غلام أمرد) هغه زلموټى چي ږېره يې نه وي راټوکېدلي (مرجون) له( ارجاء )څخه اخيستل شوي او تأخير ته وايې ځکه هم يوه ډله خلګ مرجئه بلل کېږي چي دوى عمل مؤخرکړى دى ( ضرار) دضرر رسولو څخه اوپه حديث شريف کي راځي: ( لاضرر ولاضرار) ([3]) ( ارصاد) څار اوانتظارته وايې ( شفا) څنډي اوڅوکي ته وايې ويل کېږي ( أشفى على كذا ) يعني دفلاني کارڅنډي ته ورنږدې شو ( جرف) هغه څه ختې چي سېلابونه يې له ځانه سره لېږدوي اوپه څنډو ځوکو دويالو يې اچوي اصل يې له (جرف ) څخه اخيستل شوى اوهغه يوڅيزله بېخه ايستلوته وايې ( هار) لوېدونکى اواصل يې ( هائر) وو.

## دنزول سبب:

روايت کېږي چي ( ابوعامرراهب ) ([4]) په جاهليت کي نصراني شوى اوراهب جوړشوى وو کله چي رسول الله صلى الله عليه وسلم مبعوث شو ده سخته دښمني ورسره پيداکړه ځکه چي رياست يې په خطرکي ولوېدو نويې وويل: هرڅوک چي له تاسره جنګېږي زه به دهغوملګرى يم اوله تاسره به جنګېږم نو رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه ابوعامرفاسق ونوماوو کله چي په حنين کي هوازن مات شول نو هغه شام ته لاړ اومنافقينو ته يې خواب را واستاوو چي پخپل ټول توان سره په وسله اوقوت تيارشئ اوزمالپاره دالته مسجدودان کړئ زه قيصرته ورځم اودروم لښکري به راولم محمداواصحاب به يې له ښاره وباسم ، نودوى دقباد مسجد خواکي ورته مسجدآبادکړ اورسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغلل او ورته ويل يې موږ دمعذورو خلګولپاره مسجد جوړکړى چي ناروغان اويا په باراني شپه کي اړکسان پکي لمونځ وګذاري زموږ داخوښه ده چي ته ( دافتتاح په دود ) پکي لمونځ اداکړې نو رسول الله صلى الله عليه وسلم اراده وکړه چي ورشي اودبهرته وتلو جامې يې وغوښتې چي پدې مهال قرآن کريمورباندي نازل شو او د ضرار مسجد حال اوددوى قصدېې ورته روښانه کړ نورسول الله صلى الله عليه

---

([1]) الرازي ١٢ / ١٢٥

([2]) القرطبي ٨ / ٢٣٤

([3]) رواه الدارقطني.

([4]) دغه دحضرت حنظلة رضى الله عنه پلاردى هغه مشهور صحابي چي پرښتو غسل ورکړ.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وسلم ځني اصحابان راوغوښتل ورته يې وويل: ولاړشئ ددغه ظالمانومسجد وسوځوئ نوهغه ورغلل او ويې وسوځاوو وران يې کړ خلګ يې تيت اوپرک شول او دغه آيتونه نازل شول چي: ﴿ وَٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُواْ مَسۡجِدٗا ضِرَارٗا ﴾ (التوبه ۱۰۷) دآيتونوترپايه(۱)

تفسير:

﴿ يَعۡتَذِرُونَ إِلَيۡكُمۡ إِذَا رَجَعۡتُمۡ إِلَيۡهِمۡ ﴾ عذرونه به کوي دغه (منافقين) تاسي ته (دبيرته پاتي کېدلو له غزانه) کله چي تاسي بيرته (له تبوکه) راوګرزئ دوی ته (له سفراوجهادنه) ﴿ قُل لَّا تَعۡتَذِرُواْ لَن نُّؤۡمِنَ لَكُمۡ ﴾ ورته ووايه (اې محمده!) مه کوئ داعذرونه له سره به باور ونکړو موږ (ستاسي په خبرو) ﴿ قَدۡ نَبَّأَنَا ٱللَّهُ مِنۡ أَخۡبَارِكُمۡۚ ﴾ په تحقيق خبرکړي يو الله موږ ستاسي له احوالوځخه (اوپه هغه چي په زړه کي موپليتي اونفاق خوندي دی) ﴿ وَسَيَرَى ٱللَّهُ عَمَلَكُمۡ وَرَسُولُهُۥ ﴾ اوژربه ويني الله اورسول ددغه الله عمل ستاسي (په راتلونکي کي چي آياتاسوله نفاقه توبه ګارکېږئ اوکه درباندي استقامت کوئ؟) ﴿ ثُمَّ تُرَدُّونَ إِلَىٰ عَٰلِمِ ٱلۡغَيۡبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ ﴾ بيابه بيرته بوتلی شي تاسي (په قيامت کي) هغه عالم دپټواوښکاره وو (الله) ته (چي هيڅ ورځخه پټ او الونيانه دی) ﴿ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمۡ تَعۡمَلُونَ ﴾ (نوخبربه درکړي تاسي ته په هغو کارونوچي تاسي به کول) يعني کله چي دهغه په وړاندي ودرېږئ ستاسي دټولو کارونو اواعمالوخبربه درکړي اوپرهغو به عادلانه جزا درته وليکي ﴿ سَيَحۡلِفُونَ بِٱللَّهِ لَكُمۡ ﴾ ژربه قسمونه خوري دوی په الله تاسي ته ﴿ إِذَا ٱنقَلَبۡتُمۡ إِلَيۡهِمۡ ﴾ کله چي بيرته راشي دوی ته (له غزانوبه درته په دروغو عذرونه وايي) ﴿ لِتُعۡرِضُواْ عَنۡهُمۡۖ ﴾ ددې لپاره چي تاسي څنګ وکړئ له (عتاب د) دوی نه (او بد يې ونه بولی) ﴿ فَأَعۡرِضُواْ عَنۡهُمۡۖ ﴾ نوڅنګ وکړئ تاسي له دوی نه (څنګ کول دغضب اوبد ايسېدلو اوپرېږدئ دوی اوددوی ناولي کارونه چي کفر اونفاق دی. ابن عباس رضی الله عنهما وايي چي: مراد له دي نه له دوي سره دسلام اوکلام بندول دي(۲) بيا الله ددې وجه بيانوي فرمايي: ﴿ إِنَّهُمۡ رِجۡسٞۖ ﴾ ببشکه چي دوی پليت دي (ځکه باطن يې پليت اوخبيث دی) ﴿ وَمَأۡوَىٰهُمۡ جَهَنَّمُ ﴾ او ځای دورتلوددوی دوزخ دی ﴿ جَزَآءَۢ بِمَا كَانُواْ يَكۡسِبُونَ ﴾ دپاره دجزا ورکولو په هغو کارونوچي دوی به کول (له نفاق اوګناهونو ځخه په دنياکي) ﴿ يَحۡلِفُونَ لَكُمۡ لِتَرۡضَوۡاْ عَنۡهُمۡۖ ﴾ (قسمونه خوري دغه (منافقان) تاسي ته لپاره ددې چي تاسي له دوی نه راضي شئ) دغه يې ددوی د دروغو دبيان لپاره مکرر راووړ ترڅومؤمنان ددوی په دروغجنو عذرونو تېرنه وزي ﴿ فَإِن تَرۡضَوۡاْ عَنۡهُمۡ فَإِنَّ ٱللَّهَ لَا يَرۡضَىٰ عَنِ ٱلۡقَوۡمِ ٱلۡفَٰسِقِينَ ﴾ (نوکه تاسی له دوی راضي شی نوبېشکه الله نه راضي کېږي له قومه فاسقانو (ځخه) يعني

---

(۱) اسباب النزول ص: ۱۴۹

(۲) الرازي ۱۲/ ۱۷۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



كه تاسي خني راضي هم شئ خودادوى ته كټه نه رسوي ځكه الله جل جلاله دوى ته قهر كونكى دى اوفاسقين كلمه يې دضميرپرځاى ځكه ظاهر راوړه چې ددوى له طاعته وتل اوفسق ښرګندكړي (١) ﴿ ٱلۡأَعۡرَابُ أَشَدُّ كُفۡرٗا وَنِفَاقٗا ﴾ (خيني صحرايي) (أعراب ډېرسخت دي له جهته دكفره اوله جهته دنفاقه (له ښاريانونه) ځكه ددوى زړونه سخت او د صلاح اوخير خلګ يې لږ ليدلي وي ﴿ وَأَجۡدَرُ أَلَّا يَعۡلَمُواْ حُدُودَ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِۦۗ ﴾ (اوډېرلائق دي له دې سره چې پوه نشي دوى په حدودو دهغو (احكامو) چې الله نازل كړي دي په رسول خپل باندې) يعني له دوى سره داوړه چې دالله په نازل شوو احكامو اوشرائعوونه پوهېږي په البحر كي وايي چې دوى ځكه ډېرسخت دي له جهته دكفراو نفاقه چې دوى فخركوي اوغلبه خوښوي پرته له استاذاوښوونكي روزل شوي دي ځنګه چې غواړي هغسي لوى شوي وي علماء اوپوهان يې ښځي ليدلي نه وي دالله كتاب اوپيغمبرپه سنتوعلم نلري نوځكه دښاريانو ترمنافقانو ژب غراندوي (٢) ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٞ ﴾ اوالله ښه عالم دى (پرمخلوقاتو) ښه حكمت والا دى (پخپلومصنوعاتوكي) ﴿ وَمِنَ ٱلۡأَعۡرَابِ مَن يَتَّخِذُ مَا يُنفِقُ مَغۡرَمٗا ﴾ (اوخيني له (صحرايي اعرابو ځخه هغه دي چې نيسي (ګڼي) هغه شى چې لګوي يې (په لاره دالله كي) (محض) يوتاوان) يعني خيني كوچيان (اعراب) ناپوهان هغه مالونه چې دالله په لاره كي يې لګوي اوخيراتوي تاوان اوزيان بولي ځكه دوى يې دثواب په نيت نه وركوي اونه يې داجر هيله لري ﴿ وَيَتَرَبَّصُ بِكُمُ ٱلدَّوَآئِرَۚ ﴾ (اوانتظاركوي پرتاسي دګردشونو دزمانې) يعني دوى ستاسولپاره ددنيوي مصيبتونو ځاركوي سترګي په لاره وي چې له دغومالونولګولوځخه وزګارشي ﴿ عَلَيۡهِمۡ دَآئِرَةُ ٱلسَّوۡءِۗ ﴾ پرهمدوى دي دبدي ګردش وي) دغه اعتراضيه جمله ده اود ښېراپه ډول راغلي يعني پردوى دي عذاب اوهلاكت راوڅرخي ﴿ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٞ ﴾ اوالله ښه اورېدونكى (ددوى داقوالو) ښه پوه (اوعالم ددوى په افعالو) دى ﴿ وَمِنَ ٱلۡأَعۡرَابِ مَن يُؤۡمِنُ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ ﴾ اوخيني له (صحرايي) اعرابو ځخه هغه دي چې په الله اوورځي آخري باندي ايمان لرونكي دي (برعكس دهغومنافقانو) ﴿ وَيَتَّخِذُ مَا يُنفِقُ قُرُبَٰتٍ عِندَ ٱللَّهِ ﴾ اونيسي (شمېري) هغه شى چې لګوي يې (په لاره دالله كي) (اسباب) دنژدېوالي په نزددالله (او محبت دهغه الله) ﴿ وَصَلَوَٰتِ ٱلرَّسُولِۚ ﴾ او(سبب د) دعاوو درسول الله (چې ورته ښنسه غواړي) ﴿ أَلَآ إِنَّهَا قُرۡبَةٞ لَّهُمۡۚ ﴾ خبردارشئ چې دغه (نفقات)سبب د نژدېوالي دى دوى ته) ﴿ أَلَآ ﴾ داستفتاح توري دى ترڅو دغه كارلوري ته اعتناء اوپاملرنه راواړوي چې دغه نفقه كول سترقربت او دالله جل جلاله درضااوخوښي ترلاسه كول دى ځكه دوى په اخلاص لګولي دي ﴿ سَيُدۡخِلُهُمُ ٱللَّهُ فِي رَحۡمَتِهِۦٓۚ ﴾ ژربه الله دوى پخپل رحمت كي داخل كړي (هغه جنت چې دمتقيانو پرهېزګارانو لپاره يې تياركړى دى) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴾ بېشكه الله ښه مغفرت كونكى (داطاعت كونكو) ډېرمهربان

---

(١) ابوالسعود
(٢) البحر المحيط

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دی ( پردوی چي دطاعت لپاره يې برپالي کړل ﴿ وَٱلسَّٰبِقُونَ ٱلۡأَوَّلُونَ مِنَ ٱلۡمُهَٰجِرِينَ وَٱلۡأَنصَارِ ﴾ ( اوهغه وړاندني اولني ( ايمان لرونکي ) له مهاجرينو اوله انصارونه ) يعني هغه ړومبني په هجرت اونصرت کي چي ايمان ته يې ړومبی والی کړی له اصحابانونه (١) ﴿ وَٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُوهُم بِإِحۡسَٰنٖ ﴾ ( او( نور) هغه کسان چي متابعت کړی دی دوی د( سابقانو ) په احسان سره ) يعني هغه کسان چي داصحابانود سيرت متابعت يې کړی د هغوی په لاره تللي دي تابعين اونور هغه چي ترقيامته پدغه لاره درومي ﴿ رَّضِيَ ٱللَّهُ عَنۡهُمۡ وَرَضُواْ عَنۡهُ ﴾ (راضي شوی دی الله له دوی نه اوراضي شوي دي دوی له الله نه) يعني الله دغفران اورضوان وعده ورکړي چي هم پخپله الله خني راضي شوی اوهم دوی يې راضي کړي دي اودغه هغه دزيار ايستلو وروستنی پړاودی چي مؤمنان يې دلاس ته راوړلو هلي ځلي کوي اوپدې کي سيالي کوي چي الله له دوی نه خوښ اوراضي شي اوالله جل جلاله دوی راضي کړي. طبري وايې: چي الله پاک ځکه ځني راضي شوی چي دالله طاعت يې کړی اونبي يې منلی دی اودوی ځکه له الله څخه راضي شوي چي الله پاک دوي ته په اطاعت اوايمان باندي بشپړثواب ورکړی دی ﴿ وَأَعَدَّ لَهُمۡ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي تَحۡتَهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ ﴾ اوتيارکړي دي الله دوی ته جنتونه چي بهېږي لاندي له مانيو اوونو دهغو ويالې ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدٗاۚ ذَٰلِكَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ ﴾ تل به وي دوی په هغو کي همېشه دغه بری دی د ډېرلوی ( چي ترې زيات اولوی بری بل نشته)په البحر المحيط کي وايې چي کله الله پاک دمؤمنانواعرابو فضائل بيان کړل بيايې دړومبنيو اصحابانوحال راووړ خو ددوی دفضائلو ترمينځ خورا لوی واټن اومسافه وه ځکه هلته يې وفرمايل: ﴿ أَلَآ إِنَّهَا قُرۡبَةٞ لَّهُمۡ ﴾ اودلته يې بيادا سي ووېل چي: ﴿ وَأَعَدَّ لَهُمۡ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي تَحۡتَهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ ﴾ اوهلته يې پدې کلماتوپای ته ورسول چي: ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴾ اودلته يې بياوفرمايل: ﴿ ذَٰلِكَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ ﴾ (٢) ﴿ وَمِمَّنۡ حَوۡلَكُم مِّنَ ٱلۡأَعۡرَابِ مُنَٰفِقُونَ ﴾ اوځيني له هغو کسانوچي په شاوخوا دتاسي ( مدنيانو ) کي دي له (صحرائي ) اعرابو څخه منافقان دي ( کورونه يې ستاسوله کورونوسره نژدې دي ) ﴿ وَمِنۡ أَهۡلِ ٱلۡمَدِينَةِ ﴾ اوځيني له خلکو دمدينې نه ( هم منافقان ) دي ﴿ مَرَدُواْ عَلَى ٱلنِّفَاقِ ﴾ عادت يې نيولی ( ټينګ ولاړدي تل ترتله ) پرمنافقت چي له دغي ډلي څخه ابن سلول، جلاس او ابو عامرالراهب دي (٣) دغه دابن عباس رضی الله عنه خبره ﴿ لَا تَعۡلَمُهُمۡۖ نَحۡنُ نَعۡلَمُهُمۡۚ ﴾ ( ته دوی نه پېژني موږ ددوی پرنفاق عالمان يو ) يعني اې محمده ! ته دوی نه پېژني ځکه دوی په نفاق کي زيات مهارت لري اوله ډېرو خلکو څخه ځان او نفاق پټولای شي خوماته معلوم دي اوزه به تاپرې خبرکړم. ﴿ سَنُعَذِّبُهُم مَّرَّتَيۡنِ ﴾ ( ژربه په عذاب کړو موږ دوی دوه کرته ) يعني په دنياکي په وژلو اوبندي کولو اودمرګ په وخت کي دقبرپه عذاب باندي ﴿ ثُمَّ يُرَدُّونَ إِلَىٰ عَذَابٍ عَظِيمٖ ﴾ (بيابه بوتلی شي

(١) له شعبي څخه روايت دی چي داهغه کسان دي چي درضوان بيعت يې کړی دی چابياويلي چي هغه کسان مراددي چي دواړو قبلوته يې لمونځونه کړي دي اوکوم چي موږ وليکل هغه ټول اصحابان چي ړومبی په هجرت اونصرت کي وو دغه رايه دطبري خوښه اوامام رازي غوره کړي ده.

(٢) البحر ٥ / ٩٢

(٣) همدامرجع.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دوى عذاب دېرلوى ته ) په آخرت كي چي هغه داور عذاب او الله پاک دكفارو فجارو لپاره تيار كړى دى ﴿ وَءَاخَرُونَ ٱعۡتَرَفُواْ بِذُنُوبِهِمۡ ﴾ ( او ځيني نور خلک دي چي پخپلو گناهونو يې اعتراف او اقرار کړی دی ) او په دروغو عذرونو يې د پاتي كېدلو بهانې (پلمې) ندي وړاندي كړي(١) امام رازي وايې: چي دا هغه كسان دي چي د تبوک له غزا څخه د سستي په وجه پاتي شوي وو او بيايې پخپلو كړو وړو پښېماني څرگند وله او توبه يې وكښله ﴿ خَلَطُواْ عَمَلٗا صَٰلِحٗا وَءَاخَرَ سَيِّئًا ﴾ گډ كړى دى نېک عمل ( پخواني جهاد او له رسول الله سره غزاته وتل ) او بل بد عمل ( چي داخل د تبوک له غزانه پاتي شول ﴿ عَسَى ٱللَّهُ أَن يَتُوبَ عَلَيۡهِمۡۚ ﴾ قريب دى چي الله به ددوى توبه قبوله كړي. طبري وايې چي: عسى دالله له لوري د وجوب معنا افاده كوي يعني الله به يې توبه قبوله كړي او دعربو په كلام كي د ( عسى ) معناهيله او رجآء ده(٢) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٌ ﴾ بېشكه چي الله ښه بښونكى دى توبه كونكو ته او ډېر رحم والادى په رجوع كونكو باندي ﴿ خُذۡ مِنۡ أَمۡوَٰلِهِمۡ صَدَقَةٗ تُطَهِّرُهُمۡ وَتُزَكِّيهِم بِهَا ﴾ ( واخله (اې محمده !) له مالونو ددوى صدقه ( زكات يا خيرات ) چي ښه پاک كړي دوى له گناهونو او بابركته كړې ته دوى د هغه په وسيله) يعني اې محمده ! صلى الله عليه وسلم ددغو په خپلو گناهونو معترفينو له مالونو څخه صدقه واخله او ددوى دگناهونو له خيرو څخه پاک كړه او ددوى پدې صدقه سره نېكي او ښو اعمالو ته وده وركړه چي دمخلصينو ابرارو درجاتو ته لوړشي ﴿ وَصَلِّ عَلَيۡهِمۡۖ إِنَّ صَلَوٰتَكَ سَكَنٞ لَّهُمۡۗ ﴾ او دعا وكړه (دمغفرت) دوى ته بېشكه چي دعا ستا ددوى لپاره تسكين ( او اطمينان ) دى ﴿ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ او الله ښه اورېدونكى ( ددوى داقوالو ) او ښه عالم دى ( په نيتونو ددوى ) ﴿ أَلَمۡ يَعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ هُوَ يَقۡبَلُ ٱلتَّوۡبَةَ عَنۡ عِبَادِهِۦ ﴾ آيا نه پوهېدل دغه (توبه كونكي) چي بېشكه الله همدى توبه قبلونكى له خپلو بندگانو ) استفهام دتقرير لپاره دى ﴿ وَيَأۡخُذُ ٱلصَّدَقَٰتِ ﴾ او اخلي (قبلوي ) صدقات ( چي دڅانيت سم وي ) ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلتَّوَّابُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ او بېشكه الله ( يوازي ) هم دى ښه توبه قبلونكى ښه رحم والادي) لكه چي الله فرمايې: ﴿ غَافِرِ ٱلذَّنۢبِ وَقَابِلِ ٱلتَّوۡبِ ﴾ غافر٣ ﴿ وَقُلِ ٱعۡمَلُواْ فَسَيَرَى ٱللَّهُ عَمَلَكُمۡ وَرَسُولُهُۥ وَٱلۡمُؤۡمِنُونَۖ ﴾ ( او وايه (اې محمده !) عمل كوئ تاسي ( چي زره مو غواړي ) نو ژر به الله ووينې عمل ستاسي او رسول دده او مؤمنان ( به يې هم ووينې ) دغه صيغه دامر خو په ترڅ كي يې وعيد نغښتى دى يعني هرڅه چي كوئ ويې كړئ الله يې ويني دقيامت په ورځ به ستاسو اعمال وړاندي شي او پيغمبر او مؤمنان به يې ووينې ﴿ وَسَتُرَدُّونَ إِلَىٰ عَٰلِمِ ٱلۡغَيۡبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ ﴾ او ژر به بيا بوتلى شي تاسي ( په بعث سره ) عالم د پټو او ښكاره وو (الله) ته هغه ذات چي هيڅ شى خني پټ او الونيانه دى ) ﴿ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمۡ تَعۡمَلُونَ ﴾ نو خبر به كړي ( الله ) تاسي په هغه سره چي تاسو به كول ( كه مو د خير كارونه كړي وو د خير جزا به دركړي او كه شر وو د شر سزا به ووينئ ﴿ وَءَاخَرُونَ مُرۡجَوۡنَ لِأَمۡرِ ٱللَّهِ ﴾ او نور كسان دي له دغو (پاتي شوو له جهادنه ) چي وروسته كړى شويدي لپاره دحكم كولو دالله ( ددوى په هكله ) ابن عباس رضى الله عنه وايې چي: دغه كعب ابن مالک ، مرارة بن ربيع

---

(١) الرازي ١٢/ ١٧٤

(٢) الطبرى ١١/ ١٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



او هلال بن امية وو دوى دتوبې او اعتذار لپاره چټكتيا ونكړه دوى دبدرد غازيانو له ډلي وو اورسول الله خلك له دوى سره د سلام او كلام له ادل بدل كولو څخه منع كړل نو دوى د الله حكم ته وځندول شول ترڅو يې الله له گناهونو ورتېرشي الله هغه ذات دى چي يوازي هغه يې توبه قبلوي نه بل څوك ﴿ إِمَّا يُعَذِّبُهُمْ وَإِمَّا يَتُوبُ عَلَيْهِمْ ﴾ (يا به په عذاب كړي (الله) دوى يا به مهرباني پردوى وكړي ) يعني يا به عذاب وركړي كه يې توبه ونه كښله او يا به دتوبې كولو توفيق ورپه برخه او بښنه به ورته وكړي ﴿ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴾ او الله ښه عالم دى ( ددوى په احوالو ) ښه حكمت والا دى چي پر دوى څه كوي ؟ او دغه دري تنه دالله جل جلاله پدې وېناكي يادشوي دي چي : ﴿ وَعَلَى الثَّلَاثَةِ الَّذِينَ خُلِّفُوا ﴾ التوبة ١١٨ او ددوى فيصله ترپنځوس ورځي پوري وروسته شوه چي ټولو خلكو ورسره مقاطعه اوشلون كړى وو ترڅو يې دتوبې منل نازل شول(١) ﴿ وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مَسْجِدًا ضِرَارًا ﴾ ( او(خيني) هغه (منافقان) دي چي نيولى ( جوړ كړى ) دى دوى جومات لپاره دضرر رسولو ( مؤمنانو ) ته يعني خيني له منافقانو څخه هو مره زيات مجرمان دي آن ترديې چي دشر او فساد خپرولو لپاره يې مسجد جوړكړى او په هغه يې ( مضارة المؤمنين ) نوم ايښى (٢) چي بيا د ضرار مسجد په نامه ونومول شو ﴿ وَكُفْرًا ﴾ او لپاره دكفريعني دهغه كفرد ملاتړ لپاره چي دوى يې پټوي ﴿ وَتَفْرِيقًا بَيْنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ ( او لپاره دبېلتون اچولو په مينځ دمؤمنانو كي ) چي دوى غواړي يوه ټولى مؤمنان له قباجومات څخه راوګرزوي ﴿ وَإِرْصَادًا لِّمَنْ حَارَبَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ مِن قَبْلُ ﴾ ( او لپاره دانتظار دهغه چاچي جنگ يې كړى دى پخوا له الله او رسول د دغه ( الله ) سره ) يعني دوى دابوعامر فاسق دراتلو انتظار باسي هغه چي رسول الله صلى الله عليه وسلم ته يې ويلي وو: هرڅوك چي له تاسره جنگېږي زه به دهغو په ملاتړ،او له تاسره جنگ كوم او دا هغه څوك وو چي دوى ته يې د مسجد جوړلو امر كړى وو چي پناهگاه وي . طبري دضحاك په روايت ليكلي چي دغه يوڅو تنه منافقين وو چي جومات يې ددې لپاره جوړ كړى وو چي پيغمبر او مسلمانانو ته وربانديې ضرر ورسوي او ويل به يې كله چي ابوعامر راشي دلته به پكي لمونځ كوي او چي راستون شي په پيغمبر به برى ومومي (٣) ﴿ وَلَيَحْلِفُنَّ إِنْ أَرَدْنَا إِلَّا الْحُسْنَىٰ ﴾ او خامخا قسمونه خوري هرومرو دوى چي موږ اراده نده كړي مگرد نيك خصلت ؛ په جوړولو د مسجد سره چي د مسكينانو لپاره موودان كړى او چي پكي لمونځ كونكي په پراخي سره لمونځ اداكړي ﴿ وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ ﴾ ( او الله شاهدي اداكوي چي بېشكه دوى خامخا دروغجنان دي ) إن - او - لام يې دزيات تاكيد لپاره راوړل بيا الله تعالى خپل پيغمبرهلته دلمانځه له اداكولو څخه منع كړ ويې فرمايل ﴿ لَا تَقُمْ فِيهِ أَبَدًا ﴾ مه درېږه ته په دغه مسجدكي (لپاره دلمانځه) هيڅكله (ځكه چي هغه د منافقينو دخالي په توګه وذان شويدى ) ﴿ لَّمَسْجِدٌ أُسِّسَ عَلَى التَّقْوَىٰ ﴾ هغه مسجد(دقباء) چي تادو ( بنياد ) يې په تقوى ايښودل شوى ) لام دقسم لپاره دى يعني قسم دى

---

(٢) الطبري ١١/ ٢٥

(١) دڅبارونكي اثر (گرزنده خيلخانه)چي دادب په پلوشو كتاب كي راغلى هغه دي وكتل شي چي پدې پېښه كي خورا مفصل معلومات لري .

(٣) الطبري ١١/ ٢٥

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دقباء مسجد چي لومړنی بنسټ يې په تقوی او طاعت اېښودی شوی ﴿ مِنۡ أَوَّلِ يَوۡمٍ ﴾ له لومړۍ ورځې ﴿ أَحَقُّ أَن تَقُومَ فِيهِۚ ﴾ ډېر لائق ددې دی چې ته په هغه کې و دريږې ) تردې چې په ضرار مسجد کې لمونځ اداکوې ﴿ فِيهِ رِجَالٞ يُحِبُّونَ أَن يَتَطَهَّرُواْۚ ﴾ په هغه (قبا) کې هسې سړي دي چې خوښوي دوی داچې ښه پاک وساتي دوی (ځانونه خپل له ګناهونو اوپليتيوڅخه چې دغه متقيان انصاردي) ﴿ وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلۡمُطَّهِّرِينَ ﴾ اوالله خوښوي ښه ځان پاکونکي (له ظاهري اوباطني پليتي څخه بيا الله دغه بهتري ته په ضرار مسجد باندي داسي اشاره کوي فرمايي: ﴿ أَفَمَنۡ أَسَّسَ بُنۡيَٰنَهُۥ عَلَىٰ تَقۡوَىٰ مِنَ ٱللَّهِ وَرِضۡوَٰنٍ خَيۡرٌ ﴾ (آيانوهغه څوک چې تادو يې اېښی وي (دودانۍ ددين ) خپل په تقوی له الله څخه اوپه رضا (دالله) غوره دی ؟ استفهام دانکارلپاره دی ﴿ أَم مَّنۡ أَسَّسَ بُنۡيَٰنَهُۥ عَلَىٰ شَفَا جُرُفٍ هَارٍ ﴾ يا هغه څوک چې تادو دوداني ( ددين خپل کېږدي ) په څنډه دکندي باندي چې نړېدونکي وي ؟ ﴿ فَٱنۡهَارَ بِهِۦ فِي نَارِ جَهَنَّمَۗ ﴾ نو نړيږي داغاړه دکندي سره له جوړونکي په اوردوزخ کي ﴿ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ اوالله نه ښيي سمه صافه لارقوم ظالمانوته ) آيت شريف دتشبيه اوتمثيل په ډول راغلی دی چې اخلاصمن مؤمن او ګمراه منافق سره پرتله کوي ﴿ لَا يَزَالُ بُنۡيَٰنُهُمُ ٱلَّذِي بَنَوۡاْ رِيبَةٗ فِي قُلُوبِهِمۡ ﴾ همېشه به وي مانۍ (دنفاق) ددوی هغه چې بنا کړي وه موجب دشک شبهې ( اونفاق ) په زړونوددوی کي ) يعني تل به ددغه مسجدضرار دودانونکوپه زړونو کي شک اونفاق وي او همدارنګه غصه اوشبه به وي چې ولې وران شو؟ دوی ګمان کاوو چې په ودانولو کي يې دوی نيکوکاران دي . روايت کېږي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم څوتنه دغه مسجدته ورواستول هغه يې وران اوسوځاوو بدبويه شيان او مړګي يې ور وغورځولې اودغه نودمسجد داهل دسپکاوي لپاره وو چې دمنافقانو حسد اوقهريې نور هم زيات کړ ﴿ إِلَّآ أَن تَقَطَّعَ قُلُوبُهُمۡۗ ﴾ (مګرچي ټوټې ټوټې شي زړونه ددوی ) يعني تل به دوی په شک اوغصه کي وي څوبې زړونه وچوي او ومري ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴾ اوالله ښه عالم دی ( دمنافقينوپه حالاتو ) ښه حکمت والادی ددوی لپاره په تدبيرکولو اودوی ته په بدو نيتونو باندي په جزا ورکولو سره.

بلاغت:

۱ - د ﴿ ٱلۡغَيۡبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ ﴾ په کلماتو کي دطباق صنعت خوندي دی.

۲ - پدې کلام کي چې الله جل جلاله فرمايي: ﴿ لَا يَرۡضَىٰ عَنِ ٱلۡقَوۡمِ ٱلۡفَٰسِقِينَ ﴾ دلته اظهاردااضمار پر ځای راغلی اودزيات شناعت اوقباحت ثرګندويه دی اصل خوداوو چې (لايرضی عنهم) راغلی وای.

۳ - ﴿ سَيُدۡخِلُهُمُ ٱللَّهُ فِي رَحۡمَتِهِۦٓۚ ﴾ دلته مرسل مجاز دی يعني ژردی چې الله به يې په هغه جنت کي داخل کړي چې درحمت محل دی حال يې راوړی اومحل څني مراددی.

۴ - پدې کلماتو کي چې فرمايي: ﴿ عَمَلٗا صَٰلِحٗا وَءَاخَرَ سَيِّئًا ﴾ دلته د(صالحا ) او(سيئا ) ترمينځ دطباق صنعت دی.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۵ - کله چي الله تعالی فرمايي: ﴿ إِنَّ صَلَوٰتَكَ سَكَنٌ لَّهُمۡ ﴾ دلته بليغه تشبيه راغلي څکه لمونځ يې په خپله اطمينان بللی چي مبالغه پکي مقصدده اواصل يې داووچي راغلي وای ( کالسکن ) خودتشبيه ادات (توری) اومشابهت وجه يې حذف شوي نوبليغه تشبيه ګڼلي کېږي.

۶ - ﴿ هَارٍ فَٱنۡهَارَ ﴾ پدې کلماتوکي ناقص جناس دی اوداهم له بديعي محسناتوڅخه ګڼل کېږي.

۷ - پدې کلام کي چي الله تبارک وتعالی فرمايي: ﴿ أَفَمَنۡ أَسَّسَ بُنۡيَٰنَهُۥ عَلَىٰ تَقۡوَىٰ ﴾ مکنيه استعاره ده څکه چي تقوی او رضوان يې له کلکي ځمکي سره مشابه کړی اومشبه به يې ذکرکړی نه دی خودهغې له لوازموڅخه يې يولازم راوړی چي هغه تأسيس او ودانول دي[١]

تنبيه:

د(عسی) کلمه له الله جل جلاله څخه دواجب په معناده دغه دامام رازي خبره ده اوپخه خبره داده چي قرآن کريم دخلګو دخبرو اترو له دودسره سم نازل شوی اوله ستر پاچاڅخه کله چي يوڅوک څه وغواړي هغه يې دهيلي او رجا په کلماتوځواب ورکوي يعني ورته وايي: ( عسی ) ( لعل) ترڅويې پدې تنبيه کړي چي هيڅوک په لزومي توګه له پاچاڅخه څه نه غواړي بلکه پاچا له خپلي مهرباني اوفضل سره سم دخلګوغوښتني ترسره کوي اوبله فائده په دغه ترجی کي داهم ده چي مکلف دطمعي اوويري ترمينځ وي او يومخ اړزه هيلوته ځان نه سپاري بلکه اعمال هم ترسره کوي[٢]

لطيفه:

أعمش روايت کوي چي يوأعرابي د(زيدبن صوحان) په مجلس کي کښېناست اوهغه خپلوملګرو ته خبري کولې دهغه لاس دنهاوند په ورځ غوڅ شوی وو نوأعرابي ورته وويل: زمادي په الله سوګندوي چي خبري دي ارو مروخوندراکوي اودغه لاس دي خامخا ماته شک پيداکړی دی زيدورته وويل: ولي مي لاس تاته شک پيداکړی دغه خوچپ لاس دی؟ أعرابي ورته وويل: والله که زه خبريم چي ښی لاس دوی غوڅوي اوکه چپ لاس؟ نوزيد وويل: الله رښتياوايي: ﴿ ٱلۡأَعۡرَابُ أَشَدُّ كُفۡرٗا وَنِفَاقٗا وَأَجۡدَرُ أَلَّا يَعۡلَمُواْ حُدُودَ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِۦۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٞ ﴾التوبة: ٩٧ دآيت ترپايه يعني أعرابي ته دهغه دلاس دغوڅولوپه هکله اشتباه پيداشوي وه چي آياپه غلاکي خوبه غوڅ شوی نه وي اودغه ګواکي دأعرابي دجهل څخه ګواهي ورکوي[٣]

الله تعالی فرمايي:

﴿ ۞ إِنَّ ٱللَّهَ ٱشۡتَرَىٰ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ أَنفُسَهُمۡ وَأَمۡوَٰلَهُم بِأَنَّ لَهُمُ ٱلۡجَنَّةَۚ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ فَيَقۡتُلُونَ وَيُقۡتَلُونَۖ وَعۡدًا عَلَيۡهِ حَقّٗا فِي ٱلتَّوۡرَىٰةِ وَٱلۡإِنجِيلِ وَٱلۡقُرۡءَانِۚ وَمَنۡ أَوۡفَىٰ بِعَهۡدِهِۦ مِنَ ٱللَّهِۚ فَٱسۡتَبۡشِرُواْ بِبَيۡعِكُمُ ٱلَّذِي بَايَعۡتُم بِهِۦۚ وَذَٰلِكَ هُوَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ ﴿١١١﴾ ٱلتَّٰٓئِبُونَ ٱلۡعَٰبِدُونَ ٱلۡحَٰمِدُونَ ٱلسَّٰٓئِحُونَ ٱلرَّٰكِعُونَ ٱلسَّٰجِدُونَ ٱلۡأٓمِرُونَ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَٱلنَّاهُونَ عَنِ ٱلۡمُنكَرِ وَٱلۡحَٰفِظُونَ

---

(١) وګوره چي شريف رضي په تلخيص البيان کي څومره ښه ليکلي دي ص: ١۴٩

(٢) الرازي ١٢ / ١٧٢

(٣) محاسن التأويل ٨ / ٣٢٣٩

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



لِحُدُودِ ٱللَّهِ وَبَشِّرِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿١١٢﴾ مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا أَن يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ وَلَوْ كَانُوٓا أُولِي
قُرْبَىٰ مِنۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُمْ أَصْحَٰبُ ٱلْجَحِيمِ ﴿١١٣﴾ وَمَا كَانَ ٱسْتِغْفَارُ إِبْرَٰهِيمَ لِأَبِيهِ إِلَّا عَن
مَّوْعِدَةٍ وَعَدَهَآ إِيَّاهُ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُۥٓ أَنَّهُۥ عَدُوٌّ لِّلَّهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ إِنَّ إِبْرَٰهِيمَ لَأَوَّٰهٌ حَلِيمٌ ﴿١١٤﴾ وَمَا كَانَ ٱللَّهُ
لِيُضِلَّ قَوْمًۢا بَعْدَ إِذْ هَدَىٰهُمْ حَتَّىٰ يُبَيِّنَ لَهُم مَّا يَتَّقُونَ إِنَّ ٱللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١١٥﴾ إِنَّ ٱللَّهَ لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ
وَٱلْأَرْضِ يُحْيِۦ وَيُمِيتُ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِن وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿١١٦﴾ لَّقَد تَّابَ ٱللَّهُ عَلَى ٱلنَّبِيِّ
وَٱلْمُهَٰجِرِينَ وَٱلْأَنصَارِ ٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُوهُ فِي سَاعَةِ ٱلْعُسْرَةِ مِنۢ بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيغُ قُلُوبُ فَرِيقٍ مِّنْهُمْ
ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ إِنَّهُۥ بِهِمْ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿١١٧﴾ وَعَلَى ٱلثَّلَٰثَةِ ٱلَّذِينَ خُلِّفُوا حَتَّىٰٓ إِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ ٱلْأَرْضُ بِمَا
رَحُبَتْ وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ أَنفُسُهُمْ وَظَنُّوٓا أَن لَّا مَلْجَأَ مِنَ ٱللَّهِ إِلَّآ إِلَيْهِ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ لِيَتُوبُوٓا إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلتَّوَّابُ
ٱلرَّحِيمُ ﴿١١٨﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ٱتَّقُوا ٱللَّهَ وَكُونُوا مَعَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴿١١٩﴾ مَا كَانَ لِأَهْلِ ٱلْمَدِينَةِ وَمَنْ حَوْلَهُم
مِّنَ ٱلْأَعْرَابِ أَن يَتَخَلَّفُوا عَن رَّسُولِ ٱللَّهِ وَلَا يَرْغَبُوا بِأَنفُسِهِمْ عَن نَّفْسِهِۦ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ لَا يُصِيبُهُمْ ظَمَأٌ وَلَا نَصَبٌ
وَلَا مَخْمَصَةٌ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَلَا يَطَـُٔونَ مَوْطِئًا يَغِيظُ ٱلْكُفَّارَ وَلَا يَنَالُونَ مِنْ عَدُوٍّ نَّيْلًا إِلَّا كُتِبَ لَهُم
بِهِۦ عَمَلٌ صَٰلِحٌ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴿١٢٠﴾ وَلَا يُنفِقُونَ نَفَقَةً صَغِيرَةً وَلَا كَبِيرَةً وَلَا يَقْطَعُونَ
وَادِيًا إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ لِيَجْزِيَهُمُ ٱللَّهُ أَحْسَنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٢١﴾ ۞ وَمَا كَانَ ٱلْمُؤْمِنُونَ لِيَنفِرُوا كَآفَّةً
فَلَوْلَا نَفَرَ مِن كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوا فِي ٱلدِّينِ وَلِيُنذِرُوا قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوٓا إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ ﴿١٢٢﴾
يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا قَٰتِلُوا ٱلَّذِينَ يَلُونَكُم مِّنَ ٱلْكُفَّارِ وَلْيَجِدُوا فِيكُمْ غِلْظَةً وَٱعْلَمُوٓا أَنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلْمُتَّقِينَ ﴿١٢٣﴾
وَإِذَا مَآ أُنزِلَتْ سُورَةٌ فَمِنْهُم مَّن يَقُولُ أَيُّكُمْ زَادَتْهُ هَٰذِهِۦٓ إِيمَٰنًا فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا فَزَادَتْهُمْ إِيمَٰنًا وَهُمْ يَسْتَبْشِرُونَ
﴿١٢٤﴾ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ فَزَادَتْهُمْ رِجْسًا إِلَىٰ رِجْسِهِمْ وَمَاتُوا وَهُمْ كَٰفِرُونَ ﴿١٢٥﴾ أَوَلَا يَرَوْنَ
أَنَّهُمْ يُفْتَنُونَ فِي كُلِّ عَامٍ مَّرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ لَا يَتُوبُونَ وَلَا هُمْ يَذَّكَّرُونَ ﴿١٢٦﴾ وَإِذَا مَآ أُنزِلَتْ
سُورَةٌ نَّظَرَ بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ هَلْ يَرَىٰكُم مِّنْ أَحَدٍ ثُمَّ ٱنصَرَفُوا صَرَفَ ٱللَّهُ قُلُوبَهُم بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُونَ
﴿١٢٧﴾ لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُم بِٱلْمُؤْمِنِينَ
رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿١٢٨﴾ فَإِن تَوَلَّوْا فَقُلْ حَسْبِيَ ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ ٱلْعَرْشِ ٱلْعَظِيمِ
﴿١٢٩﴾

﴿ التوبة: ١١١ ـ ١٢٩

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## مناسبت او تړاو:

کله چي الله پاک د متخلفينو منافقانو احوال بيان کړل وروسته بيې د سوچه مؤمنانو مجاهدينو هغو چي خپل خانونه يې د الله په لارکي قربانول يادونه وکړه او بيايې د هغو دريوتنو ياد راوور څوک چي د تبوک له غزا څخه پاتي شوي وو الله يې توبه ومنله د سورت په پای کی يې هغه سترنعمت ته چي الله پاک په بشريت لورولی اشاره وفرمايله هغه چي عربي استازی روښانه څراغ الله جل جلاله د عالميانو لپاره رحمت رااستولی دی.

## لغتونه:

(اواه) ډېر اسويلي کونکی او معنايې خاشع او متضرع دی ويل کېږي ( تأوه الرجل ) کله چي له درده اسويلی راکاږي (حليم) هغه چاته وايې چي زغم لری او له گناهونو تېرېږي په مشکلاتو باندي صبرکوي. ( العسرة) سختي او تکاليف د تبوک غزاته ځکه ( غزوة العسرة) وايې چي مشقت او سختي پکي زياته ده ( يزيغ) زيغ ميلان ته وايې ويل کېږي (زاغ قلبه) کله چي له ايمان او هدايت څخه کوږ اومائل شي (ظمأ) سخته تنده ( نصب) سخته ستړيا (مخمصة) ډېره لوږه چي گېډه پکي لوېدلي وي (ينالون) دوی ته رسېږي (غلظة ) شدت، قوت، غيرت (عزيز) سخت او ټينګ ( عنتم) عنت شدت او مشقت ته وايې.

## د نزول سبب:

أ:- کله چي انصارو له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره په ليلة العقبة (د عقبې په شپه )بيعت وکړ او دوی اوياتنه وو نوعبدالله بن رواحة وويل: يارسول الله څه چي دي خوښه وي د خپل رب له خوا او پخپله ستاله خوا پرموږ باندي شرطونه کېږده نورسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل چي د الله لپاره داشرط دی چي يوازي د هغه الله عبادت وکړئ بل څوک ورسره شريک مه نيسئ او زما شرط دادی چي له کوم شيز څخه چي ځان منع کوئ ما هم منع کړئ نو دوی ورته وويل: که مو دغه شرطونه پرځای کړل زموږ لپاره به (جائزه) څه وي رسول الله ﷺ وويل: جنت به وي نو دوی وويل: ډېره ښه بيه ده نه پښېمانه کېږو او نه د چا پښېماني منو نو دغه آيت نازل شو: ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ ٱشۡتَرَىٰ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ أَنفُسَهُمۡ ﴾ د آيت ترپايه[١]

ب:- کله چي ابوطالب د ځکندن په حال کي وو ابوجهل او عبدالله ابن أميه يې سرته ناست وو رسول الله صلی الله عليه وسلم ورغی او ورته ويل يې: اې کاکا داسي ووايه چي ﴿ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ ﴾ زه به د الله جل جلاله په وړاندي پرتاگواهي ووايم څو خله پيغمبرعليه السلام همدغه وړانديز ورته کاوو ابوجهل او ابن أميه ابوطالب ته وويل: آياته غواړې له ابراهيمي ملت څخه ووزې؟ نو هغه وروستی خبره چي ابوطالب دوی ته وکړه داوه چي هغه په ابراهيمي ملت باندي دی خو داسي يې ونه ويل چي: ﴿ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ ﴾ نورسول الله صلی الله عليه وسلم وويل: زما دي په الله جل جلاله سوگند وي ترهغو به درته بښنه غواړم څو چي الله منع کړی نه يم نو الله جل جلاله دا آيت شريف نازل کړ: ﴿ مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَن يَسۡتَغۡفِرُواْ لِلۡمُشۡرِكِينَ ﴾ او هم دا راز دغه آيت شريف چي فرمايي: ﴿ إِنَّكَ لَا تَهۡدِي مَنۡ أَحۡبَبۡتَ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يَهۡدِي مَن يَشَآءُۚ وَهُوَ أَعۡلَمُ بِٱلۡمُهۡتَدِينَ ﴾ القصص: ٥٦ [٢]

---

[١] زاد المسير ٣ / ٥٠٤

[٢] أخرجه مسلم

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## تفسیر:

﴿ إِنَّ ٱللَّهَ ٱشۡتَرَىٰ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ أَنفُسَهُمۡ وَأَمۡوَٰلَهُم بِأَنَّ لَهُمُ ٱلۡجَنَّةَۚ ﴾ ببشکه چي الله اخيستي (پېرودلي) دي له مؤمنانو څخه نفسونه ددوی اومالونه ددوی په عوض ددې چي ببشکه شته دوی ته جنت) دغه دبلاغت اوبيان په تول تللی خورادروند دمجاهدينولپاره داجرتمثيل دی چي الله جل جلاله دوی ته ددوی دمالونو اوځانونو په بيه جنت ورکړی اوګواکي دغه يې دبيې ترون انځورکړی دی. حسن بصري رحمه الله وايې چي: الله له دوی سره بيه ترسره کړي اوپه ګرانه قيمت![1] دالله جل جلاله دغه کرم ته وګورئ هغه ځانونه (نفسونه) چي ده پيداکړي اوهغه مالونه چي الله دوی ته روزي ورکړي ده بياالله هماغه پداسي بيه څني رانيسي چي هغه جنت دی دادېره ګټوره بيه او سوداده ځينوويلي چي دامعامله ډېره غوره اوهغه عقددی چي مؤمن يې بائع اومشتري الله تعالی دی اوثمن يې جنت اوچک (صك) يې آسماني کتابونه، واسطه پکي حضرت محمدصلی الله عليه وسلم دی ﴿ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ فَيَقۡتُلُونَ وَيُقۡتَلُونَۖ ﴾ (دغه پېرودل اخيستل پدي شان دی) چي جنګونه کوي دوی په لاره دالله کي نو کله (مؤمنان) وژني (داکفار) اوکله (دکفاروله لوري) وژلی شي دغه مؤمنان) يعني دوی دالله دکلمې دلوړوالي لپاره جنګېږي کله چي غلبه ومومي دښمن ووژني اوکله بيا په دغه جګړه کي دوی پخپله شهيدان شي ﴿ وَعۡدًا عَلَيۡهِ حَقّٗا فِي ٱلتَّوۡرَىٰةِ وَٱلۡإِنجِيلِ وَٱلۡقُرۡءَانِۚ ﴾ (وعده ده پدغه (الله) باندي وعده حقه په تورات، انجيل اوقرآن کي ﴿ وَمَنۡ أَوۡفَىٰ بِعَهۡدِهِۦ مِنَ ٱللَّهِۚ ﴾ اوڅوک ترالله ښه وفاکونکی پخپلي وعدې دی؟ (هيڅوک نشته) استفهام انکاري اودنفی په معنادی. زمخشري وايې: چي دوعدې مخالفت کول بدکاردی اوعزتمن خلګ هيڅکله هم دوعدې مخالفت نه کوي سره له دې چي مخلوق دی نوڅرنګه به هغه غني خالق ذات چي قباحت هډو ورته جائزنه دی دوعدې مخالفت وکړي؟ اودغه دجهاد په هکله خورا ښه ترغيب دی چي ترې پورته بليغ اسلوب نشته[2] ﴿ فَٱسۡتَبۡشِرُواْ بِبَيۡعِكُمُ ٱلَّذِي بَايَعۡتُم بِهِۦۚ ﴾ نوتاسي خوشحاله شئ (اې مؤمنانو) په بيع ستاسي باندي هغه چي تاسي له الله سره (په هغې بيع اوشراء سره) معامله کړي ده (خوراخوشحاله) ﴿ وَذَٰلِكَ هُوَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ ﴾ همدغه ډېرلوی بری دی ﴿ ٱلتَّٰٓئِبُونَ ٱلۡعَٰبِدُونَ ٱلۡحَٰمِدُونَ ٱلرَّٰكِعُونَ ٱلسَّٰجِدُونَ ﴾ (توبه کونکي، عبادت کونکي، شکرکونکي رکوع کونکي دي سجده کونکي دي) دغه کلام استئناف دی اوزجاج وايې چي: دغه مبتداء اوخبريې محذوف دی اوهغه داچي (من أهل الجنة) دی که څه هم چي جهادېې نه وي کړي لکه چي الله فرمايي: ﴿ وَكُلّٗا وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلۡحُسۡنَىٰۚ ﴾ النسآء ٩٥

---

([1]) الطبري ١١/٣٥

([2]) الکشاف ٢/٢١٤

([3]) ځينو له سائحينو څخه روژتيان (صائمين) اخيستي او عطاء وايې: چي مرادڅني غازيان دي ابن زيدوايې: چي دغه مهاجرين ښيې خوکوم چي موږ وليکل هغه دامام رازي غوره اودغه آيت همورباندي دلالت کوي ﴿ فَسِيحُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ ﴾ التوبة: ٢ والله اعلم.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ ٱلسَّـٰٓئِحُونَ ﴾ په مځکه کې سفرکونکي دي ( دعلم دتحصيل اويا غزادکولولپاره ) (۱) له سياحت څخه اخيستل شوی اوهغه په ښارونو، دښتونوکي دپنداوعبرت لپاره سفرکولوته وايي ﴿ ٱلْـَٔامِرُونَ بِٱلْمَعْرُوفِ وَٱلنَّاهُونَ عَنِ ٱلْمُنكَرِ ﴾ حکم کونکي دي په ښېګڼو منع کونکي دي (خلګولره ) له بدوکارونوڅخه ﴿ وَٱلْحَـٰفِظُونَ لِحُدُودِ ٱللَّهِ ﴾ اوحدودالله ساتونکي دي دالله جل جلاله په حلال حرام باندي دشريعت پابنددي دفروضو ساتنه کوي. طبري وايي چي دوی دالله فرض اداکوي اوامراونهی يې مني (۲)﴿ وَبَشِّرِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ اوزېری ورکړه ( اې محمده ) مؤمنانوته اوداچي دزېري جائزه يې حذف کړي سبب دادی چي هغه داسي نايابه جائزه ده چي نه سترګو ليدلې ، نه غوږو اورېدلي ، نه دچا په زړه اوخاطرکي راتېره شوي ، نه هم په حصرکي راتلونکي ده ﴿ مَا كَانَ لِلنَّبِىِّ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَن يَسْتَغْفِرُوا۟ لِلْمُشْرِكِينَ ﴾ نه ښايي ( اونه روادی ) نبي لره اونه ښايي ( اونه روادی ) مؤمنانوته چي مشرکينوته مغفرت ( ښښنه ) وغواړي ﴿ وَلَوْ كَانُوٓا۟ أُو۟لِى قُرْبَىٰ ﴾ اګرکه وي ( دامشرکان ) خاوندان دخپلوي ﴿ مِنۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُمْ أَصْحَـٰبُ ٱلْجَحِيمِ ﴾ وروسته له دې خبري چي ښکاره شي دوی ته چي بېشکه دوی ددوزخ څښتنان دي (اوپه کفرمړه دي) دغه آيت شريف دابوطالب په هکله نازل شويدی (۳)﴿ وَمَا كَانَ ٱسْتِغْفَارُ إِبْرَٰهِيمَ لِأَبِيهِ ﴾ ( اونه وه ښښنه غوښتل دابراهيم لپاره دخپل پلار ) دغه دهغه سبب بيان دی کوم چي ابراهيم عليه السلام يې دې ته اړيوست چي خپل پلارته ښښنه وغواړي ﴿ إِلَّا عَن مَّوْعِدَةٍ وَعَدَهَآ إِيَّاهُ ﴾ مګرپه سبب دوعدې چي ده ته يې ( وړاندي ) کړي وه پدې قول چي ﴿ سَأَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّىٓ ۖ إِنَّهُۥ كَانَ بِى حَفِيًّا ﴾ مريم: ۴۷ اوداهم هغه وخت چي دپلار اصرار يې لاورته په شرباندي ثابت شوی نه وو ﴿ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُۥٓ أَنَّهُۥ عَدُوٌّ لِّلَّهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ ﴾ ( نوکله چي ابراهيم عليه السلام ته معلومه شوه چي بېشکه، دغه پلارددہ دالله دښمن دی نوله هغه بېزاره شو ) يعني کله چي ابراهيم ته څرګنده شوه چي پلاريې له کفرڅخه نه اوړي نوپه بشپړه توګه ځني بېزاره شوځه لادهغه لپاره داستغفار غوښتل اوښښنه ده بياالله پاک دابراهيم عليه السلام ددغه استغفار غوښتلو موجبات بيانوي چي دغه ابراهيم عليه السلام دزړه نرمښت اوزيات زغم درلودل وو چي دپلار لپاره يې استغفارغوښتل فرمايي: ﴿ إِنَّ إِبْرَٰهِيمَ لَأَوَّٰهٌ حَلِيمٌ ﴾ (بېشکه ابراهيم ډېرآه کونکی (له رحمته اوزړه نرم والي )اوډېر تحمل والاوو ) چي سره له دې چي پلاريې اخطار ورکړی ووچي ﴿ لَئِن لَّمْ تَنتَهِ لَأَرْجُمَنَّكَ ۖ وَٱهْجُرْنِى مَلِيًّا ﴾ مريم: ۴۶ خوابراهيم عليه السلام بياهم تحمل اوصبرخپل کړی وو اودښېګڼي دعايي ورته کوله نودبل چالپاره پدې هکله دده پيروي کول سم نه دي . ابوحيان وايي : څرنګه چي دابراهيم عليه السلام استغفاردخپل پلار لپاره ددې غوښتونکی وو چي نورخلګ هم دده ددغه عمل پيروي اومتابعت وکړي نوالله پاک دابراهيم عليه

(۱) الطبري ۱۱ / ۳۹

(۲) اسباب النزول

(۳) البحر المحيط ۵ / ۱۰۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



السلام داستغفار غوښتلو علت په دا گه کړ چي هغه له خپلي ژمني (وعدې) سره سم دغه ښښنه غوښتله اودهغه دايمان هيله يې لرله کله چي دوحی په سبب ورته ښکاره شوه چي پلاريې دالله دښمن دی اودی به په کفرمرکيږي

اوتمه يې له ايمان راوړلو وختله نوبې استغفار غوښتل هم پرېښودل(١) ﴿ وَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيُضِلَّ قَوۡمَۢا ﴾ اوندی الله چي هيڅ يو قوم بې بې لاري کړی دغه دمسلمانانو دهغه ډولگي په باب رانازل شوی چي دمشرکانو لپاره يې مغفرت غوښتی وو نودوی پخپلو خانونو وويرېدل آيت ددوی دلاساينه کوي(٢) چي الله له لارښوونې وروسته

څوک نه گمراه کوي ﴿ بَعۡدَ إِذۡ هَدَىٰهُمۡ ﴾ (وروسته له هغه چي دوی ته يې (داسلام) لاره وښودله) دايمان راوړلو توفيق يې ورکړ ﴿ حَتَّىٰ يُبَيِّنَ لَهُم مَّا يَتَّقُونَۚ ﴾ (ترهغوپوري چي بيان کړی دوی ته هغه څيز چي خان ترې وساتي) نوکه يې له نهی وروسته مخالفت وکړ دعذاب وړ اومستحق به وگڼل شي. ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٌ ﴾ (بېشکه الله په هرڅيزباندي عالم دی ) چي له دي جملې څخه داهم دی څوک چي دهدايت وړوي اوڅوک

بيادضلالت اوگمراهي مستحق ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَهُۥ مُلۡكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۖ يُحۡيِۦ وَيُمِيتُۚ ﴾ (بېشکه الله لره دی سلطنت دآسمانونواوځمکي) ( اوټول هغه چي په دوی دواړوکي دي دالله مملوک اوبندگان دي) ژوندي کول اومړه کول

کوي ﴿ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِن وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴾ اونشته تاسوته بې له الله هيڅ دوست (ساتونکی له آفاتو) اونه مددگار چي تاسو ورته پناه ورورئ. الوسي وايي: کله چي الله جل جلاله دوی دمشرکينو لپاره له استغفارکولوڅخه منع کړل که څه هم چي خپلوان يې وې نودغه دبېزاري موجب شو بيا الله پاک ورته وفرمايل چي هغه سبحانه وتعالی دهر موجود مالک اوچاره جوړونکی مولادی اوهيچاته پرته له الله پاکه بل څوک مرسته اومدد نه شي رسولای ترڅو چي دوی هغه (الله) ته مخه کړي اوله نورو ټولومخلوقاتو څخه بېزاره شي

(٣) ﴿ لَّقَد تَّابَ ٱللَّهُ عَلَى ٱلنَّبِيِّ وَٱلۡمُهَٰجِرِينَ وَٱلۡأَنصَارِ ﴾ (خامخاپه تحقيق الله جل جلاله رجوع کړي ده پرنبي او(پر) مهاجرينو اوانصارو) يعني الله پاک خامخادنبي توبه قبوله کړي چي منافقينو ته يې دپاتي کېدلو اجازه وکړه اومهاجرو انصاروته يې ښښنه کړي توبه يې منلي چي له دوی څخه دتبوک دغزاپه وخت کي څه تېروتني شوي وې څوک خنډېدلي وو ، څوک بياپاتي شوي اوبيايې الله ته توبه کښلي وه الله پاک ته د دوی دتوبې رښتنولي معلومه وه نوهغه توبه يې قبوله کړي اوپه پيل کي يې دنبي عليه السلام اوسترواصحابانو دتوبې ذکر وفرمايه چي ددوی دزړونو تسلا وشي دشان لوړوالی يې څرگندشي اومؤمنان دتوبې کولو لپاره وهڅوي اودا وښيې چي هرمؤمن توبې او استغفارته اړ اومحتاج دی آن ترديې چي نبي اومهاجر اوانصار ټول توبې ته اړوي

(٤) ﴿ ٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُوهُ فِي سَاعَةِ ٱلۡعُسۡرَةِ ﴾ هغوکسانوچي پيروي کړي وه دوی دنبي عليه السلام په وخت دتنگسياکي چي دتبوک دغزاوخت اوسخته گرمي اونېستي وه. طبراني له عمررضی الله عنه نه روايت کوي چي هغه وويل: موږ له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره دتبوک غزاته په خورا ترخه گرمي کې راووتو اويوځای ته را ورسېدو چي هلته خورا سخت تږي شو گمان مو کاوو چي له تندي به موزهره وچوي آن ترديې چي چابه اوښ حلال کړو اودهغه دفضلاتو په لندبلو(رطوباتو) په څښلوبه يې گذاره کوله نوابوبکرالصديق رضی الله عنه وويل:

---

(١) التسهيل ٢/ ٨٦

(٢) روح المعاني ١١/ ٣٩

(٣) الکشاف ٢-٣١٢

(٤) الطبري ١١-٥٥

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



يارسول الله ! الله پاک خوبه ستادعامنله نوزمور لپاره دعاوکړه نوپیغمبر علیه السلام وویل: چي آیاستادا خوښه ده ؟ هغه وویل: هو علیه السلام لاسونه دآسمان لورته اوچت کړل لاسونه یې لانه وو راښکته کړي چي آسمان په شیبو شیبو اوربدلو پیل وکړ اوغازیانو خپل لوښي له اوبونه ډک کړل اوچي راستانه شوو نودعسکرو له میشت ځایه هاخوا یو ځاځکي هم نه وو اوربدلی (۱)﴿ مِنۢ بَعۡدِ مَا كَادَ يَزِيغُ قُلُوبُ فَرِيقٖ مِّنۡهُمۡ ﴾ وروسته له هغه چي نژدې شوی چي کاږه شي زړونه ديوې ډلي له دوی ( له حق څخه اوشکمن شي داځکه چي سخته مشکلات اوتکالیف یې ولیدل ) ﴿ ثُمَّ تَابَ عَلَيۡهِمۡۚ ﴾ بیا(الله) رجوع په رحمت سره پردوی وکړه څکه پرحق یې ثبات ورکړ اوچي پښېماني یې څرګنده کړه نوالله یې توبه ومنله ﴿ إِنَّهُۥ بِهِمۡ رَءُوفٞ رَّحِيمٞ ﴾ بېشکه چي الله پردوې باندي مهربان زيات رحم والادی ﴿ وَعَلَى ٱلثَّلَٰثَةِ ٱلَّذِينَ خُلِّفُواْ ﴾ او(همداسي توبه قبوله کړه الله) دهغو دريوکسانوچي بيرته پاتي شوي وو ( له غزانه چي کعب بن مالک ، هلال بن أميه اومرارة بن ربيع وو(۲)﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا ضَاقَتۡ عَلَيۡهِمُ ٱلۡأَرۡضُ بِمَا رَحُبَتۡ ﴾ ترهغه پوري چي تنګه شوه پردوی ځمکه سره له ارتوالي ددې ﴿ وَضَاقَتۡ عَلَيۡهِمۡ أَنفُسُهُمۡ ﴾ ( اوتنګ شو پردوی زړونه ددوی ) چي غم اوخفګان ورته ورسېدو خوښي اوخوشحالي ورته لاره نه لرله څکه چي رسول الله صلی الله علیه وسلم خلګوته فرمان صادرکړچي له دوی دريو سره دي خبري اوسلام منع کړي نودوی چي به ډېرو نژدې خپلوانوته هم سلام ور واچاوو هغوی به خواب نه ورېباکاوو آن تردې چي دخپلو مېرمنو اونورو نژدې خپلوانو له خواهم په مقاطعه اوشلون کي راغلل چي دغه هم دپيغمبر عليه السلام حکم وو ترڅوچي الله جل جلاله يې توبه ومنله ﴿ وَظَنُّوٓاْ أَن لَّا مَلۡجَأَ مِنَ ٱللَّهِ إِلَّآ إِلَيۡهِ ﴾ اويقين يې وکړچي ځای دپناه نشته ( دالله له قهره ) مګرهم ده ته (په رجوع کولو ) دی ﴿ ثُمَّ تَابَ عَلَيۡهِمۡ لِيَتُوبُوٓاْۚ ﴾ (بيا الله رجوع وکړه پردوې (په توفيق دتوبې سره ) دپاره ددې چي توبه وباسي دوی) يعني الله يې توبه ومنله ددې لپاره چي په توبه باندي استقامت اوثبات وکړي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلتَّوَّابُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ بېشکه چي الله همدی ښه قبلونکی دتوبې اوښه مهربان دی ( که څه هم دبنده ګناهونه ستراوډېروي خودالله رحمت ویر اوپراخ دی ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَكُونُواْ مَعَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴾ اي هغه کسانوچي دوی ايمان راوړی ( اي مؤمنانو ) له الله نه ووېرېږئ اوله صادقانوسره اوسئ ﴿ مَا كَانَ لِأَهۡلِ ٱلۡمَدِينَةِ وَمَنۡ حَوۡلَهُم مِّنَ ٱلۡأَعۡرَابِ أَن يَتَخَلَّفُواْ عَن رَّسُولِ ٱللَّهِ ﴾ ندی روالپاره دمدينې دخلګواو دهغه چالپاره چي ددوی نه چاپېره صحرايي عرب دي داچي له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه بيرته پاتي کېږي دغه دتبوک له غزانه دپاتي شوو کسانولپاره عتاب دی ﴿ وَلَا يَرۡغَبُواْ بِأَنفُسِهِمۡ عَن نَّفۡسِهِۦۚ ﴾ (اونه (داچي) مينه کوي دوی په ځانونو خپلو له ځانه درسول نه) يعني چي خپل ځانونه له رسول الله نه زيات وبولي اوپه ځان يې هغه څه مشکلات پېرزو نه وي چي په رسول الله يې پېزوينه کوي بلکه دالازم دي چي تر رسول الله صلی الله عليه وسلم خپل ځانونه قربان کړي او له هغه سره يوځای ټول مشکلات اوتکاليف په ځان

(۱) الطبري۱۱-۵۸

(۲) البخاري کتاب المغازي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ومني. زمخشري وايي چي: الله جل جلاله امر كړى ترڅو چي په سختيو او شدائدو كي له رسول الله سره ملګري وي او هغه څه وزغمي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم يې زغمي پدې بايد پوه وي چي پيغمبر صلى الله عليه وسلم په الله باندى ترډوى ګران دى نه داچي دوى پخپله هغه څه نه غواړى چي رسول الله يې د جهاد په ډګر كي سختي زغمي دغه دالله له لورى سخته نهى او د رسول الله د متابعت لپاره هڅونه ده (۱) ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ لَا يُصِيبُهُمْ ظَمَأٌ وَلَا نَصَبٌ وَلَا مَخْمَصَةٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ﴾ دغه (امر د متابعت او نهى د مخالفت ) په سبب ددې دى چي بېشكه دوى ته نه رسېږي تنده او نه ستوماني او نه لوږه په لاره دالله كي ﴿ وَلَا يَطَـُٔونَ مَوْطِئًا يَغِيظُ الْكُفَّارَ وَلَا يَنَالُونَ مِنْ عَدُوٍّ نَّيْلًا ﴾ او نه ږدي قدمونه پر كوم ځاى ( داسي قدمونه ) چي په قهر راولي كفار ولره او نه رسېږي دوى كوم د ښمن ته په رسېدلو سره (چي د هغوى بنديانول ، وژل ، يا لوټول دي ) ﴿ إِلَّا كُتِبَ لَهُم بِهِۦ عَمَلٌ صَـٰلِحٌ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ﴾ مګر ليكلي شوي دي دوى ته په سبب د هر يوه له دغو مذكوره وو شيانو عمل نېک بيشكه چي الله نه خرابوي اجر ( ثواب ) د نېكي كونكو ﴿ وَلَا يُنفِقُونَ نَفَقَةً صَغِيرَةً وَلَا كَبِيرَةً ﴾ او نه لګوي دوى (په جهاد كي ) هيڅ يوه نفقه وړه او نه لويه ؛ ابن عباس رضى الله عنه وايي چي يوه دانه خرما او يا تر هغې پورته ﴿ وَلَا يَقْطَعُونَ وَادِيًا إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ ﴾ او نه قطع كوي هيڅ يوه كنده (يا ميدان په كفارو پسي ) مګر خو ليكلى شي ( ثواب د ) هغه دوى ته ) يعني دوى د جهاد لپاره په مخكه كي تګ راتګ نه كوي مګر خو اجر ورته ثابت شي ﴿ لِيَجْزِيَهُمُ اللَّهُ أَحْسَنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ ( دغه ليكل ) لپاره ددې دى چي الله دوى ته جزا وركړي د هغو ډېرو ښو نېكو كارونو چي دوى به (دالله په لاره كي ) كول. الوسي وايي چي د دوى د اعمالو لپاره ښه جزا او ډېره ښه جزا شته او الله پاک دغه وروستى ډېره ښه جزا ورته غوره كړه (۲) ﴿ وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنفِرُوا كَافَّةً ﴾ او ندي مؤمنان داسي چي ټول ووزي ( يو مخيزه د غزا لپاره چي ښارونه خني خالي شي (۳) ابن عباس رضى الله عنه روايت كوي: چي كله په متخلفينو باندي الله جل جلاله شدت وفرمايل: نو دوى وويل: چي هيڅكله به يوتن زموږ له غزا او سريې څخه پاتي نشو كله چي رسول الله صلى الله عليه وسلم مديني منورې ته تشريف راووړ او د كفارو مقابلې ته يې (سرايا ) واستولې نو ټول مؤمنان غزاته ووتل او ستر پيغمبر عليه السلام يې په مدينه منوره كي يوازي پرېښود بيا دا آيت نازل شو (۴) ﴿ فَلَوْلَا نَفَرَ مِن كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ ﴾ ( نو ولي نه ځي له هري ډلي له دې مؤمنانو نه يوه ټولى ؟ ) يعني څرنګه چي د ټولو تلل غير ممكن دي او مصلحت هم پكي نشته نو ولي له ډېرو خلكو څخه يو كوچنى ټولګى نه درومي ﴿ لِّيَتَفَقَّهُوا فِى الدِّينِ ﴾ لپاره

---

(۱) الكشاف ۲-۳۳۶

(۲) روح المعاني ۱۱-۴۷

(۳) چا بيا ويلي دى علم د طلب لپاره

(۴) الرازى ۱۲-۲۳۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar net



ددې چي پوهه پيدا کړي (دغه تلونکي ) په دين کي ( اوربرونه په خان ومني ) ﴿ وَلِيُنذِرُواْ قَوۡمَهُمۡ إِذَا رَجَعُوٓاْ إِلَيۡهِمۡ لَعَلَّهُمۡ يَحۡذَرُونَ ﴾ اولپاره ددې چي خپل قوم ته خبر ورسوي کله چي بيرته راستانه شي دهغوی په لوري لپاره ددې چي هغوی وويريږي ( له الله اوځانونه له معاصيو وژغوري ) يعني ددې لپاره چي خپل تبر اوقوم وويروي او ورته لاربښوونه وکړي کله چي هغه له غزاڅخه ورته راستانه شي ښايې چي دالله له عذاب څخه د اوامرو په امتثال او دنواهيو په اجتناب سره وويريږي. الوسي وايې چي ظاهر اوڅرګند خوداوو چي فرمايلي يې وای ( ليعلموا ) د(لينذروا ) پرځای اوهمدارنګه د(يفقهون) کلمه د (يحذرون) پرځای راغلي وای خوپه قرآني اعجاز دغه دوه کلماتي څکه غوره شوې چي دې ته اشاره وکړي چي لائق او وړ داده چي دمعلم مقصد ارشاد او وېرول وي او دمتعلم اوزده کونکي مقصد بيا وېره او پرهېزګاري وي نه استکبار اود ونډې پراخوالی(١) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ قَٰتِلُواْ ٱلَّذِينَ يَلُونَكُم مِّنَ ٱلۡكُفَّارِ ﴾ اې هغو کسانو چي ايمان يې راوړی دی ( اې مؤمنانو ) جنګ کوئ تاسي له هغو کفارو سره چي تاسوته څېرمه اونژدې دي ) يعني لومړی خپله خواوشا دمشرکانو له پليتي څخه پاکه کړئ اوبيا په نوروپسي ولېږدئ غرض له دې نه هغه خورا ښه او غوره کارکرده ګي ده چي هغه ترټولو نژدې دي ووژنئ او وروپسې بيا هغه بل نژدې ﴿ وَلۡيَجِدُواْ فِيكُمۡ غِلۡظَةٗۚ ﴾ او ودې مومي په تاسي کي کلک والی ( زيږوالی) ﴿ وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلۡمُتَّقِينَ ﴾ اوپوه شئ اې مؤمنانو چي ببشکه الله له پرهېزګارانو سره دی (په مرسته اومددکي) ﴿ وَإِذَا مَآ أُنزِلَتۡ سُورَةٞ فَمِنۡهُم مَّن يَقُولُ أَيُّكُمۡ زَادَتۡهُ هَٰذِهِۦٓ إِيمَٰنٗاۚ ﴾ اوکله چي نازل کړی شي کوم سورت دقرآن نوځيني له دغو ( منافقانو څخه هغه دي چي وايې (دملنډوپه ډول ) کوم يو له تاسوته دغه سورت ايمان ور زيات کړ) دغه يې دقرآنکريم داستخفاف اوسپکاوي لپاره ويل اولکه چي دوی به ويل پدې کي کوم دتعجب خبره ياکوم دليل شته ؟ الله جل جلاله فرمايې: ﴿ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ فَزَادَتۡهُمۡ إِيمَٰنٗا ﴾ نوهغه کسان چي ايمان لرونکي دی نوزيات کړ (دغه سورت ) دوی ته ايمان (څکه چي ددوی لپاره نوي نوي براهين اودلائل راغلل نوباور يې لازيات شو ﴿ وَهُمۡ يَسۡتَبۡشِرُونَ ﴾ حال داچي دوی خوشحالېږي (په نازلېدلويې څکه ددوی ايمان ورزياتوي ﴿ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٞ ﴾ اوهغه کسان چي په زړونوددوی کي (رنځ) دی ( دنفاق اوشک ) ﴿ فَزَادَتۡهُمۡ رِجۡسًا إِلَىٰ رِجۡسِهِمۡ ﴾ (نوزياتوي دوی ته ګندګي پرګندګي ددوی ) يعني په نفاق يې نور ور زياتوي اويه کفريې لانور کفر ورتپي ﴿ وَمَاتُواْ وَهُمۡ كَٰفِرُونَ ﴾ اومري دوی پدې حال چي دوی کافران دي ﴿ أَوَلَا يَرَوۡنَ أَنَّهُمۡ يُفۡتَنُونَ فِي كُلِّ عَامٖ مَّرَّةً أَوۡ مَرَّتَيۡنِ ﴾ آيا(فکرنکوي ؟) اونه ګوري دوی چي ببشکه دوی مبتلا کولی شي په هريوه کال کي يوکرت ، يادوه کرته ( په ډول ډول مصيبتونوباندي چي ددوی په هکله وحی رانازلېږي ) همزه دانکار اوتوبيخ لپاره ده يعني ددغومنافقينو اسرار اورازونه افشاء کېږي ﴿ ثُمَّ لَا يَتُوبُونَ وَلَا هُمۡ يَذَّكَّرُونَ ﴾ بيا له سره هغوی (له نفاقه) توبه نه کوي اونه دوی پند اخلي ﴿ وَإِذَا مَآ أُنزِلَتۡ

---

(١) روح المعاني

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



سُورَةٌ نَّظَرَ بَعۡضُهُمۡ إِلَىٰ بَعۡضٍ هَلۡ يَرَىٰكُم مِّنۡ أَحَدٍ ثُمَّ ٱنصَرَفُواْۚ ﴾ او كله چي نازل كړى شي كوم سورت (چي پكي دمنافقينو عيب وي او دوى په پيغمبري مجلس كي ناست وي ) وگوري ځيني ددوى ځينونوروته (آيا وينئ تاسو كوم يو؟! مسلمان كه به چادوى نه ليدل نو پاڅېدل به ) بيابه لاړل ځكه داوريدلو زغم يې نه لاره چي قرآن كريم به ددوى رازونه لوڅول ﴿ صَرَفَ ٱللَّهُ قُلُوبَهُم ﴾ گرزولي دي الله زړونه ددوى ( له ايمان اوهدايت نه ) دغه دعائيه جمله ده ﴿ بِأَنَّهُمۡ قَوۡمٞ لَّا يَفۡقَهُونَ ﴾ په سبب ددې چي دوى هسي قوم دى چي نه پوهېږي (په حق اونه پكي سوچ او تدبركوي دوى سوچه احمقان دي . ﴿ لَقَدۡ جَآءَكُمۡ رَسُولٞ مِّنۡ أَنفُسِكُمۡ ﴾ خامخا په تحقيق راغلى دى تاسي ته يو رسول له جنسه ستاسي ( اې قومه ستاسو له جنسه قريشي عربي الهي استازى دى ﴿ عَزِيزٌ عَلَيۡهِ مَا عَنِتُّمۡ حَرِيصٌ عَلَيۡكُم بِٱلۡمُؤۡمِنِينَ رَءُوفٞ رَّحِيمٞ ﴾ چي ډېر سخت درونددى په ده هغه كارچي تاسي تكليف مومئ ( له هغه ) ډېر حرصناك دى په (هدايت د تاسو) خاص په مؤمنانو باندي ډېر مشفق او نهايت مهربان دى ( په گنهگارانو ) ابن عباس وايي : الله پاك پيغمبر په دوو خپلو مباركو نومونو(رَءُوفٞ رَّحِيمٞ ) سره ونوماوو(١)﴿ فَإِن تَوَلَّوۡاْ فَقُلۡ حَسۡبِيَ ٱللَّهُ ﴾ نو كه وگرځېدل داخلك له ايمانه راوړلو پرتا ( اې محمده ! ) نو ووايه ماته الله كافي دى ﴿ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَۖ عَلَيۡهِ تَوَكَّلۡتُۖ وَهُوَ رَبُّ ٱلۡعَرۡشِ ٱلۡعَظِيمِ ﴾ نشته هيڅ لائق دعبادت مگرهم دى (خاص) پرهمده باندي ماتوكل كړى دى ( له ده پرته له چانه نه ويرېږم ) حال داچي همدى رب (مالك ) دعرش عظيم دى هغه عرش چي په ټولو شيانو محيط دى ځكه هغه ترټولو ستراوله يوالله پرته يې بل چاته دلوى والي اندازه معلومه نه ده.

بلاغت : - ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ ٱشۡتَرَىٰ ﴾ دلته تبعيه استعاره ده ددوى دځانونو اومالونو بذل (قربانول) اوپه بدل كي يې ثواب په جنتونو سره وركېدل له بيع اوشرآء سره مشابه گڼل شوي دي.

٢ - پدې كلام كي چي الله پاك فرمايي : ﴿ فَيَقۡتُلُونَ وَيُقۡتَلُونَۖ ﴾ دلته ناقص جناس صنعت دى چي په شكل كي اختلاف لري اودغه هم بديعي صنعت دى.

٣ - ﴿ ٱلرَّٰكِعُونَ ٱلسَّٰجِدُونَ ﴾ دلته له دې دواړونه لمونځ كونكي مقصد دي اودمجازمرسل په توگه راوړل شوي چي اطلاق دجزء اواراده دكل ځيني كېږي اوركوع سجده يې له نورو اركانو ځكه ځانگړي راوړه چي هغه ترنورو غوره اودشرافت خاوند دي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي : ( أقرب مايكون العبدمن ربه وهوساجد )(٢) يعني دانسان ترټولو نژدې حالت پرودگارته دسجدې حال دى.

٤ - ﴿ وَبَشِّرِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ دلته داضمار پرځاى اظهارراغلى چي ددوى تعظيم پرځاى او ورته پاملرنه وشي.

٥ - پدې كلام كي چي فرمايي : ﴿ مَّوۡعِدَةٖ وَعَدَهَآ ﴾ اشتقاقي جناس دى.

---

(١) زاد المسير ٣-٥٢١

٢ - تلخيص البيان

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



٦ - ﴿ لِيُضِلَّ قَوْمًا بَعْدَ إِذْ هَدَىٰهُمْ ﴾ ددوى ترمينځ دطباق صنعت دى او همداراز د ﴿ يُحْيِۦ وَيُمِيتُ ﴾ ترمنيځ لكه چي د ﴿ رَحُبَتْ وَضَاقَتْ ﴾ ترمينځ هم نوموړى صنعت شته دى.

٧ - دادواړه صيغې چي ﴿ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴾ دمبالغې ګڼلى شي.

٨ - پدې كلام كي ﴿ يَطَـُٔونَ مَوْطِئًا ﴾ اوهمداسي په ﴿ يَنَالُونَ مِنْ عَدُوٍّ نَّيْلًا ﴾ كي اشتقاقي جناس نغښتى دى.

٩ - ﴿ صَغِيرَةً وَلَا كَبِيرَةً ﴾ دلته دطباق صنعت دى.

١٠ - كله چي الله فرمايي: ﴿ فَزَادَتْهُمْ رِجْسًا إِلَىٰ رِجْسِهِمْ ﴾ په تلخيص البيان كي راوړي چي سورت خو ددوى پليتي نوره نه ورزياتوي اونه په زړونوكى ناروغي ورپيدا كوي بلكه دزړونو لپاره شفا، روغتيا او خلاده خو كله چي منافقين دآيتونو په نازلېدو لاړانده شي اونه يې مني نودغه يې ګواكي نوره هغه ناولي توب دى چي په مجازي ډول يې سورت ته نسبت وشو.

تنبيه:

روايت كېږي چي دانصارو يوتن ابوخيثمه انصاري سمسوربڼ اوښايسته مېرمن درلوده هغې ورته په باغ كي ترسيوري لاندي دناستي ځاى تيار كړى وو اونوي تازه خرماوي اوسړې اوبه يې ورته ايښي وې هغه چي وكتل خوندور سيورى، خوږې اوپخې خرماوي دحسن خاوند مېرمن او بل لوري ته رسول الله صلى الله عليه وسلم په سختوګرمو بادونواو دوړوكي ؟ دغه دخير اوبركت خبره نه ده نو راپاڅېدو اوخپله اوښه يې راولاړه كړه توره اونېزه يې راواخيسته لكه بادغوندي په رسول الله صلى الله عليه وسلم پسي راروان شو هلته پيغمبرصلى الله عليه وسلم چي دشاپه لوري وكتل يو سپور معلومېدو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دغه سړى دي ابوخيثمه وي اوچي لښكرته نژدې راغى هم پخپله ابوخيثمه رضى الله عنه وو نورسول الله صلى الله عليه وسلم يې په راتګ خوشحاله اودبښني دعاېې ورته وكړه.

الله ته په پيل اوپاى كي حمد دى چي دتوبة سورت تفسير بشپړشو.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



# د يونس سورت مكي او يو سل نه آيتونه لري

## د سورت په ورانډي:

د يونس سورت له مكي هغو سورتونو څخه يو دى چي د اسلامي عقيدې بنسټونو ته پاملرنه كوي چي ايمان په الله تعالى ايمان په كتابونو، پيغمبرانو، پاڅېدلو (بعث) او جزاء باندي دى په دې سورت كي د ټولو آسماني رسالتونو په هكله توجه كول دى خو په ځانګړي توګه د قرآنكريم په باب چي تر ټولو كتابونو وروستى او بشپړونكى آسماني كتاب او تلپاتي معجزه ده چي د وختونو په تېرېدلو له مينځه نه ځي.

* سورت په لمړي پيل كي له رسالت او رسول څخه خبري كوي او داسي بيانوي چي دغه په رومبنيو او وروستنيو كي يو الهي سنت دى هيڅ داسي امت به نه وي چي استازى ورته نه وي راغلى نو مشركان دي پدې تعجب نه كوي چي خاتم المرسلين ذات ورته د پيغمبر په توګه راغلى دى ﴿ أَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا أَنْ أَوْحَيْنَا إِلَىٰ رَجُلٍ مِّنْهُمْ أَنْ أَنذِرِ النَّاسَ ﴾ يونس ٢ بيا وروسته آيتونه د الوهيت او عبوديت حقيقت څېړي او د خالق او مخلوق ترمينځ د تړاو تادو راسپړي او خلكو ته د دوى خپل حق الله وروپېژني چي دوى ته ښايي د الله عبادت وكړي څكه هغه خالق، رازق، ژوندي كونكى او وژونكى دى هغه د حكمت خاوند او تدبيرلرونكى له ده پرته ټول باطل او ناروا دي ﴿ إِنَّ رَبَّكُمُ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ﴾ يونس ٣

* سورت د مشركانو د ريز د قرآن كريم او رسالت په هكله څرګندوي او دا بيانوي چي همدغه قرآن تلپاتي معجزه چي د پيغمبر په رښتنولي دلالت كوي او معجزه په دې ده چي د اعجاز په توګه يې دوى ته تحدي (چيلنج) وركړى چي د دې قرآن په مثل يو سورت راوړئ خو دوى يې له راوړلو څخه عاجز شوي سره له دې چي دوى په فصاحت او بلاغت كي د خورا لوړي مرتبې خاوندان وو ﴿ أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَاهُ ۖ قُلْ فَأْتُوا بِعَشْرِ سُوَرٍ مِّثْلِهِ مُفْتَرَيَاتٍ وَادْعُوا مَنِ اسْتَطَعْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴾ هود ١٣

* دغه مبارك سورت خلكو ته د برحق معبود صفتونه وربنيي د هغه جل جلاله د قدرت او رحمت آثار ورته بيانوي هغه چي په حكمت او تدبير يې دلالت كوي او داسي د دغه ليدلي كائناتو په هكله چي د الله دستر قدرت څه مظاهر دى هغه د الله جل جلاله په عظمت، جلال او سلطان باندي څرګند دلائل دي بيانوي ﴿ قُلْ مَن يَرْزُقُكُم مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أَمَّن يَمْلِكُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ ﴾ يونس: ٣١ د آيتونو تر پايه او دغه ګواكي تر ټولو ستره قضيه او پېښنه ده چي د الله په وحدانيت باندي د ايمان راوړلو موضوع ټاكي او د لوى الله قدرت په څو ډوله سمعي او عقلي دلائلو سره ورانډي كوي.

* سورت د ځينو انبياوو عليهم السلام كيسې راوړي د نوح عليه السلام كيسه له خپله قومه سره او د موسى عليه السلام كيسه له سرغړونكي فرعون سره او د يونس عليه السلام هغه يونس (ع) چي دغه سورت يې په نامه نومول شوى كيسه راوړي تر څو وښيې چي دغه د الله جاري سنت او دود دى چي ظالمان هلاكوي او مؤمنانو ته نصرت وركوي.

* په پاى كى مبارك سورت پدې پاى ته رسېږي چي رسول الله ته حكم كوي تر څو د الله په شريعت منګولي ولګوي او د الله په لاركي چي څومره تكليف ورته رسي ورباندي صبر دي وكړي فرمايي: ﴿ وَاتَّبِعْ مَا يُوحَىٰ إِلَيْكَ وَاصْبِرْ حَتَّىٰ يَحْكُمَ اللَّهُ ۚ وَهُوَ خَيْرُ الْحَاكِمِينَ ﴾ يونس: ١٠٩

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



### تسمیه او نو مول یې:

دغه سورت ته دیونس سورت خکه وایې چې کیسه یې پکې راغلې ده او داچې پند او عبرت پکې دی الله پاک یې له قوم څخه عذاب پورته کړ هله چې دوی ایمان راوړ دا وروسته له دې چې نژدې وو عذاب او بلا وربانديی را پربوتی وای او دغه له هغو خانګړتیاوو څخه دی چې الله پاک دیونس علیه السلام امت وربانديی نازولی دی چې په رښتوني یې توبه وایستله او ایمان یې راووړ.

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

الٓرۚ تِلۡكَ ءَايَٰتُ ٱلۡكِتَٰبِ ٱلۡحَكِيمِ (١) أَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا أَنۡ أَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰ رَجُلٖ مِّنۡهُمۡ أَنۡ أَنذِرِ ٱلنَّاسَ وَبَشِّرِ ٱلَّذِينَ
ءَامَنُوٓاْ أَنَّ لَهُمۡ قَدَمَ صِدۡقٍ عِندَ رَبِّهِمۡۗ قَالَ ٱلۡكَٰفِرُونَ إِنَّ هَٰذَا لَسَٰحِرٞ مُّبِينٌ (٢) إِنَّ رَبَّكُمُ ٱللَّهُ ٱلَّذِي خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ
وَٱلۡأَرۡضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٖ ثُمَّ ٱسۡتَوَىٰ عَلَى ٱلۡعَرۡشِۖ يُدَبِّرُ ٱلۡأَمۡرَۖ مَا مِن شَفِيعٍ إِلَّا مِنۢ بَعۡدِ إِذۡنِهِۦۚ ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبُّكُمۡ
فَٱعۡبُدُوهُۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ (٣) إِلَيۡهِ مَرۡجِعُكُمۡ جَمِيعٗاۖ وَعۡدَ ٱللَّهِ حَقًّاۚ إِنَّهُۥ يَبۡدَؤُاْ ٱلۡخَلۡقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥ لِيَجۡزِيَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ
وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ بِٱلۡقِسۡطِۚ وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَهُمۡ شَرَابٞ مِّنۡ حَمِيمٖ وَعَذَابٌ أَلِيمُۢ بِمَا كَانُواْ يَكۡفُرُونَ (٤) هُوَ ٱلَّذِي
جَعَلَ ٱلشَّمۡسَ ضِيَآءٗ وَٱلۡقَمَرَ نُورٗا وَقَدَّرَهُۥ مَنَازِلَ لِتَعۡلَمُواْ عَدَدَ ٱلسِّنِينَ وَٱلۡحِسَابَۚ مَا خَلَقَ ٱللَّهُ ذَٰلِكَ إِلَّا بِٱلۡحَقِّۚ
يُفَصِّلُ ٱلۡأٓيَٰتِ لِقَوۡمٖ يَعۡلَمُونَ (٥) إِنَّ فِي ٱخۡتِلَٰفِ ٱلَّيۡلِ وَٱلنَّهَارِ وَمَا خَلَقَ ٱللَّهُ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ لَأٓيَٰتٖ لِّقَوۡمٖ
يَتَّقُونَ (٦) إِنَّ ٱلَّذِينَ لَا يَرۡجُونَ لِقَآءَنَا وَرَضُواْ بِٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا وَٱطۡمَأَنُّواْ بِهَا وَٱلَّذِينَ هُمۡ عَنۡ ءَايَٰتِنَا غَٰفِلُونَ
(٧) أُوْلَٰٓئِكَ مَأۡوَىٰهُمُ ٱلنَّارُ بِمَا كَانُواْ يَكۡسِبُونَ (٨) إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ يَهۡدِيهِمۡ
رَبُّهُم بِإِيمَٰنِهِمۡۖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهِمُ ٱلۡأَنۡهَٰرُ فِي جَنَّٰتِ ٱلنَّعِيمِ (٩) دَعۡوَىٰهُمۡ فِيهَا سُبۡحَٰنَكَ ٱللَّهُمَّ وَتَحِيَّتُهُمۡ فِيهَا سَلَٰمٞۚ
وَءَاخِرُ دَعۡوَىٰهُمۡ أَنِ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ (١٠) ۞ وَلَوۡ يُعَجِّلُ ٱللَّهُ لِلنَّاسِ ٱلشَّرَّ ٱسۡتِعۡجَالَهُم بِٱلۡخَيۡرِ
لَقُضِيَ إِلَيۡهِمۡ أَجَلُهُمۡۖ فَنَذَرُ ٱلَّذِينَ لَا يَرۡجُونَ لِقَآءَنَا فِي طُغۡيَٰنِهِمۡ يَعۡمَهُونَ (١١) وَإِذَا مَسَّ ٱلۡإِنسَٰنَ ٱلضُّرُّ
دَعَانَا لِجَنۢبِهِۦٓ أَوۡ قَاعِدًا أَوۡ قَآئِمٗا فَلَمَّا كَشَفۡنَا عَنۡهُ ضُرَّهُۥ مَرَّ كَأَن لَّمۡ يَدۡعُنَآ إِلَىٰ ضُرّٖ مَّسَّهُۥۚ كَذَٰلِكَ زُيِّنَ لِلۡمُسۡرِفِينَ
مَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ (١٢) وَلَقَدۡ أَهۡلَكۡنَا ٱلۡقُرُونَ مِن قَبۡلِكُمۡ لَمَّا ظَلَمُواْ وَجَآءَتۡهُمۡ رُسُلُهُم بِٱلۡبَيِّنَٰتِ وَمَا كَانُواْ
لِيُؤۡمِنُواْۚ كَذَٰلِكَ نَجۡزِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلۡمُجۡرِمِينَ (١٣) ثُمَّ جَعَلۡنَٰكُمۡ خَلَٰٓئِفَ فِي ٱلۡأَرۡضِ مِنۢ بَعۡدِهِمۡ لِنَنظُرَ كَيۡفَ تَعۡمَلُونَ
(١٤) وَإِذَا تُتۡلَىٰ عَلَيۡهِمۡ ءَايَاتُنَا بَيِّنَٰتٖ قَالَ ٱلَّذِينَ لَا يَرۡجُونَ لِقَآءَنَا ٱئۡتِ بِقُرۡءَانٍ غَيۡرِ هَٰذَآ أَوۡ بَدِّلۡهُۚ قُلۡ مَا
يَكُونُ لِيٓ أَنۡ أُبَدِّلَهُۥ مِن تِلۡقَآيِٕ نَفۡسِيٓۖ إِنۡ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰٓ إِلَيَّۖ إِنِّيٓ أَخَافُ إِنۡ عَصَيۡتُ رَبِّي عَذَابَ يَوۡمٍ
عَظِيمٖ (١٥) قُل لَّوۡ شَآءَ ٱللَّهُ مَا تَلَوۡتُهُۥ عَلَيۡكُمۡ وَلَآ أَدۡرَىٰكُم بِهِۦۖ فَقَدۡ لَبِثۡتُ فِيكُمۡ عُمُرٗا مِّن قَبۡلِهِۦٓۚ
أَفَلَا تَعۡقِلُونَ (١٦) فَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّنِ ٱفۡتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا أَوۡ كَذَّبَ بِـَٔايَٰتِهِۦٓۚ إِنَّهُۥ لَا يُفۡلِحُ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

ٱلْمُجْرِمُونَ ﴿۱۷﴾ وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنفَعُهُمْ وَيَقُولُونَ هَٰٓؤُلَآءِ شُفَعَٰٓؤُنَا عِندَ
ٱللَّهِ ۚ قُلْ أَتُنَبِّـُٔونَ ٱللَّهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَلَا فِى ٱلْأَرْضِ ۚ سُبْحَٰنَهُۥ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿۱۸﴾ وَمَا كَانَ
ٱلنَّاسُ إِلَّآ أُمَّةً وَٰحِدَةً فَٱخْتَلَفُوا۟ ۚ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ لَقُضِىَ بَيْنَهُمْ فِيمَا فِيهِ
يَخْتَلِفُونَ ﴿۱۹﴾ وَيَقُولُونَ لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْهِ ءَايَةٌ مِّن رَّبِّهِۦ ۖ فَقُلْ إِنَّمَا ٱلْغَيْبُ لِلَّهِ فَٱنتَظِرُوٓا۟ إِنِّى مَعَكُم مِّنَ
ٱلْمُنتَظِرِينَ ﴿۲۰﴾ ﴾ يونس: ۱ - ۲۰

## لغتونه:

(قدم صدق) ليث وايي چي دقدم معنا پخوانی : اوابوعبيده وايي په خير اوشركي مخكښ ته (قدم) وايي، أخفش وايي چي معنايي داخلاص سابقه ده (يدبر) په حكمت باندي ديوشي اندازه كول اوچلول ( القسط) عدل (حميم) سخته گرمي اوبه چي وروستی مرحلې ته رسېدلي وي يعني ايشېدلي اوبه ( يفصل) له فصل څخه اخيستل شوی تفصيل ، بيان او څرگندوني ته وايي ( يعمهون) حيران (خلائف) دخليفه جمع اوديو چاناٸب ته ويلی شي.

## دنزول سبب:

ابن عباس رضی الله عنه وايي : كله چي الله جل جلاله محمدصلی الله عليه وسلم دپيغمبر په توگه استازی راولېږه نوكافرانو وويل: چي الله جل جلاله خودېرستر ذات دی نو نه ښايي چي استازی يې يوبشر وی آياالله پاک دابوطالب له يتيم څخه بل څوک ونه موندچي په پيغمبري يې وټاكي نوالله داآيت نازل كړ: ﴿ أَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا أَنْ أَوْحَيْنَآ إِلَىٰ رَجُلٍ مِّنْهُمْ أَنْ أَنذِرِ ٱلنَّاسَ ﴾ دآيت ترپايه[1]

## تفسير:

﴿ الٓر ﴾ پدې كي دې پلوته اشاره ده چي دغه معجزكلام دی له داسي توروجوړشوی چي تاسوهم په هغوگړېږئ نوددغوتورو اوحروفو څخه دغه كتاب جوړشوی چي ستاسوپه لاس كي درته نژدې دی خو ديوآيت له جوړولو څخه يې عاجز ياست[2] ﴿ تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْكِتَٰبِ ٱلْحَكِيمِ ﴾ دغه آيتونه دي دكتاب ( قرآن) محكم ) چي څرگنداوهيڅ شک اوشبه ورته لاره نلري نه هم دروغ اوتناقض پكي رابرسېره كېږي ﴿ أَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا أَنْ أَوْحَيْنَآ إِلَىٰ رَجُلٍ مِّنْهُمْ ﴾ آيادې خلكو ( دمكې) ته تعجب دی ( ددې خبري ) چي وحی وكړه موږ يوسړي ته له دوی نه (چي هغه محمدصلی الله عليه وسلم دی ؟ همزه داستفهام انكاري لپاره ده بلكه پدې كي دتعجب خبره نه ده دالله جل جلاله همدغه عادت اودستوردی چي په پخوانيوامتونو كي يې هم رسولانوته وحی كوله ترڅودوی دالله رسالت ورسوي ﴿ أَنْ أَنذِرِ ٱلنَّاسَ ﴾ چي ووېروي خلک (كفارله عذابه داورڅخه ) ﴿ وَبَشِّرِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَنَّ لَهُمْ قَدَمَ صِدْقٍ عِندَ رَبِّهِمْ ﴾ اوزيری وركړه مؤمنانوته چي ببشكه شته دوی ته مرتبه لويه ( اوسابقه ) په نزدد رب

---

(۱) البيضاوي ص ۲۳۵
(۲) المختصر ۲-۲۵

Bawar.net



ددوى (ښکه دوى نېک عملونه کړي دي ) ﴿ قَالَ ٱلْكَـٰفِرُونَ إِنَّ هَـٰذَا لَسَـٰحِرٌ مُّبِينٌ ﴾ ( نو وايي داکافران چي بېشکه دغه ( محمد ) خامخاښکاره کوډګردى ) يعني سره له دې چي درسول الله رښتنولي اوډقرآن اعجاز ښکارندوي ځکه دي خومشرکان بياهم وايي چي هغه کوډګردى اوپخپله دعوى کي سم اوپه حق نه دي. بيضاوي وايي چي: په دې کي ددې اعتراف دى چي دوى له پيغمبرعليه السلام څخه داسي شيان وليدل هغه خارق العادة اودوى نشواى کولاى همغسي وکړي نودغه ګواکي ددوي له لوري په غيرشعوري توګه اقرار دى چي کوم څيزونه چي پيغمبرېي راوړي دغه دبشر له توان څخه وتلي دي(١) ﴿ إِنَّ رَبَّكُمُ ٱللَّهُ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ ﴾ بېشکه چي ستاسي رب هغه الله دى چي پيداکړي يې دي آسمانونه اوځمکه په شپږ ورځي کي يعني ستاسي پروردګار اود امورو چلونکى هغه ذات دى، چي تاسولره ښايي يوازي دهغه عبادت وکړئ کوم چي ټول کائنات يې په شپږورځي موده ددنيا د ورځوپه اندازه پنځولي ( پيداکړي ) دي اوکه يې غوښتي واى دسترګوپه رپ کي به يې پيداکړي وو خوددې لپاره چي د ورو اوپه کراره کارونو دترسره کولو تعليم درکړي همداسي يې پيداکړل ﴿ ثُمَّ ٱسْتَوَىٰ عَلَى ٱلْعَرْشِ ﴾ بيايي استواء وکړه پرعرش باندي (هسي استواء چي دالله له جلال سره ښايي بلاکيفه ولاشبه ولاتعطيل نه. ابن کثيروايي دلته موږ دسلف صالحينو لاره نيسو چي هغوى استواء له تعطيله پرته بولي اوتشبيه يې نکوي اوڅوک چي تشبيه يې کوي هغه دالله په شان کي نفى دى ځکه له الله سره دهغه دمخلوق هيڅ څيز هم مشابه نه ګڼل کېږي نوچاچي دالله لپاره هغه څه چي صراحةً آيتونه ورباندي ناطق دي اوياصحيح حديثونه راغلي پداسي ډول چي دالله له جلال سره ښايي ثابت وګڼل نودهدايت لاره يې ونيوه ( ) ابو السعودوايي چي: په عرش يې داسي استواء وکړه لکه چي دالله قصداوغوښتنه وه دغه استوا دالله لپاره بلاکيف يوصفت دى الله له تمکن اواستقرار څخه منزه اوپاک دى دغه وروسته دالله دشان له عظمت نه دالله دپاچهي اوجلال ننبه ده (٢) .

﴿ يُدَبِّرُ ٱلْأَمْرَ ﴾ تدبيرکوي دټولوکارونو (دخلکوڅرنګه چي يې حکمت اومصلحت غوښتنه کوي. ابن عباس رضى الله وايي چي دخلکو دامورو له تدبيرڅخه يې هيڅوک مشغول کولاى نشي. ﴿ مَا مِن شَفِيعٍ إِلَّا مِنۢ بَعْدِ إِذْنِهِۦ ﴾ نشته هيڅ شفاعت کونکى (په ورځ دقيامت کي ) مګر وروسته له اذنه دالله جل جلاله دده لپاره دشفاعت کولو اوپدې کي دمشرکانو دعقيدې ترديدى چي دوى به ګمان کاوو اوويل به يې بتان به زموږ شفاعت کوي ﴿ ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبُّكُمْ فَٱعْبُدُوهُ ﴾ (دغه (الله) ستاسي رب دى نودده عبادت کوئ ) يعني دغه عظيم الشان ذات ستاسوپر وردګار اوپيداکونکى دى له ده پرته بل رب نشته نو يوازي دده عبادت وکړئ ﴿ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴾ آيانوپند نه اخلئ؟ يعني تاسو پوهېږئ چي همدغه ذات يوازي خالق اوپيداکونکى دى خوبياتاسي له ده سره دبل چاعبادت هم کوئ ﴿ إِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا ﴾ هم ده ته ورتله ستاسي ټولودي ﴿ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقًّا ﴾ الله حقه وعده کړي ده ؛ چي پکي تغيراوتبديل نشي کېداى اوپدې کي دهغي عقيدې بطلان دى څوک چي قيامت

---

(٢) ابو السعود ٢-٣٠٧

(١) البيضاوي ص ٢٣٦

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اوبیرته راپاڅېدل (بعث) نه مني اووايي: ﴿ وَقَالُوا مَا هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوتُ وَنَحْيَا وَمَا يُهْلِكُنَا إِلَّا الدَّهْرُ ﴾ ﴿ إِنَّهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ ﴾ بېشکه دی اول پيداکوي دامخلوق بيايې (پس له مرګه) ژوندي کوي (لکه چي لومړی يې پيداکړی) ﴿ لِيَجْزِيَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ بِالْقِسْطِ ﴾ لپاره ددې چي جزا ورکړي هغوکسانوته چي ايمان يې راوړی دی اوکړي يې دي ښه (عملونه) په عدل اوانصاف سره بشپړه جزا ﴿ وَالَّذِينَ كَفَرُوا لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ ﴾ اوهغه کسان چي کافران شوي دي شته دوی ته څښل له ايشېدلو اوبو (په دوزخ کي) ﴿ وَعَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ ﴾ اوعذاب دردناک په سبب ددې چي وو دوی کافران کېدل) يعني په سبب دکفر اوشرک ددوی. بيضاوي وايې چي: آيت شريف لکه علت غوندي دی څکه مقصدله پيدا ايښت اوبيارا ژوندي کولو څخه دمکلفينو پخپلو اعمالو باندي مجازات کول دي نوخامخا تول الله ته تلونکي دي([1]) ﴿ هُوَ الَّذِي جَعَلَ الشَّمْسَ ضِيَاءً وَالْقَمَرَ نُورًا ﴾ الله هغه ذات دی چي ګرځولی يې دی لمرځلېدونکی اوسپوږمۍ روښانه) آيت دالله جل جلاله دقدرت او وحدانيت په دلائلو دتنبيه لپاره دی چي دالله په قدرت په ورځ کي لمر رڼا اودځراغ په شان ځلېدونکی دی اودالله درحمت په توګه په شپه کي بياسپوږمۍ روښانه وي ځرنګه چي لمر لوی دی نويې په رڼا اوځلاسره هغه ځانګړې کړ او(ضياء) هغه ته وايې چي ځلا اورڼاوي. طبري وايې معناداچي لمرته يې ضيا اوسپوږمۍ ته يې روښنايې وربښلي ده([2]) ﴿ وَقَدَّرَهُ مَنَازِلَ لِتَعْلَمُوا عَدَدَ السِّنِينَ وَالْحِسَابَ ﴾ اومقدرکړي يې دي هريوه ته منزلونه لپاره ددې چي تاسي په شمېر دکلونو اوحساب (دمياشتو ورځو) پوه شئ) څکه چي په لمرباندي ورځي پېژندلي کېږي اوپه سپوږمۍ بيامياشتي اوکلونه ﴿ مَا خَلَقَ اللَّهُ ذَلِكَ إِلَّا بِالْحَقِّ ﴾ الله ندي پيداکړي داڅېزونه مګرپه حقه (عبث نه دي) سترحکمت اولويه ګټه پکي خوندي ده ﴿ يُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴾ په تفصيل سره بيانوي (ظاهروي) (الله) دلائل دقدرت) دپاره دقوم چي پرې پوهېږي (اوپه حکمت کي يې سوچ کوي. ابوالسعود وايې: معناداچي دکائناتو په پيداکولو کي (الله جل جلاله) په حکمت پوهېږي اوددوی په سبب دخالق جل وعلی په شان باندي استدلال کوي([3]) ﴿ إِنَّ فِي اخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ ﴾ بېشکه په اختلاف دشپې او ورځي کي چي يوپه بل پسي راځي شپه راشي ورځ ولاړه شي، ورځ راشي شپه بوزي ﴿ وَمَا خَلَقَ اللَّهُ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ اوپه هغوڅېزونوکي چي الله په آسمانونو اوځمکي کي پيداکړي دي (له مصنوعاتو څخه) ﴿ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَتَّقُونَ ﴾ خامخادلائل (دقدرت) دي لپاره دقوم چي وېرېږي (له عذابه دده اوځان له ګناه ژغوري) يعني پدې کي سترلائل او لوی براهين دصانع په وجود اووحدت باندي شته چي بشپړ قدرت اوعلم يې ګواهي ورکوي ﴿ إِنَّ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا ﴾ بېشکه هغه کسان چي زموږدملاقات اميد

---

([1]) البيضاوي پدشوي مخ
([2]) الطبري ١١-١٦
([3]) ابو السعود٢-٣١٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



نلري (له آخرت نه منكردي هغوى پخپلو شهواتو كي داسي غوپه دي چي له مرگه وروسته ژوند باندي ايمان نلري ﴿ وَرَضُوا۟ بِٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا ﴾ اوخوښ دي په دې ژوند د دنيا (له آخرت څخه فاني ژونديې په باقي ژوند غوره كړى دى ﴿ وَٱطۡمَأَنُّوا۟ بِهَا ﴾ اوآرام يې نيولى دى پدې پورې، وربا ندي خوښ اوراضي دي ﴿ وَٱلَّذِينَ هُمۡ عَنۡ ءَايَـٰتِنَا غَـٰفِلُونَ ﴾ اوهغه كسان چي دوى له آيتونو (دلائلو دقدرت) زموږ نه غافلان دي (نه څيني پند آخلي اونه پكي سوچ اوفكر كوي ﴿ أُو۟لَـٰٓئِكَ مَأۡوَىٰهُمُ ٱلنَّارُ ﴾ دغه (مذكوره كسان) ځاى دورتلوددوى اور (ددوزخ) دى ﴿ بِمَا كَانُوا۟ يَكۡسِبُونَ ﴾ په سبب دهغه چي وو دوى چي كول به يې (يعني په سبب دكفراو اجرام ددوى وروسته له دې چي الله دبدمرغه خلكو بيان وكړ دنيمكرغه كسانو حال بيانوي فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ يَهۡدِيهِمۡ رَبُّهُم بِإِيمَـٰنِهِمۡۖ ﴾ بيشكه هغه كسان چي ايمان يې راوړى دى اوكړي يې دي ښه عملونه وبه ښيې دوى ته رب ددوى (په آخرت كي) لاره د جنت په سبب د(نورد) ايمان ددوى ﴿ تَجۡرِی مِن تَحۡتِهِمُ ٱلۡأَنۡهَـٰرُ فِی جَنَّـٰتِ ٱلنَّعِيمِ ﴾ چي بهيږي له لاندي (دمانيو اوتختونو) ددوى (ويالې) په باغونو دنعمتونو كي (يعني دوى به هلته مقيم وي ﴿ دَعۡوَىٰهُمۡ فِيهَا سُبۡحَـٰنَكَ ٱللَّهُمَّ ﴾ دعاوي ددوى په دغه جنتونو كي (داوي) چي په پاكى يادوى تا لره اى الله، په حديث شريف كى راځي: (يلهمون التسبيح والتحميد كماتلهمون النفس) يعني تسبيح به داسي ورزده كول كيږي لكه سا اخيستل) يعني ويناوي به يې په جنت كي تسبيح وي ﴿ وَتَحِيَّتُهُمۡ فِيهَا سَلَـٰمٌ ﴾ . (اوپيشكش ددوى په دغه جنت كي سلام وي) يعني كله چي دوى يوبل ته تحيه وركوي نو سلامٌ عليكم به وايې لكه چي ملائكي هم پدغه كلماتو دوى ته تحيه وركوي ﴿ وَٱلۡمَلَـٰٓئِكَةُ يَدۡخُلُونَ عَلَيۡهِم مِّن كُلِّ بَابٍ سَلَـٰمٌ عَلَيۡكُم ﴾ الرعد ۲۳ ﴿ وَءَاخِرُ دَعۡوَىٰهُمۡ أَنِ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلۡعَـٰلَمِينَ ﴾ اوخاتمه ددعاددوى به داوي چي تولي ثناوي ستايني خاص الله لره دي چي پالونكى دتولو عالميانو دى يعني (الحمد لله رب العالمين) به وايې ﴿ وَلَوۡ يُعَجِّلُ ٱللَّهُ لِلنَّاسِ ٱلشَّرَّ ٱسۡتِعۡجَالَهُم بِٱلۡخَيۡرِ ﴾ اوكه په تلوار ورسوي الله خلكو ته بدي په شان دغوښتني ددوى نېكي لره. مجاهد وايې: ددې معنا داده چي يوڅوک دغصې اوقهرپه وخت كي خپل ځان او زامنو ته ښېرا كوي چي الله دي هلاک كړي خيردي نه ويني ؛ اوطبري وايې: چي معنايې داده كه چېري الله دخلكو دشراو ضرر دعاگاني همداسي لكه دخير ژر تر ژره قبلولاى نو ﴿ لَقُضِیَ إِلَيۡهِمۡ أَجَلُهُمۡۖ ﴾ خامخاراالبرل شوى به وو دوى ته اجل ددوى[1]

---

([1]) الطبرى ۹۱-۱۱ خينو مفسرينو ليكلي چي دغه آيت دمكې دكفارو په هكله نازل شوى دى چي دوى به ويل: ﴿ ٱللَّهُمَّ إِن كَانَ هَـٰذَا هُوَ ٱلۡحَقَّ مِنۡ عِندِكَ فَأَمۡطِرۡ عَلَيۡنَا حِجَارَةً مِّنَ ٱلسَّمَآءِ أَوِ ٱئۡتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ الأنفال: ۳۲ زمخشرى وايى كه شرداسى ژرلكه چي دوى يې غواړي وركول شي نوهلاک به شي ۳۳۳-۲

Bawar.net



﴿ فَنَذَرُ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا ﴾ نو پرېږدو موږ هغه كسان چي زموږ دملاقات اميد نلري (په قيامت كي يعني هغه چي په بعث اوبيرته ژوندون ايمان نلري ﴿ فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴾ په سركشي ددوى كي چي دوى به سرگردانه وي معناداچي موږ مجرمين پرېږدو وخت اومهلت وركوو ددوى له سركشي سره سره وربانديٍ نعمتونه را اوروو خو چي حجت ورباندي ودروو ﴿ وَإِذَا مَسَّ الْإِنسَانَ الضُّرُّ دَعَانَا لِجَنبِهِ أَوْ قَاعِدًا أَوْ قَائِمًا ﴾ (اوكله چي ورسېږي انسان ته ضرر نوبولي موږ (لپاره ددفع كولوييې) پروت په اړخ خپل ،ناست ، ياولاړ) يعني كله چي انسان ته كوم ضرر دناروغي ،فقر اونورو ورسېږي نو موږته په ټولو حالاتو كي دعاوي كوي كه په اړخ پروت وي، كه ناست وي اوكه ولاړ ترڅوچي ديې ژغورو ﴿ فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُ ضُرَّهُ مَرَّ كَأَن لَّمْ يَدْعُنَا إِلَىٰ ضُرٍّ مَّسَّهُ ﴾ نو كله چي ليري كړو له ده څخه ضرر تكليف دده نو درومي لكه چي نه يې وو بللي موږ (ددفع كولود) هغه ضرر ته چي دوى ته رسېدلى وو يعني كله چي موږ هغه له رنځ اوتكليف څخه خلاص كړو نودى پخپل عصيان استمرار كوي اوهغه دتكليف حال يې هېر اوياخو ورباندي سترگي پټي كړي پدې ويناكي دالله جل جلاله له لوري هغه چاته چي دتكليف په وخت كي الله بولي اودخوښي او عافيت په وخت كي غافل كېږي ترټنه اوعتاب دى ﴿ كَذَٰلِكَ زُيِّنَ لِلْمُسْرِفِينَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ (همداسي (په مثل ددې تزئين) ښايسته كړى شوي دي دغو اسراف كونكو ته هغه (عصيان) چي دوى به كاوو ) يعني لكه چي دغه انسان ته چي په وخت دتكليف كي دعاكوي اوپه عافيت كي له الله څخه سرغړونه (اعراض) كوي داښايسته شوي همداسي اسراف كونكو له حد څخه متجاوزينو (گنهگارانو)ته داښايسته شوي چي له ذكر نه اعراض كوي اوپه شهواتو پسي درومي ﴿ وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا الْقُرُونَ مِن قَبْلِكُمْ لَمَّا ظَلَمُوا ﴾ اوخامخاپه تحقيق هلاك كړي وو موږ اهل دزمانو چي پخوا له تاسو وو (اې دمكې خلكو كله چي ظلم يې كړى وو ) يعني موږ پخواني امتونه چي ترتاسو مشركانوله مخه وو دكفر اوشرك په وجه چي په گمراهي او عصيان كي ظالمان وو هلاك كړي وو ﴿ وَجَاءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ ﴾ اوحال داچي راوړي وو هغوى ته رسولانو ددوى څرگندي معجزې ( چي ددوى په رښتنولي يې دلالت كاوو ﴿ وَمَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا ﴾ اوله سره نه وو دوى چي ايمان يې راوړى واى يعني دوى په هغه څه چي انبياوو عليهم السلام ورته راوړي وو ايمان نه راووړ يعني دوى ظلم وكړ او ايمان يې نه راووړ نوددوى دهلاكت سبب دوه شيان شو يوظلم اوبل ايمان نه راوړل يې ﴿ كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِينَ ﴾ هم داسي ( دلكه دغه سزا ) سزا وركوو موږ قوم مجرمانو (كافرانو) ته اوپدې كي دمكې دخلگولپاره وعيددى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم يې دروغجن باله ﴿ ثُمَّ جَعَلْنَاكُمْ خَلَائِفَ فِي الْأَرْضِ مِن بَعْدِهِم ﴾ بيا موږ وگرزولى تاسي (اى دمكې خلكو ) خليفه گان په ځمكه كي وروسته (له هلاك ) ددوى نه (هغه چي تاسو يې كيسې اورئ اوكنډوالي يې وينئ ﴿ لِنَنظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ ﴾ چي موږ وگورو تاسي څنگه عمل كوئ ( دنړكي كه دبدي نو موږ به ستاسي له عمل سره سمه جزا دركړو. قرطبي وايي: معناداچي الله به له تاسو سره د ازمويونكي معامله اوچلند وكړي لپاره ددې چي عدل څرگند شي[١] په التسهيل كي راوړي

---

[١] القرطبي ٨-٣١٨

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



چي معناداچي په وجودکي ستاسوعمل ښکاره شي اوپرتاسوباندي حجت ودرېږي ([1]) مقصدداچي الله تعالى ددوی په کړو وړو له دې پخواهم عالم وو خودوی ازموېږ څو په وجود کي هغه څه څرګندشي کوم چي الله په ازل کي ورباندي عالم او پوه وو ﴿ وَإِذَا تُتۡلَىٰ عَلَيۡهِمۡ ءَايَاتُنَا بَيِّنَـٰتٍ ﴾ اوکله چي ولوستل شي پردغو (كفارو مشركانو) آيتونه (دقرآن) زموږ حال داچي څرګنددي (څه اشكال پكي نشته) ﴿ قَالَ ٱلَّذِينَ لَا يَرۡجُونَ لِقَآءَنَا ﴾ نووايې هغه كسان چي نلري اميددملاقات زموږ (په آخرت كي په بعث، حساب كتاب، اجر اوثواب باندي ﴿ ٱئۡتِ بِقُرۡءَانٍ غَيۡرِ هَـٰذَآ ﴾ راوړه يو (بل) قرآن چي له دې قرآن څخه غيروي چي داسي څه پكي نه وي چي موږ يې نه خوښوو زموږبتان بد نه ګڼي او زموږ خوبونه خوشي خيالونه نه انګيري ﴿ أَوۡ بَدِّلۡهُ ﴾ يايې بدل كړه چي دعذاب پرځای درحمت آيت راوړه زموږ دبتانو (ښكنځلو پرځای يې صفتونه او دحرام پرځای حلال كښېږده بېشكه دغه خبري يې دتمسخر اوملنډوپه توګه كولې. ابن عباس رضى الله عنه وايې چي دغه دمكې دهغو خلكوپه باب كي دي چاچي په قرآن ملنډي وهلې استهزاء يې كوله اوويل يې: اې محمده له دې پرته بل قرآن راوړه هغه چي موږ يې غواړو!([2]) ﴿ قُلۡ مَا يَكُونُ لِيٓ أَنۡ أُبَدِّلَهُۥ مِن تِلۡقَآيِٕ نَفۡسِيٓۖ ﴾ ووايه (اى محمده دوى ته) چي ماته نه ښائېږي داچي له خپله خانه (داقرآن) بدل كړم ﴿ إِنۡ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰٓ إِلَيَّۖ ﴾ زه متابعت نه كوم مګردهغه (حكم) چي ماته رالېږل شوی دی زه مأمورشوی بنده اومبلغ پيغمبريم چي دالله رسالت تاسوته ورسوم ﴿ إِنِّيٓ أَخَافُ إِنۡ عَصَيۡتُ رَبِّي عَذَابَ يَوۡمٍ عَظِيمٍ ﴾ بېشكه زه وېرېږم كه نافرماني دخپل رب وكړم (په بدلولو دوحی كي) له عذابه دورځي لويې (چي دقيامت هيبت ناكه ورځ ده اودغه لكه دپورتني حكم لپاره چي علت راغلی دی ﴿ قُل لَّوۡ شَآءَ ٱللَّهُ مَا تَلَوۡتُهُۥ عَلَيۡكُمۡ ﴾ ورته ووايه (اى محمده دوى ته!) كه اراده الله فرمايلي وای نومابه نه وو لوستی (داقرآن) پرتاسي (دغه دالله له جانبه دی زماله لوري نه دی ﴿ وَلَآ أَدۡرَىٰكُم بِهِۦۖ ﴾ اونه به الله تاسي پدې (قرآن) عالمان كړي وای (زماپه ژبه) ﴿ فَقَدۡ لَبِثۡتُ فِيكُمۡ عُمُرًا مِّن قَبۡلِهِۦٓۚ ﴾ نوپه تحقيق زه اوسېدلی وم په تاسي كي دېرعمر (څلوېښت كاله) پخوا (له نزوله د) قرآنه (چي نه مي درته لوستی اونه مي تاسي ورباندي پوهولي وي) ﴿ أَفَلَا تَعۡقِلُونَ ﴾ آيانو تاسي عقل نلرئ (چي سوچ اوفكروكړئ اوپدې وپوهېږئ چي دغه معجزكتاب دالله له لوري راغلی دی؟ امام فخر الرازي وايې: چي كفارو رسول الله ﷺ دژوندله لومړيو ليدلی اوټول حالات يې ورته معلوم وو چي هغه ببخي كتاب نه دی لوستی اونه يې دكوم ښوونكي په وړاندي زنګون مات كړی دی چي ورڅخه زده كړه وكړي خوبياچي د څلوېښت كاله مودې تېرېدلو وروسته يې دوی ته دغه كتاب راووړ چي په ښايسته اصولومشتمل باريک علمي احكام او داخلاقي علومو لطائف دپخوانيو امتونو دكيسو رازونه پكښې دي پوهان خلک اونوميالی دفصاحت او دبلاغت ذكراتلان يې له سيالي كولو څخه عاجز اوپاتي دي دچاچي سالم عقل وي هغه پوهېږي چي داسي كتاب پرته له وحی بل څه نشي كېدای ﴿ فَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّنِ ٱفۡتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا ﴾ نوڅوک دی ډېرظالم له هغه چانه چي په الله دروغ تړي

---

([1]) التسهيل ٢ـ٩٠
([2]) البحر ٥ـ١٣١

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دغه استفهام انكاري اودنفى په معنادى يعنى نشته هيڅوك ظالم ترهغه چاچي په الله باندي دروغ تړي اومقصد درسول الله صلى الله عليه وسلم له شانه څخه د دروغو نفى كول دي كله چي مشركانو ګمان كاوو چي قرآن محمد صلى الله عليه وسلم جوړكړى دى (العياذبالله) ﴿ أَوْ كَذَّبَ بِـَٔايَـٰتِهِۦٓ ﴾ يانسبت د دروغو كوي آيتونه دده ته يعني دحق تكذيب كوي ﴿ إِنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلْمُجْرِمُونَ ﴾ بيشكه شان دادي چي خلاصي نه مومي مجرمان (كافران) له عذابه ﴿ وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنفَعُهُمْ ﴾ او عبادت كوي دغه (كفار) غير له الله نه دهغوبتانوچي نشي رسولاى هيڅ ضرر دوى ته اونه هم ګټه رسولاى شي دوى ته (هغه جمادات دي) - ﴿ وَيَقُولُونَ هَـٰٓؤُلَآءِ شُفَعَـٰٓؤُنَا عِندَ ٱللَّهِ ﴾ اووايي دغه (كفار) چي دغه بتان زموږ شفاعت كونكي دي په نزد دالله كي يعني هسي ګومان كوي چي دغه دبري چي نه اوري ، نهويني ددوى شفاعت ګران دي ﴿ قُلْ أَتُنَبِّـُٔونَ ٱللَّهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَلَا فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ ووايه (اى محمده ادوى ته) آيا خبروركوئ تاسي الله ته هغه څيزچي ده ته نه دى معلوم (نه) په آسمانونوكي اونه په ځمكه كي (يعني داسي شى هيڅېري نشته) معنا داچي تاسوالله ته دشريك اوشفيع خبروركوئ كوم چي الله ورباندي خبرنه دي اوهغه خوعلام الغيوب ذات دى چي علم يې په ټولو كائناتو راګرزېدلى اومحيط دى استفهام دلته دتهكم اواستهزاء لپاره دى ﴿ سُبْحَـٰنَهُۥ وَتَعَـٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴾ الله پاک اوډېرپورته دى له هغواشياووچي شريكوي دوى هغه له الله سره په عبادت كي ،اوياظالمان خبري كوي ﴿ وَمَا كَانَ ٱلنَّاسُ إِلَّآ أُمَّةً وَٰحِدَةً فَٱخْتَلَفُوا۟ ﴾ اونه وو دغه خلک مګريوامت وو (په يواسلامي دين متفق وو له آدمه ترنوح عليه السلام پوري خوبيا وروسته يې اختلاف وكړاودبتانوعبادت يې پيل كړنو الله جل جلاله انبياء عليهم السلام را واستول چي وېرول اوزېرى وركول به يې ترسره كول[1]) ﴿ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ ﴾ اوكه نه واى هغه كلمه چي پخوا ثابته شوي ده له رب ستا (قضادرب ستاپه ځنډولو دجزا ترقيامت پوري) ﴿ لَقُضِىَ بَيْنَهُمْ فِيمَا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴾ نوخامخابه حكم كړى شوى وو په مېنځ ددوى كي په همغه څېزكي چي په هغه كى دوى اختلاف كوي) يعني الله به ژر په دوى هغه عذاب راوستى وو ،كوم چي دوى ددغه اختلاف په سبب مستحق او ورګرځېدلى وو ﴿ وَيَقُولُونَ لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْهِ ءَايَةٌ مِّن رَّبِّهِۦ ﴾ (اووايي دوى ولى نه وه نازله كړى شوي پردغه (محمد صلى الله عليه وسلم باندي هغه) معجزه له ربه دده) لكه چي نورو انبياوو ته الله وركړي وې مثلا: اوښه (دصالح عليه اسلام) لكړه (دموسى عليه السلام) او همداراز ځلېدونكى لاس دموسى على نبينا وعليهم السلام ﴿ فَقُلْ إِنَّمَا ٱلْغَيْبُ لِلَّهِ ﴾ (نو ووايه بېشكه همداخبره ده چي (علم د) غيب خاص الله ته دى) اومعجزې يوازي الله را استولى شي خوزه يوازي مبلغ يم ﴿ فَٱنتَظِرُوٓا۟ إِنِّى مَعَكُم مِّنَ ٱلْمُنتَظِرِينَ ﴾ نومنتظر اوسئ تاسي (دالله فيصلې ته زموږ اوستاسو ترمېنځ) بېشكه زه هم تاسوسره له منتظرينو څخه يم.

[1] المختصر ۱۸۸-۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



بلاغت:

۱-﴿ ٱلْكِتَٰبِ ٱلْحَكِيمِ ﴾ حكيم دفعيل وزن اودمفعول په معنادى چي محكم ته وايې يعني هغه كتاب چي فساد ورته لاره نه مومي اونه هم پكي دروغ اوتناقض ځاى لري.

۲-پدې كلماتوكي چي فرمايې: ﴿ أَنذِرِ وَبَشِّرِ ﴾ دلته دطباق صنعت دى.

۳-﴿ قَدَمَ صِدْقٍ ﴾ دغه كلام له لوړ منزلت څخه كنايه راوړل شوى اوپه عبارت كي خورابلاغت نغښتى دى ځكه په قدم باندي ړومبي توب كېږي اوتقدم كېداى شي اودالكه چي نعمت ته (يد) ويل كېږي ځكه دلاس په واسطه نعمت وركول كېږي.

۴-كله چي الله پاك فرمايې: ﴿ يَبْدَؤُا۟ ٱلْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥ ﴾ دلته د(بدء) اواعادې ترمنيځ دطباق صنعت دى.

۵-﴿ لَا يَرْجُونَ لِقَآءَنَا ﴾ دلته دالتفات صنعت راغلى اوچي دذالجلال ضميرته يې نسبت شوى دامرتعظيم اوتهويل څرګندوي

۶-پدې كلام كي چي: ﴿ ٱلشَّرَّ ٱسْتِعْجَالَهُم بِٱلْخَيْرِ ﴾ مؤكده تشبيه ده ځكه چي معنايې داچي لكه استعجال ددوى اوياپه مثل داستعجال ددوى په خيربل داچي دشر اوخير ترمينځ دطباق صنعت خوندي دى.

۷-﴿ لِنَنظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ ﴾ پدې كلام كي تمثيليه استعاره ده چي دبندګانو حال يې له خپل رب سره دهغه چاله حاله سره مشابه ګڼلى لكه درعيت (ولس) له خپل پاچاسره چي ددوى په چارو كي څېړنه كوي ترهغوپوري دوى ته مهلت وركوي ترڅوجزا وركړي اوهغه اسم چي په مشبه به يې دلالت كاوو دمشبه لپاره يې استعاره راووړ چي غرض ورڅخه تمثيل اوتقريب دى ولله المثل الاعلى.

فائده:

سيوطي رحمه الله وايې: چي دغه آيت شريف چي فرمايې: ﴿ جَعَلَ ٱلشَّمْسَ ضِيَآءً وَٱلْقَمَرَ نُورًا ﴾ دعلم المواقيت، حساب، تاريخ اودسپوږمۍ دبرجونو اودمنازلو لپاره بنسټ او اساس دى.

لطيفه:

حافظ ابن كثير وايې: چي يوځوک كومه وينا وكړي په رښتياوي اوكه په دروغو خواكه پكه به وربانديترلمر روښانه دليل راوړي چي رښتياكه دروغ دى مګر رسول الله صلى الله عليه وسلم چي چاليدلى واى دمحمدصلى الله عليه وسلم اومسيلمة الكذاب ترمينځ فرق اوتوپير لكه دتكندي غرمې اوتورې شپې ترمينځ توپير داسي وو عبدالله ابن سلام رضى الله عنه وايې: كله چي رسول الله صلى الله عليه وسلم مدينې منورې ته راغى نويهودان ځني تيت اوپرک شول زه هم ځني لېرې كېدم خوچي ومي ليدل راته معلومه شوه چي څېره يې د دروغجن نه ده لومړى كلمه چي مي ځني واورېدله داوه ويل يې: اى خلګو سلام يوبل ته اچوئ خلګوته ډوډۍ وركوئ له خپلوانو سره ښه كوئ دشپې چي خلګ ويده وي لمنځونه كوئ جنت ته به ښېغمه داخل شئ چاچي به ليدل يقين به يې راغى چي همدا رښتونى دى.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## اللہ تعالی فرماتا ہے:

﴿ وَإِذَآ أَذَقْنَا ٱلنَّاسَ رَحْمَةً مِّنۢ بَعْدِ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُمْ إِذَا لَهُم مَّكْرٌ فِىٓ ءَايَاتِنَا ۚ قُلِ ٱللَّهُ أَسْرَعُ مَكْرًا ۚ إِنَّ رُسُلَنَا يَكْتُبُونَ
مَا تَمْكُرُونَ (٢١) هُوَ ٱلَّذِى يُسَيِّرُكُمْ فِى ٱلْبَرِّ وَٱلْبَحْرِ ۖ حَتَّىٰٓ إِذَا كُنتُمْ فِى ٱلْفُلْكِ وَجَرَيْنَ بِهِم بِرِيحٍ طَيِّبَةٍ وَفَرِحُوا۟ بِهَا
جَآءَتْهَا رِيحٌ عَاصِفٌ وَجَآءَهُمُ ٱلْمَوْجُ مِن كُلِّ مَكَانٍ وَظَنُّوٓا۟ أَنَّهُمْ أُحِيطَ بِهِمْ ۙ دَعَوُا۟ ٱللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ لَئِنْ أَنجَيْتَنَا
مِنْ هَـٰذِهِۦ لَنَكُونَنَّ مِنَ ٱلشَّـٰكِرِينَ (٢٢) فَلَمَّآ أَنجَىٰهُمْ إِذَا هُمْ يَبْغُونَ فِى ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ ۗ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّمَا
بَغْيُكُمْ عَلَىٰٓ أَنفُسِكُم ۖ مَّتَـٰعَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ۖ ثُمَّ إِلَيْنَا مَرْجِعُكُمْ فَنُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (٢٣) إِنَّمَا مَثَلُ ٱلْحَيَوٰةِ
ٱلدُّنْيَا كَمَآءٍ أَنزَلْنَـٰهُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ فَٱخْتَلَطَ بِهِۦ نَبَاتُ ٱلْأَرْضِ مِمَّا يَأْكُلُ ٱلنَّاسُ وَٱلْأَنْعَـٰمُ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَخَذَتِ ٱلْأَرْضُ زُخْرُفَهَا
وَٱزَّيَّنَتْ وَظَنَّ أَهْلُهَآ أَنَّهُمْ قَـٰدِرُونَ عَلَيْهَآ أَتَىٰهَآ أَمْرُنَا لَيْلًا أَوْ نَهَارًا فَجَعَلْنَـٰهَا حَصِيدًا كَأَن لَّمْ تَغْنَ
بِٱلْأَمْسِ ۚ كَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ ٱلْـَٔايَـٰتِ لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ (٢٤) وَٱللَّهُ يَدْعُوٓا۟ إِلَىٰ دَارِ ٱلسَّلَـٰمِ وَيَهْدِى مَن يَشَآءُ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ
(٢٥) ۞ لِّلَّذِينَ أَحْسَنُوا۟ ٱلْحُسْنَىٰ وَزِيَادَةٌ ۖ وَلَا يَرْهَقُ وُجُوهَهُمْ قَتَرٌ وَلَا ذِلَّةٌ ۚ أُو۟لَـٰٓئِكَ أَصْحَـٰبُ ٱلْجَنَّةِ ۖ هُمْ فِيهَا خَـٰلِدُونَ (٢٦)
وَٱلَّذِينَ كَسَبُوا۟ ٱلسَّيِّـَٔاتِ جَزَآءُ سَيِّئَةٍۭ بِمِثْلِهَا وَتَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ۖ مَّا لَهُم مِّنَ ٱللَّهِ مِنْ عَاصِمٍ ۖ كَأَنَّمَآ أُغْشِيَتْ وُجُوهُهُمْ قِطَعًا مِّنَ ٱلَّيْلِ
مُظْلِمًا ۚ أُو۟لَـٰٓئِكَ أَصْحَـٰبُ ٱلنَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَـٰلِدُونَ (٢٧) وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا۟ مَكَانَكُمْ أَنتُمْ وَشُرَكَآؤُكُمْ ۚ
فَزَيَّلْنَا بَيْنَهُمْ ۖ وَقَالَ شُرَكَآؤُهُم مَّا كُنتُمْ إِيَّانَا تَعْبُدُونَ (٢٨) فَكَفَىٰ بِٱللَّهِ شَهِيدًۢا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ إِن كُنَّا عَنْ عِبَادَتِكُمْ
لَغَـٰفِلِينَ (٢٩) هُنَالِكَ تَبْلُوا۟ كُلُّ نَفْسٍ مَّآ أَسْلَفَتْ ۚ وَرُدُّوٓا۟ إِلَى ٱللَّهِ مَوْلَىٰهُمُ ٱلْحَقِّ ۖ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا۟ يَفْتَرُونَ
(٣٠) قُلْ مَن يَرْزُقُكُم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ وَٱلْأَرْضِ أَمَّن يَمْلِكُ ٱلسَّمْعَ وَٱلْأَبْصَـٰرَ وَمَن يُخْرِجُ ٱلْحَىَّ مِنَ ٱلْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ ٱلْمَيِّتَ مِنَ
ٱلْحَىِّ وَمَن يُدَبِّرُ ٱلْأَمْرَ ۚ فَسَيَقُولُونَ ٱللَّهُ ۚ فَقُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ (٣١) فَذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبُّكُمُ ٱلْحَقُّ ۖ فَمَاذَا بَعْدَ ٱلْحَقِّ إِلَّا ٱلضَّلَـٰلُ ۖ فَأَنَّىٰ
تُصْرَفُونَ (٣٢) كَذَٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى ٱلَّذِينَ فَسَقُوٓا۟ أَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ (٣٣) قُلْ هَلْ مِن شُرَكَآئِكُم مَّن يَبْدَؤُا۟
ٱلْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥ ۚ قُلِ ٱللَّهُ يَبْدَؤُا۟ ٱلْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥ ۖ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ (٣٤) قُلْ هَلْ مِن شُرَكَآئِكُم مَّن يَهْدِىٓ إِلَى ٱلْحَقِّ ۚ قُلِ ٱللَّهُ يَهْدِى
لِلْحَقِّ ۗ أَفَمَن يَهْدِىٓ إِلَى ٱلْحَقِّ أَحَقُّ أَن يُتَّبَعَ أَمَّن لَّا يَهِدِّىٓ إِلَّآ أَن يُهْدَىٰ ۖ فَمَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ (٣٥) وَمَا يَتَّبِعُ أَكْثَرُهُمْ
إِلَّا ظَنًّا ۚ إِنَّ ٱلظَّنَّ لَا يُغْنِى مِنَ ٱلْحَقِّ شَيْـًٔا ۚ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌۢ بِمَا يَفْعَلُونَ (٣٦) وَمَا كَانَ هَـٰذَا ٱلْقُرْءَانُ أَن يُفْتَرَىٰ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَلَـٰكِن
تَصْدِيقَ ٱلَّذِى بَيْنَ يَدَيْهِ وَتَفْصِيلَ ٱلْكِتَـٰبِ لَا رَيْبَ فِيهِ مِن رَّبِّ ٱلْعَـٰلَمِينَ (٣٧) أَمْ يَقُولُونَ ٱفْتَرَىٰهُ ۖ قُلْ فَأْتُوا۟ بِسُورَةٍ مِّثْلِهِۦ
وَٱدْعُوا۟ مَنِ ٱسْتَطَعْتُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ إِن كُنتُمْ صَـٰدِقِينَ (٣٨) بَلْ كَذَّبُوا۟ بِمَا لَمْ يُحِيطُوا۟ بِعِلْمِهِۦ وَلَمَّا يَأْتِهِمْ تَأْوِيلُهُۥ ۚ كَذَٰلِكَ كَذَّبَ
ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۖ فَٱنظُرْ كَيْفَ كَانَ عَـٰقِبَةُ ٱلظَّـٰلِمِينَ (٣٩) ﴾ يونس: ٢١ – ٣٩

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## مناسبت او تړاو:

کله چي الله د بتانو په ناولتيا او فساد دلائل بيان کړل او د مشرکانو هغه شکوک او شبهات چي د پيغمبري (رسالت) او قرآنکريم په هکله يې درلودل وښودل دلته د همدغو بد مرغه کسانو مکر، خداع، انکار او سرغړونه راوړي چي کله رنځ او کاختي ورته ورسېږي عجز او زاري کوي او کله چي رحمت او سوکالي ورته مخه کړي نو بيا د نعمتونو کفران کوي ورزسته الله د دنيوي ژوند يو مثال د يوفاني څېز د زوال په شان وګانه او بيايې په وحدانيت د رب العالمين دلائل او براهين راوړل.

## لغتونه:

( عاصف) سخت او توند باد چي ښې تو يوي او وني خوځوي ( الموج) څپې څکه يې موج بولي چي د بحر په سر مضطرب دي ( زخرفها) ديوشي د ښه والي ښايست بشپړتوب ته وايې ( تغن) هستوګنه او آماده (يزهق) پټول او سر بېره کېدل ويل کېږي ( زهقه الذل) يعني پټ يې کړ (قتر) ګرد غبار چي ورسره جوخت توروالى وي الله تعالى فرمايې:

( ترهقهاقترة) عبس ۴۱ چاباياويلي چي يوازي غبارته وېل کېږي (زيلنا) جلا کړه مو ( تؤفکون) له حق څخه د باطل لوري ته اړول کيدونکى يې.

## تفسير:

﴿ وَإِذَآ أَذَقْنَا ٱلنَّاسَ رَحْمَةً مِّنۢ بَعْدِ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُمْ ﴾ (او کله چي ور وڅکو و موږ خلګو ته کوم رحمت ورو سته له سختي چي دوى ته رسېدلي ) مراد له خلګو څخه د مکې کفار دي. روايت کېږي چي الله تعالى پر دوى باندي اوه کاله کاختي راوستله چي نژدې وو هلاک شي نويې له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه وغوښتل چي دوى ته د ښېرازي دعاوکړي او ژمنه ( وعده ) يې وکړه که دغه عذاب له دوى څخه پورته شي نو دوى به ايمان راوړي خو کله چي الله تعالى د باران په اوريښت خپل رحمت څرګند کړ دوى بيرته هغه کفر او عنادته وګرځېدل ﴿ إِذَا لَهُم مَّكْرٌ فِىٓ ءَايَاتِنَا ﴾ نو ناڅاپه به دوى لره مکروي ( استهزاء او تکذيب به کوي) په آيتونو زموږ کي ﴿ قُلِ ٱللَّهُ أَسْرَعُ مَكْرًا ﴾ ووايه ( اى محمده دوى ته!) چي الله ډېر ژر دى ( له جهته د جزا ورکولو ) د مکر ﴿ إِنَّ رُسُلَنَا يَكْتُبُونَ مَا تَمْكُرُونَ ﴾ بېشکه رسولان ( کرام الکاتبين پرښتې.) زموږ ليکي مکر د تاسو ) پدي کي د دې تنبيه ده چي کوم څه تاسو د مکر لټوئ له ملائکو څخه هم پټ نه دى څه خو لا له عليم او خبير ذات څخه ﴿ هُوَ ٱلَّذِى يُسَيِّرُكُمْ فِى ٱلْبَرِّ وَٱلْبَحْرِ ﴾ (الله هغه ذات چي ګرزوي تاسي په وچه او بحر کي ) يعني الله پاک هغه مقتدر ذات دى چي تاسو په وچه کي د سپرليو په شا او په سيند او سمندر کي د کښتيو په واسطه ګرزوي ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا كُنتُمْ فِى ٱلْفُلْكِ ﴾ تر هغه پوري چي سپاره شي په بېړۍ کي ﴿ وَجَرَيْنَ بِهِم بِرِيحٍ طَيِّبَةٍ ﴾ (او روانه شي دا (بېړۍ ) په هغه باد ښه ) پدي کی التفات دى معنادا چي او روانه شي دا بېړۍ په موافق نرم او ښه باد باندي ﴿ وَفَرِحُوا۟ بِهَا ﴾ او خوشحاله شي په هغه سره (سورلى (رکاب) ﴿ جَآءَتْهَا رِيحٌ عَاصِفٌ وَجَآءَهُمُ ٱلْمَوْجُ مِن كُلِّ مَكَانٍ ﴾ نو راشي کښتۍ ته باد سخت او راشي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


دوی ته څپې له هره خایه (ناڅاپه وربانديراتاوشي) ﴿ وَظَنُّوٓا۟ أَنَّهُمْ أُحِيطَ بِهِمْ ﴾ اودوی داوګڼي چې بېشکه پردوی احاطه وکړی شوه د(هلاکت) ﴿ دَعَوُا۟ ٱللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ ﴾ دعاوکړي دوی الله ته (دنجات) اخلاص کونکي وي ده ته دین خپل (اوهغه څه پرېږدي چې دوی یې عبادت کاوو قرطبي وايي: چې دخلګوطبیعت هم داده چې په سختیوکي الله ته رجوع کوي اوپه دې کي دلیل دی چې داضطرار په حالت کی دکافر دعاهم منله کېږي ځکه ټول اسباب یې منقطع اورب الارباب ته یې مخ اړولی وي ﴿ لَئِنْ أَنجَيْتَنَا مِنْ هَـٰذِهِۦ لَنَكُونَنَّ مِنَ ٱلشَّـٰكِرِينَ ﴾ (اوو وايي) قسم دی که دي موږ ته (له دي سختي) نجات راکړ نوخامخابه موږ شو له شکرکونکو) یعني که دي موږ له دي ربړونو اوتکلیفونو څخه وژغورلو موږ به ستاپه نعمتونو شکرکونکي یو اوستا له رضا سره سم به طاعت عبادت کوو په البحرکي وايي چي: د اخلاص معنا یوازي له الله څخه ددعا غوښتل دي، نه له بتانو اوبل چاڅخه اوحسن رحمه الله وايي: ددوی اخلاص دایمان په هکله نه بلکه دعلم اوپوهي په وجه دی چې دوی پوهېږي له دغه تکلیف څخه یې له الله پرته بل څوک نشي ژغورلای نودغه ددوی داضطراري ایمان پرځای ودرېدو ﴿ فَلَمَّآ أَنجَىٰهُمْ إِذَا هُمْ يَبْغُونَ فِى ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ ﴾ نوهرکله چې نجات ورکړی (الله) دوی ته (له غرقیدلوڅخه) ناڅاپه دوی فساد شرارت کوي په ځمکه کي په ناحقه سره ابن عباس وايي: چې معنایې داچې دوی په دعا (بلنه) کي بغی اوفسادکوي چې له الله پرته له بل چاڅخه غوښتنه کوي او ګناهونه ترسره کوي[1] الله ددوی په ردکي فرمايي: ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّمَا بَغْيُكُمْ عَلَىٰٓ أَنفُسِكُم ﴾ ای خلګوبېشکه همداخبره ده چې ستاسي دشرارت سزا ستاسي پرخانونوده (تاسوبه یې وبال ومومئ ﴿ مَّتَـٰعَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾ (کوئ تاسي داسي) عیش ددنیاوي ژوندلږ) یعني تاسي به په دغه ژوندکي په فاني شهوتونو عیش وکړئ هغه چې ترېږ وروسته تلپاتي حسرتونه او ارمانونه راتلونکي دي ﴿ ثُمَّ إِلَيْنَا مَرْجِعُكُمْ فَنُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ بیاخاص موږته ستاسي راتله دي (وروسته له مرګه) نوخبربه تاسي ته درکړو په هغه عمل چې تاسوبه کاوو اوپه دې کي وعید اوتهدیددی په آیت شریف کی دناشکره متکبر بنیادم دطبیعت تمثیل دی هغه چې الله پاک یې یوازي دتکلیف په شېبوکي ورپه یادېږي اوپه همدې وخت کي الله ته رجوع کوي اوکله چې یې الله پاک له تکالیفو اومصیبتونو څخه وژغوري بیرته کفر اوطغیان ته مخ اړوي وروسته الله ددنیا دفنا اولړي مودې لپاره مثال راوړي فرمايي: ﴿ إِنَّمَا مَثَلُ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا كَمَآءٍ أَنزَلْنَـٰهُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ فَٱخْتَلَطَ بِهِۦ نَبَاتُ ٱلْأَرْضِ ﴾ (بېشکه همداخبره ده چې مثال ددې ژوندون خسیس لږ په شان داوبودی چې موږ نازلي کړي دي له (طرفه د) آسمانه نوخلط شي په سبب ددې اوبوسره (هرقسم) زرغونه دځمکي) یعني ددنیا عجیبه غوندي دفنا اوزوال حال دی چې نعمتونه یې ژر تېرېږي اوخلګ وربانديتېروزي لکه دباران غوندي دي چې له آسمانه را اوري اوبیاهړدول نباتات راو ټوکوي چې یوله بله ګډوي ابن عباس رضی الله عنه وايي چي: داختلط معناداچي هر رنګ یې په اوبو رازرغون شي[2] ﴿ مِمَّا يَأْكُلُ ٱلنَّاسُ وَٱلْأَنْعَـٰمُ ﴾ له هغه ډوله چې بنیادمان یې خوري (لکه غلې، مېوې، سابه) اوڅارپایان (لکه دوښو انواع) پروړه،

[1] القرطبی ۳۳۱-۸
[2] البحر ۱۲۰-۵

Bawar.net



اوربشي ) ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَخَذَتِ ٱلْأَرْضُ زُخْرُفَهَا وَٱزَّيَّنَتْ ﴾ ( ترهغه پوري چي کله واخيست ځمکي زينت خپل اوښه ښايسته شي) په دانو مېوو اوګلانو ، اودغه دناوي دسينګارتمثيل دی چي کله په جامو اوګڼو سمبال شي ﴿ وَظَنَّ أَهْلُهَآ أَنَّهُمْ قَٰدِرُونَ عَلَيْهَآ ﴾ اوګمان وکړي خاوندان ددې (ځمکي) چي بېشکه دوی قادردي (په هرشان ګټه اخيستلو سره ) په دې ځمکه باندي (له مېوو غلو څخه ) ﴿ أَتَىٰهَآ أَمْرُنَا لَيْلًا أَوْ نَهَارًا ﴾ ناڅاپه راشي دې ځمکي ته حکم زموږ دشپې يادورځي (په هلاکت ددې نباتاتو ) ﴿ فَجَعَلْنَٰهَا حَصِيدًا كَأَن لَّمْ تَغْنَ بِٱلْأَمْسِ ﴾ نو وګرزوو موږ دغه (فصل دځمکي لکه ) رېبلی شوی ګواکي نه وو (دغه کښت په دغه ځمکه کي ) پرون ) يعني هسي ولوړولی شي چي ته به وا ېبخي آباده شوي نه ده ﴿ كَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ ٱلْءَايَٰتِ لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴾ (همداسي په تفصيل سره بيانوو دلائل (دقدرت خپل ) دپاره دقوم چي فکرکوي ) يعني لکه دغه ددنيا خوندور مثال غوندي موږ آيتونه اومثالونه بيانوو دهغه ځالپاره چي په کي فکرکوي اوعبرت تري آخلي . الوسي وايي چي: ددغو فکرکونکو ځانګړتيا اوتخصيص يې ځکه وفرمايو چي دوی په فکرباندي ګټه اخيستونکي دي[1] ﴿ وَٱللَّهُ يَدْعُوٓا۟ إِلَىٰ دَارِ ٱلسَّلَٰمِ ﴾ اوالله (خپل بندګان ) بولي دسلامتيا کورته ) چي جنت دسرُور او،قامت ځای دی ﴿ وَيَهْدِى مَن يَشَآءُ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾ اولاره ښيي هغه چاته چي اراده وفرمايي (دهدايت يې ) سمي لاري ته (چي داسلام دين دی ) . ﴿ لِّلَّذِينَ أَحْسَنُوا۟ ٱلْحُسْنَىٰ وَزِيَادَةٌ ﴾ (شته ) لپاره دهغوکسانو چي ښکي يې کړي (ايمان يې راوړی اوښک عملونه يې کړي دي ) ښکه جزا (جنت) اوزيادت (له دې نه هم چي دالله تعالی ديداردی ﴿ وَلَا يَرْهَقُ وُجُوهَهُمْ قَتَرٌ ﴾ اونه به پټوي مخونه ددوی هيڅ تورګرد اوغبار(لکه ددوزخيانوغوندي ) ﴿ وَلَا ذِلَّةٌ ﴾ اونه هيڅ رسوايي، سپکتيا ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ ۖ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾ دغه (کسان محسنان ) څښتنان دجنت دي هم دوی به په دغه جنت کي تل اوسېدونکي وي ( نه ددنيا دفاني کېدونکو نعمتونو په شان چي زوال مومي ﴿ وَٱلَّذِينَ كَسَبُوا۟ ٱلسَّيِّـَٔاتِ جَزَآءُ سَيِّئَةٍۭ بِمِثْلِهَا ﴾ اوهغه کسان چي دبدو کسب يې کړی دی (په دنياکي کفريې کړی اودالله نافرماني ته يې ملاتړلي ) جزادبدي (ددوی )په قدر دبدي ده ( څه به وورباندي زيات نشي ؛ خونېکي دالله په فضل څوچنده زياتېدونکي ده[2] ﴿ وَتَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ﴾ اوپټوي به دوی لره ذلت ﴿ مَّا لَهُم مِّنَ ٱللَّهِ مِنْ عَاصِمٍ ﴾ اونه به وي دوی ته (له عذابه دالله ) هيڅ ساتونکی ﴿ كَأَنَّمَآ أُغْشِيَتْ وُجُوهُهُمْ قِطَعًا مِّنَ ٱلَّيْلِ مُظْلِمًا ﴾ ګواکي پټ کړی شوي دي مخونه ددوی په توتوشپې سره حال داچي تک توربه وي ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾ دغه (بدي کونکي) څښتنان د اورددوزخ دي هم دوی په دغه دوزخ کي تل اوسېدونکي وي ﴿ وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا۟ ﴾ (او( يادکړه ای محمده !) هغه ورځ چي راجمع به کړو داخلک ټول بيابه ووايو هغوکسانوته چي شرک

[1] روح المعاني ۲ ۱۰ ـ ۱۱
[2] الطبري ۲۲۴ ـ ۸

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



بې راوړې وي) يعني اوهغه وخت چي مؤمنان اوكافران دواړه ډلي دحساب لپاره راغونډكړو نومشركانوته به ورايو ﴿ مَكَانَكُمۡ أَنتُمۡ وَشُرَكَآؤُكُمۡ ﴾ (تينګ ودرېږئ ) په ځايونو خپلو تاسي او(هم) شريكان ستاسي ( ترهغومه څو څېړئ څوچي ووينئ الله په تاسوڅه كوي؟ ﴿ فَزَيَّلۡنَا بَيۡنَهُمۡ ﴾ (نوبېلتون به وكړو موږ په مينځ ددوى كي) يعني موږبه دوى اومؤمنان سره جلاكړو لكه داقول دالله پاک: ﴿ وَٱمۡتَٰزُواْ ٱلۡيَوۡمَ أَيُّهَا ٱلۡمُجۡرِمُونَ ﴾ يس ٥٩ ﴿ وَقَالَ شُرَكَآؤُهُم مَّا كُنتُمۡ إِيَّانَا تَعۡبُدُونَ ﴾ اووبه وايې شريكان ددوى (بتان دوى ته) چي نه وي تاسي چي خاص موږ لره به موعبادت كاوو. مجاهد وايې چي: معنايې داده چي الله به بتانوته دخبرو كولو توان وركړي اوبتان به ددوى تابعانوته وايې چي موږ پدي شعور نه درلود چي تاسي خاص موږ ته عبادت كوئ اونه موږ درته دخپل عبادت كولو امردركړى وو لكه داقول([1]) ﴿ فَكَفَىٰ بِٱللَّهِ شَهِيدَۢا بَيۡنَنَا وَبَيۡنَكُمۡ ﴾ (نوكافي دى الله شاهد په مينځ زموږ او ستاسي كي ) يعني شريكان به مشركانوته په قيامت ووايې چي: الله زموږ او ستاسو په مينځ كي په شاهدي كافي دى ﴿ إِن كُنَّا عَنۡ عِبَادَتِكُمۡ لَغَٰفِلِينَ ﴾ ببشكه شان دادى چي موږ ستاسي له عبادته څخه خامخا بې خبران وو څكه نه مو اورېدل نه موليدل نه موپوهه درلوده موږ بې روحه ،بې ساجمادات وو ﴿ هُنَالِكَ تَبۡلُواْ كُلُّ نَفۡسٖ مَّآ أَسۡلَفَتۡ ﴾ په دغه ځاى كي به ښكاره ومومي هريونفس جزا دهغه عمل چي پخوايې ليږلي دي له خيراو شرځني ﴿ وَرُدُّوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ مَوۡلَىٰهُمُ ٱلۡحَقِّ ﴾ اوبيرته به بوتلى شي دوى الله ته چي مولا ددوى (حق دى ) يعني واقعي واكدار دجزاددوى دى په عدل او انصاف سره ﴿ وَضَلَّ عَنۡهُم مَّا كَانُواْ يَفۡتَرُونَ ﴾ (او ورک به شي له دوى نه هغه دروغ چي وو دوى چي جوړول به يې ) اوګومان يې كاوو چي دغه بتان به ددوى شفاعت كوي په آيت كي ددوى سخت تبكيت او چوپتياته راكاږل شته چي مشركانو دداسي څېزونو عبادت كاوو چي نه يې اورېدل ، نه يې ليدل اونه يې څه ځني شړلاى شواى ﴿ قُلۡ مَن يَرۡزُقُكُم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ وَٱلۡأَرۡضِ ﴾ ( ووايه (اى محمده دوى ته!) څوک روزي دركوي تاسوته له آسمانه اوځمكي) پدي آيتونو كي دالله تعالى په ربوبيت او وحدانيت باندي دلائل شته يعني اى محمده دوى ته ووايه څوک تاسي ته له آسمانونو باران را اوروي اوڅوک له ځمكي نباتات او مېوې دركوي؟ ﴿ أَمَّن يَمۡلِكُ ٱلسَّمۡعَ وَٱلۡأَبۡصَٰرَ ﴾ بلكه آياڅوک دى چي مالک دى د(پيداكولود ) غوږونو اوسترګو؟) هغه چي تاسو وربانذي اورى او وينئ. اوڅوک دى كه چېري يې الله له تاسونه واخلي چي هغه يې بيرته تاسوته راوګرزوي لكه چي الله فرمايې: ﴿ قُلۡ أَرَءَيۡتُمۡ إِنۡ أَخَذَ ٱللَّهُ سَمۡعَكُمۡ وَأَبۡصَٰرَكُمۡ وَخَتَمَ عَلَىٰ قُلُوبِكُم مَّنۡ إِلَٰهٌ غَيۡرُ ٱللَّهِ يَأۡتِيكُم بِهِۗ ٱنظُرۡ كَيۡفَ نُصَرِّفُ ٱلۡأٓيَٰتِ ثُمَّ هُمۡ يَصۡدِفُونَ ﴾ الأنعام: ٤٦ ﴿ وَمَن يُخۡرِجُ ٱلۡحَيَّ مِنَ ٱلۡمَيِّتِ وَيُخۡرِجُ ٱلۡمَيِّتَ مِنَ ٱلۡحَيِّ ﴾ اوڅوک دى چي راوباسي ژوندى له مړي (لكه انسان له نطفې اومارغه له هګۍ، وړى له دانې ، نبات له ځمكي اومؤمن له كافرنه ) اوراوباسي مړى (لكه نطفه ) له ژوندي لكه حيوان ﴿ وَمَن يُدَبِّرُ ٱلۡأَمۡرَ ﴾ اوڅوک دى هغه چي تدبيركوي

---

[1] ﴿ إِذۡ تَبَرَّأَ ٱلَّذِينَ ٱتُّبِعُواْ مِنَ ٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُواْ وَرَأَوُاْ ٱلۡعَذَابَ وَتَقَطَّعَتۡ بِهِمُ ٱلۡأَسۡبَابُ ﴾ البقره ١٢۶

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دهرکار (دخلکو اوشتون دکائناتو؟) ﴿ فَسَيَقُولُونَ ٱللَّهُ ﴾ نوژربه ووايي دوی (چي هغه) الله جل جلاله رب العالمين دی ځکه دلته دعناد اومکابرې ځای نشته خبره ډېرې روښانه اوښکاره ده ﴿ فَقُلۡ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴾ نو وايه (ای محمده دوی ته!) نوآیانه وېرېږئ تاسي (له عذابه دالله؟ پدې چي ورسره شريک پيداکوئ اودهغه عبادت کوئ) ﴿ فَذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبُّكُمُ ٱلۡحَقُّ ﴾ نودغه الله ستاسي حق رب دی (چي داسي لوړکارونه کوي نو دده ربوبيت او وحدانيت په روښانه دلائلو ثابت دی ﴿ فَمَاذَا بَعۡدَ ٱلۡحَقِّ إِلَّا ٱلضَّلَٰلُ ﴾ (نوڅه شی دی وروسته له حقه (نشته) مګرګمراهي) استفهام انکاري يعني وروسته له حق نه له ګمراهي پرته بل څه نشته نوځوک چي له حق څخه ورتېرشي په ګمراهي کي لوېږي ﴿ فَأَنَّىٰ تُصۡرَفُونَ ﴾ (نوکوم خواته تاسي ګرځولی شي) يعني څرنګه دالله له عبادت څخه دهغه چاعبادت ته چي نه خالق اورازق دی اونه ځوک ژوندی کوي اومړه کوي ورګرزي؟ ﴿ كَذَٰلِكَ حَقَّتۡ كَلِمَتُ رَبِّكَ ﴾ هم داسي لائق شوحکم درب ستا(اوپخوانی حکم يې) ﴿ عَلَى ٱلَّذِينَ فَسَقُوٓاْ أَنَّهُمۡ لَا يُؤۡمِنُونَ ﴾ پرهغوکسانوچي کافران شوي دي (اوتکذيب يې کړی) په سبب ددې چي بېشکه دوی ايمان نه راوړي (دالله په وحدانيت اودنبي په رسالت باندي ځکه نودالله عذاب ورته لازم شو چي دوی بدمرغه اوګمراهان وو ﴿ قُلۡ هَلۡ مِن شُرَكَآئِكُم مَّن يَبۡدَؤُاْ ٱلۡخَلۡقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥ ﴾ ورته ووايه (ای محمده! دوی ته) آياشته له دې شريکانو (بتانو) ستاسي هغه ځوک چي لومړی پيداکړي خلق بيا ژوندي کړي دوی (پس له مرګه) طبري وايي: کله چي دوی په دغه دعوی نه توانېدل اوپدې کي کوټلی دليل اوروښانه حجت دې چي دوی دارباباتو په نيولو کي افتراء کونکي اودروغ ويونکي دي نوالله جَلاله رسول الله ﷺ ته دځواب ويلو امروکړچي: (۱) ﴿ قُلِ ٱللَّهُ يَبۡدَؤُاْ ٱلۡخَلۡقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥ ﴾ ووايه (ای محمده! دوی ته) چي الله اول پيداکوي خلګ بيايې (بعدالموت) ژوندي کوي دوی (نه داچي ستاسي ګوماني آلهٔ (خدايان) دغه کارکولای شي ﴿ فَأَنَّىٰ تُؤۡفَكُونَ ﴾ نوکوم لوري ته تاسي اړول کېږئ (له سمي لاري دحق څخه لاري دباطل ته؟ ﴿ قُلۡ هَلۡ مِن شُرَكَآئِكُم مَّن يَهۡدِيٓ إِلَى ٱلۡحَقِّ ﴾ (ووايه (ای محمده! دوی ته چي آياشته دي له دې شريکانو (بتانوستاسي) هغه ځوک چي لاره وښيي حق ته) دلته داستفهام په ډول يوبل توبيخ دی چي آياستاسو بتان کوم لاروړکي په لارکولای شي اوياکوم حيران ته لاره ور ښوولای شي؟ ﴿ قُلِ ٱللَّهُ يَهۡدِي لِلۡحَقِّ ﴾ ووايه (ای محمده! دوی ته) چي الله لاره ښيي حق ته يعني که ستاسو بتان له دې نه عاجزوي نوالله پاک دګمراه په هدايت باندي قادر او دحق لارښوونکی دی ﴿ أَفَمَن يَهۡدِيٓ إِلَى ٱلۡحَقِّ أَحَقُّ أَن يُتَّبَعَ أَمَّن لَّا يَهِدِّيٓ إِلَّآ أَن يُهۡدَىٰ ﴾ آيانوهغه ځوک چي لاره ښيي حق ته ډېرلائق دی ددې چي متابعت يې وکړی شي؟ اوکه هغه چي (پخپله هم) لاره نشي موندلی؟ مګرچي ده ته لاره وښودلی شي ﴿ فَمَا لَكُمۡ كَيۡفَ تَحۡكُمُونَ ﴾ نوڅه باعث دی تاسي لره څرنګه حکم کوئ (چي دبتانو اوپروردګار ترمينځ مساوات بولئ اوپدغه څرګند باطل باندي حکم کوئ دغه

---

۱ الطبري ۱۱۵-۱۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



استفهام اومعنايې تعجب اوانكاردى بيا وروسته الله تعالى ددوى دتبر اوملت فسادهسې څرګند كړچې ددى لپاره يې ساكتونكي دلائل وړاندي كړل كوم چي توحيد يې ثابتول او تقليديې غندل ﴿ وَمَا يَتَّبِعُ أَكْثَرُهُمْ إِلَّا ظَنًّا ﴾ (اونه كوي متابعت اكثرددوى مګرد (فاسد اټكل) ګمان) يعني دبتانو دالوهيت اعتقاد هسې يوغيرمستند اعتقاددى چې هيڅ دليل اوبرهان نلري بلكه يوازې باطل اوهام او وراسته خرافات دي ﴿ إِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا ﴾ (بېشكه ګومان نه بې پرواكوي (هيڅوک ) له حقه دهيڅ څيز) يعني دغه په اوهامو اوخيالاتو ولاړ اعتقادخوشي د دروغو ډک دي چي دسم يقيني اعتقاد څخه څوک وړباندي بې پرواكېدلاى نشي ﴿ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِمَا يَفْعَلُونَ ﴾ بېشكه الله ښه عالم دى په هغه څه چي دوى يې كوي (له كفره اوتكذيب څخه اوپدي كي وعيددى چي دوى داټكل اوګمان پيروي كوي اوله دليل څخه مخ اړوي وروسته الله تعالى دنبوت رښتينوالى اودوحى حقانيت داسي بيانوي فرمايي: ﴿ وَمَا كَانَ هَٰذَا الْقُرْآنُ أَن يُفْتَرَىٰ مِن دُونِ اللَّهِ ﴾ (اوندى داقرآن (سره له داسي فصاحته ، بلاغته اواعجازه چي په دروغو جوړكړى شي غيرله الله نه ) يعني عقل يې نه مني اوبېخي ناسمه ده چي څوک داسي ګومان وكړي چي دغه قرآن له الله نه پرته دبل چاكلام اوپه الله پوري تړلى شوى دى څكه قرآن دبشرله توان نه پورته كلام دى ﴿ وَمَا كَانَ هَٰذَا الْقُرْآنُ أَن يُفْتَرَىٰ مِن دُونِ اللَّهِ ﴾ اونه دى داقرآن (سره له داسى فصاحته بلاغت اواعجازه چى په دروغو جوړ كړى شى غيز له الله نه ﴿ وَلَٰكِن تَصْدِيقَ الَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ ﴾ وليكن تصديق كونكى دهغه كتاب دى چي تېرشوى دى وړاندي ترده لكه آسماني نوركتابونه ،تورات اوانجيل ﴿ وَتَفْصِيلَ الْكِتَابِ ﴾ اوتفصيل كونكى دى دهغه څه چي ليكلي شويدي (پرتاسو له عقائدو ، شرائعو اواحكامو ﴿ لَا رَيْبَ فِيهِ مِن رَّبِّ الْعَالَمِينَ ﴾ نشته هيڅ شک په ده كي (چي راغلى دى ) له لوري درب دعالميانو نه ﴿ أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَاهُ ﴾ بلكه آياوايي دوى چي (محمدصلى الله عليه وسلم) له خانه جوړكړى دى دغه ( قرآن) ؟ دغه استفهام اومعنايي تقريع اوتكول دى ﴿ قُلْ فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّثْلِهِ ﴾ ووايه ( اې محمده دوى ته !) چي نو راوړئ يو(لنډ ) سورت په شان دده (په اعجازكي) داخبره ددوى لپاره تعجيز اوپردوى باندي دحجت درول دي ﴿ وَادْعُوا مَنِ اسْتَطَعْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ ﴾ اوراوبولئ تاسي هغه څوک چي ستاسي له لاسه كېږي غيرله الله څخه) يعني تاسو څه چي موپه وس كي وي دخپلي مرستي لپاره له الله نه پرته ټول خلګ كه انسانان اوپېريان وي راوغواړئ ﴿ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴾ ( كه يې تاسي صادقان ) چي محمدصلى الله عليه وسلم له خانه جوړكړى. طبري وايي چي مقصدځني دادى چي تاسي به له سره ونكړاى شى. نوپدې كي شک نشته چي تاسودروغجن ياست څكه محمدصلى الله عليه وسلم هم ستاسوپه شان يوبشردى نو كله چي ټول مخلوقات ديولنډ سورت په جوړولو نه توانېږي نو څرنګه به يوتن دټول قرآن په جوړولو قادروي ؟ هغه خولازيات عاجزوي الله تعالى فرمايي: ﴿ بَلْ كَذَّبُوا بِمَا لَمْ يُحِيطُوا بِعِلْمِهِ ﴾ (بلكه نسبت د دروغويې وكړ په هغه قرآن چي پوره نه وو رسېدلي دوى دهغه په علم باندي ) يعني دغومشركانو پخوا له دې چي په قرآن كريم وپوهېږي سوچ اوتدبرپكي وكړي دپېغور په وركولو لاس پوري كړ او دروغ يې

Bawar.net



وګاڼو دخلګو طبيعت هم داوي چي کوم څيز نه پيژني دښمني ته يې راپورته شي ﴿ وَلَمَّا يَأْتِهِمْ تَأْوِيلُهُ ﴾ اونه وو راغلى دوى ته معنا او حقيقت ددې (قرآن) يعني حال داچي دوى ته هغه وعيد دعاقبة الامر نه وو په داګه شوى ﴿ كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ﴾ همداسي (لکه همدغو مکذبانو) تکذيب کړى وو د (خپلو انبياوو) هغو کسانو چي پخوا له دوى وو ﴿ فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظَّالِمِينَ ﴾ (نو وګوره ته چي څرنګه وو عاقبت دظالمانو) يعني اې محمده (صلى الله عليه وسلم وګوره چي دغه دروغ ګڼونکي څرنګه الله په خپل عذاب ونيول او ددوى دظلم او طغيان په سبب يې هلاک کړل نو لکه چي په هغوى يې څه وکړل همداسي به په دغو ظالمانو او سرغړونکو هم کوي.

## بلاغت:

۱- ﴿ أَسْرَعُ مَكْرًا ﴾ پدې کلام کي دعذاب تسميه په مکر سره شوي او دا د مشاکلت په توګه ده.

۲- پدې کلام کي چي فرمايې ﴿ وَجَرَيْنَ بِهِم ﴾ دلته له خطاب څخه غياب ته دالتفات صنعت راغلى او حکمت پکي دکفارو زياته تقبيح او تشنيع ده څکه دنعمت ناشکري يې کړي ده.

۳- ﴿ أَخَذَتِ الْأَرْضُ زُخْرُفَهَا ﴾ دغه خوراښکلي استعاره ده څمکه چي کله په وښو او ګلانو وپوښله شي هغه يې له هغي ښايسته ناوې سره چي په ګڼو او جامو سينګارشي مشابه وګڼله او ددې دبهجت او نضارت يعني خوښي او تازه ګي لپاره يې دزخرف کلمه استعاره کړه.

۴- ﴿ أَتَاهَا أَمْرُنَا ﴾ دلته دامر کلمه له عذاب او هلاکت څخه کنايه ده.

۵- ددې دوو کلماتو ترمينځ چي: ﴿ أَحْسَنُوا الْحُسْنَىٰ ﴾ دي داشتقاق جناس موجود دى.

۶- ﴿ أُغْشِيَتْ وُجُوهُهُمْ قِطَعًا مِّنَ اللَّيْلِ مُظْلِمًا ﴾ پدې کي مرسله مجمله تشبيه ده.

۷- ددې دواړو کلمو ترمينځ چي: ﴿ يَبْدَؤُا ﴾ او ﴿ ثُمَّ يُعِيدُهُ ﴾ دي دطباق صنعت راغلى دى.

۸- ﴿ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ ﴾ دلته استفهام دتوبيخ لپاره او همدارنګه پدې کلام کي چي ﴿ فَمَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ ﴾ استفهام دتوبيخ لپاره دى.

۹- پدې جمله کي چي الله فرمايې ﴿ بَيْنَ يَدَيْهِ ﴾ دلته لطيفه استعاره خوندي ده او مراد له دې څخه هغه دتورات او انجيل کتابونه دي چي بشارت او زيرى پکې وو.

## لطيفه:

شهيد سيد قطب رحمه الله پخپل تفسير فى ظلال القرآن کي ليکلي: چي بشر تل ترتله کله چي دکائناتو پټ رازونه سپړي؛ روزي مومي په آسمان کي روزي، او په څمکه کي روزي، کله يې په خيرکي استعمالوي او کله هم په شرکي او دغه ددوى دعقائدو دسم والي او ياناسم والي سبب دى خو تول دالله رزقونه او روزي دي چي دانسان لپاره يې تابع کړي دڅمکي له مخ څخه ارزاق، له تل او ګيډي څخه يې ارزاق، داوبو له مخ او سطحي څخه روزي

Bawar.net


اوله تل اومينځ څخه يې رزقونه دلمرله وړانګو روزي، اود سپوږمۍ له رڼا څخه هم ارزاق اوروزي آن ترديې چې په
خوسا څمکه کې هم علم دوا اوترياق مومي او الله پاک رښتيا وايي چې (۱) ﴿ قُلْ مَن يَرْزُقُكُم مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ ﴾.

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَمِنْهُم مَّن يُؤْمِنُ بِهِۦ وَمِنْهُم مَّن لَّا يُؤْمِنُ بِهِۦ ۚ وَرَبُّكَ أَعْلَمُ بِالْمُفْسِدِينَ ﴿٤٠﴾ وَإِن كَذَّبُوكَ فَقُل لِّي عَمَلِي وَلَكُمْ
عَمَلُكُمْ ۖ أَنتُم بَرِيٓـُٔونَ مِمَّآ أَعْمَلُ وَأَنَا۠ بَرِىٓءٌ مِّمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٤١﴾ وَمِنْهُم مَّن يَسْتَمِعُونَ إِلَيْكَ ۚ أَفَأَنتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ وَلَوْ كَانُوا۟ لَا
يَعْقِلُونَ ﴿٤٢﴾ وَمِنْهُم مَّن يَنظُرُ إِلَيْكَ ۚ أَفَأَنتَ تَهْدِى الْعُمْىَ وَلَوْ كَانُوا۟ لَا يُبْصِرُونَ ﴿٤٣﴾ إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ
النَّاسَ شَيْـًٔا وَلَٰكِنَّ النَّاسَ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿٤٤﴾ وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ كَأَن لَّمْ يَلْبَثُوٓا۟ إِلَّا سَاعَةً مِّنَ النَّهَارِ يَتَعَارَفُونَ بَيْنَهُمْ ۚ قَدْ
خَسِرَ الَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِلِقَآءِ اللَّهِ وَمَا كَانُوا۟ مُهْتَدِينَ ﴿٤٥﴾ وَإِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِى نَعِدُهُمْ أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ ثُمَّ اللَّهُ
شَهِيدٌ عَلَىٰ مَا يَفْعَلُونَ ﴿٤٦﴾ وَلِكُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولٌ ۖ فَإِذَا جَآءَ رَسُولُهُمْ قُضِىَ بَيْنَهُم بِالْقِسْطِ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٤٧﴾
وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٤٨﴾ قُل لَّآ أَمْلِكُ لِنَفْسِى ضَرًّا وَلَا نَفْعًا إِلَّا مَا شَآءَ اللَّهُ ۗ لِكُلِّ أُمَّةٍ أَجَلٌ ۚ إِذَا
جَآءَ أَجَلُهُمْ فَلَا يَسْتَـْٔخِرُونَ سَاعَةً ۖ وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ ﴿٤٩﴾ قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ أَتَىٰكُمْ عَذَابُهُۥ بَيَٰتًا أَوْ نَهَارًا مَّاذَا يَسْتَعْجِلُ مِنْهُ
الْمُجْرِمُونَ ﴿٥٠﴾ أَثُمَّ إِذَا مَا وَقَعَ ءَامَنتُم بِهِۦٓ ۚ ءَآلْـَٰٔنَ وَقَدْ كُنتُم بِهِۦ تَسْتَعْجِلُونَ ﴿٥١﴾ ثُمَّ قِيلَ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ ذُوقُوا۟ عَذَابَ
الْخُلْدِ هَلْ تُجْزَوْنَ إِلَّا بِمَا كُنتُمْ تَكْسِبُونَ ﴿٥٢﴾ ۞ وَيَسْتَنۢبِـُٔونَكَ أَحَقٌّ هُوَ ۖ قُلْ إِى وَرَبِّىٓ إِنَّهُۥ لَحَقٌّ ۖ وَمَآ أَنتُم
بِمُعْجِزِينَ ﴿٥٣﴾ وَلَوْ أَنَّ لِكُلِّ نَفْسٍ ظَلَمَتْ مَا فِى الْأَرْضِ لَافْتَدَتْ بِهِۦ ۗ وَأَسَرُّوا۟ النَّدَامَةَ لَمَّا رَأَوُا۟ الْعَذَابَ ۖ وَقُضِىَ
بَيْنَهُم بِالْقِسْطِ ۚ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٥٤﴾ أَلَآ إِنَّ لِلَّهِ مَا فِى السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ ۗ أَلَآ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا
يَعْلَمُونَ ﴿٥٥﴾ هُوَ يُحْىِۦ وَيُمِيتُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٥٦﴾ يَٰٓأَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَتْكُم مَّوْعِظَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَشِفَآءٌ لِّمَا فِى
الصُّدُورِ وَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ ﴿٥٧﴾ قُلْ بِفَضْلِ اللَّهِ وَبِرَحْمَتِهِۦ فَبِذَٰلِكَ فَلْيَفْرَحُوا۟ هُوَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ ﴿٥٨﴾ قُلْ
أَرَءَيْتُم مَّآ أَنزَلَ اللَّهُ لَكُم مِّن رِّزْقٍ فَجَعَلْتُم مِّنْهُ حَرَامًا وَحَلَٰلًا قُلْ ءَآللَّهُ أَذِنَ لَكُمْ ۖ أَمْ عَلَى اللَّهِ تَفْتَرُونَ ﴿٥٩﴾
وَمَا ظَنُّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ يَوْمَ الْقِيَٰمَةِ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُونَ
﴿٦٠﴾ وَمَا تَكُونُ فِى شَأْنٍ وَمَا تَتْلُوا۟ مِنْهُ مِن قُرْءَانٍ وَلَا تَعْمَلُونَ مِنْ عَمَلٍ إِلَّا كُنَّا عَلَيْكُمْ شُهُودًا إِذْ تُفِيضُونَ فِيهِ ۚ وَمَا
يَعْزُبُ عَن رَّبِّكَ مِن مِّثْقَالِ ذَرَّةٍ فِى الْأَرْضِ وَلَا فِى السَّمَآءِ وَلَآ أَصْغَرَ مِن ذَٰلِكَ وَلَآ أَكْبَرَ إِلَّا فِى كِتَٰبٍ مُّبِينٍ ﴿٦١﴾ أَلَآ
إِنَّ أَوْلِيَآءَ اللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٦٢﴾ الَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَكَانُوا۟ يَتَّقُونَ ﴿٦٣﴾ لَهُمُ الْبُشْرَىٰ
فِى الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا وَفِى الْءَاخِرَةِ ۚ لَا تَبْدِيلَ لِكَلِمَٰتِ اللَّهِ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿٦٤﴾ وَلَا يَحْزُنكَ

---

(۱) في ظلال القرآن ۱۱ / ۱۴۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



قَوْلُهُمْ إِنَّ الْعِزَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿٦٥﴾ أَلَا إِنَّ لِلَّهِ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَمَن فِي الْأَرْضِ
وَمَا يَتَّبِعُ الَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ شُرَكَاءَ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ
﴿٦٦﴾ هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَسْمَعُونَ
﴿٦٧﴾ قَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا سُبْحَانَهُ هُوَ الْغَنِيُّ لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ إِنْ عِندَكُم مِّن
سُلْطَانٍ بِهَٰذَا أَتَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٦٨﴾ قُلْ إِنَّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُونَ
﴿٦٩﴾ مَتَاعٌ فِي الدُّنْيَا ثُمَّ إِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ ثُمَّ نُذِيقُهُمُ الْعَذَابَ الشَّدِيدَ بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ ﴿٧٠﴾

يونس: ٤٠ ـ ٧٠

## مناسبت اوتړاو:

کله چي الله تعالی دکافرانو هغه پېغورونه چي دنبوت اووحی په هکله يې مسلمانانوته ورکول بيان کړل نودلته يې دا يادونه وکړه چي ځيني له دوی څخه هغه کسان دي چي په دې باورلري قرآنکريم دالله کتاب دی خوعناد اوتکبرکوي اوځيني بياهغه يومخ ايزه ناپوهان اوبې عقلان دي چي بالکل يې تصديق نه کوي اونه يې پېژني نوالله دلته فرمايي چي دغه قرآن دزړونو دناروغيولپاره علاج او درمل دی اوبيادمشرکانو وروستی هستوګنځی ښيي چي هغه سخت عذاب اودوزخ دی.

## لغتونه:

(الصم) دأصم جمع اوکاڼه ته وايي ( بياتا) دشپې (تفيضون) له (افاض) څخه اخيستل شوی غوږ په کېدلوته وايي (يعزب) پټېږي (مثقال) تول (سلطان) دليل اوبرهان (سبحانه) پاکي ده ده لره له ټولو عيبونو.

## تفسير:

﴿ وَمِنْهُم مَّن يُؤْمِنُ بِهِ ﴾ اوځيني له دې (مکذبانو) هغه دي چي ايمان راوړي په دغه (قرآن) يعني اې محمده! ځيني له هغوکسانوچي ته ورته رااستول شوی يې پدې قرآن ايمان راوړي اوستاپيروي کوي اوپه هغه نفع منده کېږي ﴿ وَمِنْهُم مَّن لَّا يُؤْمِنُ بِهِ ﴾ اوځيني له دوی هغه دي چي ايمان نه راوړي په دغه قرآن هيڅکله اوپدې حال مړه کېږي ﴿ وَرَبُّكَ أَعْلَمُ بِالْمُفْسِدِينَ ﴾ اورب ستاښه عالم دی (پرحال) دمفسدانو ،چي څوک دهدايت وړدی نوهدايت ورته کوي اوڅوک دګمراهي لائق دی نويې ګمراه کوي ﴿ وَإِن كَذَّبُوكَ فَقُل لِّي عَمَلِي وَلَكُمْ عَمَلُكُمْ ﴾ اوکه دوی ستاتکذيب وکړي نوووايه ( ای محمده ! دوی ته ) چي ماته (جزا ) دعمل زماده اوتاسي ته (جزا ) دعمل ستاسي ده ( هغه که حق وي اوکه باطل )﴿ أَنتُم بَرِيئُونَ مِمَّا أَعْمَلُ وَأَنَا بَرِيءٌ مِّمَّا تَعْمَلُونَ ﴾ تاسي بېزاره يې (له جزاد ) هغه کارچي زه يې کوم اوزه بېزاره يم (له جزاد ) هغه کارچي تاسي يې کوئ (يودبل په ګناه نه نيول کېږو ) ﴿ وَمِنْهُم مَّن يَسْتَمِعُونَ إِلَيْكَ ﴾ (اوځيني له دې (کفارو ) هغه کسان دي چي تاته غوږ نيسي (کله چي ته قرآن لولې خوپه زړونوکي يې داستاتلاوت اثراو اغېزه نکوي ﴿ أَفَأَنتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ ﴾ آيانوته

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


اوروي (مورزاده) کاڼه؟ (بلکه نشي اورولای) ﴿ وَلَوْ كَانُوا۟ لَا يَعْقِلُونَ ﴾ اواګرکه وي دوی چي هيڅ عقل هم نلري (اونه سوچ کوي). ابن کثير وايي چي معنا دا څيني له دغو کسانو هغه دي چي ستا خوندور کلام او ګټور قرآن اوري خو ددوی هدايت او لارښودنه ستا په واک کي نه ده لکه چي ته کاڼه نشي اورولای همداسي دغه کسان په لار کولای نشي الاأن يشاء الله(۱) ﴿ وَمِنْهُم مَّن يَنظُرُ إِلَيْكَ ۚ أَفَأَنتَ تَهْدِى ٱلْعُمْىَ وَلَوْ كَانُوا۟ لَا يُبْصِرُونَ ﴾ اوځيني له دوی هغه دي چي تاته ګوري (او ستا د نبوت څرګند دلائل ويني) آيا نو ته به لاره وښيي (مورزاده) ړندو ته اوګرکه وي دوی چي هيڅ بصيرت او پوهه نلري) يعني اې محمده! صلى الله عليه وسلم آيا ته کولای شي چي هغو کسانو ته چي مورزاده ړانده وي اودزړه بصيرت يې هم منتفي وي هدايت وکړې؟ دوی ته يې پدې ړانده وويل چي حق نه ويني. قرطبي وايي چي مقصد د رسول الله صلى الله عليه وسلم ډاډينه اوتسلا ده يعني لکه چي ته نشي کولای د ړندو لپاره سترګي اوبېنايي ومومي همداسي نشي کولای چي دوی ته دايمان راوړلو توفيق ورپه برخه کړې(۲) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَظْلِمُ ٱلنَّاسَ شَيْـًٔا ﴾ ببشکه چي الله هيڅ ظلم نکوي پر خلګو) يعني الله پاک له ګناه پرته هيڅوک هم په عذاب نه اخته کوي اوله خپل مخلوق سره داسي چلند نکوي چي ورسره ورنه وي ﴿ وَلَـٰكِنَّ ٱلنَّاسَ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴾ وليکن خلګ پرخپلو ځانونو ظلم کوي (په کفر اوګناهونو او دالله له احکامو په مخالفت کولو باندي. طبري وايي: چي دغه دالله له لوري خبرتيا ده چي هغه له ګناه پرته له دوی څخه ايمان نه سلبوي خو کله چي يې ځني اخلي اوسلبوي يې هغه دګناهونو په سبب وي نوچي ګناه کوي ورسره حق دی چي په زړونو يې مهر ولګول شي(۳) ﴿ وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ كَأَن لَّمْ يَلْبَثُوٓا۟ إِلَّا سَاعَةً مِّنَ ٱلنَّهَارِ ﴾ او هغه ورځ چي (پس له مرګه الله) کفار راجمع کړي حال دا چي لکه مدا رنه وو کړی دوی (په دنياکي) مګرپه اندازه د يوه ساعت له ورځي (اودا په سبب دسختيو اومشکلاتو دقيامت) ﴿ يَتَعَارَفُونَ بَيْنَهُمْ ﴾ (پېژني به دوی يو تربله پخپلومنځونوکي) يعني ځيني به ځيني نورهسي پېژني لکه چي په دنياکي يې پېژندل اودغه دتوبيخ اورسوايي پېژندنه ده يو به بل ته وايي چي تا-زه تېرايستلی (غولولی) اوګمراه کړی وم ددوی پېژندګلوی به دميني اوالفت پېژندګلوی نه وي ﴿ قَدْ خَسِرَ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِلِقَآءِ ٱللَّهِ وَمَا كَانُوا۟ مُهْتَدِينَ ﴾ په تحقيق زيانمن شوي دي هغه کسان چي دالله دملاقات تکذيب يې کړی دی اونه وو دوی سمه لاره موندونکي. يعني نه وو په دنياکي خيرته رسېدونکي ﴿ وَإِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ ٱلَّذِى نَعِدُهُمْ أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ ﴾ اوکه وښيو موږ تاته ځيني له هغه عذابه چي وعده يې کوو له دوی سره اې محمده! په دنياکي نوبه دي سترګي ورباندي يخي شي اوکه چېري تاوفات کړو پخواله دې نو ددوی راتګ په آخرت کي موږته دی او جزابه ارو مرو ورکولی شي زياتي که ژروي اوکه په خنډ ﴿ ثُمَّ ٱللَّهُ شَهِيدٌ عَلَىٰ مَا يَفْعَلُونَ ﴾ بيانو الله شاهد دی په هغو کارونو چي دوی يې کوي (له ګناهونو اوبدو عملونو او الله به ورباندي جزا ورکړي ﴿ وَلِكُلِّ أُمَّةٍ

---

(۱) المختصر ۲/ ۱۹۵
(۲) القرطبي ۸/ ۳۶۴
(۳) الطبري ۱۱/ ۱۲۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



رَسُولٌ فَإِذَا جَآءَ رَسُولُهُمْ قُضِيَ بَيْنَهُم بِٱلْقِسْطِ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴾ (اولپاره د هرامت يو رسول دى نو كله چي رابه غلى (دوى ته) رسول ددوى (اودوى به ونه منل) نوحكم به وكرشو په مينځ ددوى كي په انصاف حال داچي دوى به مظلومان نه وو( چي بېګناه معذب كېدل ) مجاهدوايې معناداچي دقيامت په ورځ به ددوى ترمينځ په عدل فيصله وشي. ابن كثيروايې چي هرامت به دخپل پيغمبر په ملتيا الله تعالى ته وراندي كېږي اودعملونو كتاب به يې وړباندي دخير اوشرشاهدي (ګواهي) وايې اوهم داراز ساتونكي ملائكي به يې هم شاهدان وي ﴿ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا ٱلْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴾ (اووايې دوى كله به وي دغه وعده كه ياست تاسي صادقان ؟) يعني دمكې كفار وايې چي كله به وي هغه عذاب چي ته يې موږته وعده راكوې ؟ دغه خبره دوى په مسخرو اوملنډوكوي ﴿ قُل لَّآ أَمْلِكُ لِنَفْسِي ضَرًّا وَلَا نَفْعًا ﴾ ووايه ( اې محمده ! دوى ته ) چي زه دخپل ځان لپاره د(دفع كولود ) ضرراو (رسولو ) دنفعي مالک نه يم ( نه زه پخپله اونه بل څوک دغه اختيارلري ) ﴿ إِلَّا مَا شَآءَ ٱللَّهُ ﴾ مګردهغې (نفعي او ضرر) چي الله اراده وفرمايي (نوزه څرنګه كولاى شم داستعجال په ډول تاسوته عذاب راولم ﴿ لِكُلِّ أُمَّةٍ أَجَلٌ ﴾ لپاره دهرامت يوه نېټه ده دهلاكت اوعذاب لپاره ﴿ إِذَا جَآءَ أَجَلُهُمْ فَلَا يَسْتَـْٔخِرُونَ سَاعَةً وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ ﴾ كله چي راشي هغه اجل (نېټه دمرګ ددوى ) نونه به وروسته كېږي دوى يوه ګړۍ اونه به ړومبى كېږي (پرې)ځكه دالله فيصله پخپل وخت پېښېدونكي ده ﴿ قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ أَتَىٰكُمْ عَذَابُهُۥ بَيَٰتًا أَوْ نَهَارًا ﴾ ووايه ( اې محمده ! دوى ته چي ) آياوينئ تاسي كه راشي تاسي ته عذاب دالله دشپې اويادورځي (ستاسوپكي ګټه څه ده؟) ﴿ مَّاذَا يَسْتَعْجِلُ مِنْهُ ٱلْمُجْرِمُونَ ﴾ نوڅه به وي هغه عذاب چي په جلتي سره غوښت له هغه څخه مجرمانو ) دغه استفهام اومعنايې تعظيم اوتهويل دى يعني څومره غټ كارتاسو په تلواره غواړئ لكه يوچاته وواېي چي هغه دسترامرغوښتنه كوي ته ورته وواېي ستالپاره به څه ګټه ترلاسه شي ﴿ أَثُمَّ إِذَا مَا وَقَعَ ءَامَنتُم بِهِۦٓ ﴾ آياكله چي (دغه عذاب) واقع شي نوتاسوبه ايمان راوړئ په هغه (الله) ؟ دلته په كلام كي حذف راغلى چي تقديريې داسي دى آياتاسودغه عذاب ستاسوترايمان راوړلو پوري ځنډوي اوكله چي عذاب واقع اوتاسي يې دسرپه سترګو وويني نوبياستاسو دايمان راوړلو څه معنااو ګټه شته؟ ځكه هغه وخت بيا ايمان نه منل كېږي. طبري وايې: معنادا چي اې مشركانو ! كله چي عذاب راشي بيابه تاسو ايمان راوړئ ؟ خو په هغه حال كي دايمان راوړل ګټه نلري(١) ﴿ ءَآلْـَٰٔنَ وَقَدْ كُنتُم بِهِۦ تَسْتَعْجِلُونَ ﴾ (آيااوس ( ايمان راوړئ؟ ) حال داچي په تحقيق وئ تاسي چي په (غوښتلود ) دغه (عذاب ) به مو جلتي كوله ) يعني اې مجرمانو ! تاسو اوس ايمان راوړئ، تردې له مخه خومو ملنډې اومسخرې كولې اودعذاب راتلل مو په تلواره غوښتل ﴿ ثُمَّ قِيلَ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ ذُوقُوا۟ عَذَابَ ٱلْخُلْدِ ﴾ بيابه وويل شي هغوكسانوته چي ظلم يې كړى وي وڅكئ عذاب(دائم) همېشه ﴿ هَلْ تُجْزَوْنَ إِلَّا بِمَا كُنتُمْ تَكْسِبُونَ ﴾ آياسزابه دركولى شي تاسي ته؟(نه به دركولى شي ) مګرپه سبب دهغه شرک كفر اوتكذيب چي تاسوبه كاوو ﴿ وَيَسْتَنۢبِـُٔونَكَ أَحَقٌّ هُوَ ﴾ (اوله

(١) الطبري ١١/ ١٣٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تاپوښتنه کوي چې آياداحق دی؟) يعني اې محمده! له تانه پوښتنه کوي او وايي چې آياهغه چې تامورته دعذاب اوبعث وعده راکړي هغه حق ده؟ ﴿ قُلْ إِي وَرَبِّي إِنَّهُ لَحَقٌّ ﴾ ووايه (اې محمده! هو زما دي پخپل رب قسم وي چې دابېشکه حق دی ﴿ وَمَا أَنتُم بِمُعْجِزِينَ ﴾ اونه يې تاسي عاجزونکي (دالله) چې تري وتښتئ او ياپې له عذابه منع کړئ، تاسي ټول دهغه په واک کي ياست([1]) ﴿ وَلَوْ أَنَّ لِكُلِّ نَفْسٍ ظَلَمَتْ مَا فِي الْأَرْضِ ﴾ اوکه بېشکه (مملوک کړل شي) دپاره دهرنفس چې ظلم يې کړی وي هغه څه چې په ځمکه کي دي (ټول بشپړ مالونه او خزانې) ﴿ لَافْتَدَتْ بِهِ ﴾ نو خامخابه فديه ورکړي دغه نفس په دغه (هرڅه سره له عذابه) خوليږده ده چې قبول دي شي لکه چې الله تعالی فرمايي: ﴿ فَلَن يُقْبَلَ مِنْ أَحَدِهِم مِّلْءُ الْأَرْضِ ذَهَبًا وَلَوِ افْتَدَىٰ بِهِ ﴾ [آل عمران ۹۱] بياالله ددوی له افسوس اوپښېماني څخه داسي خبرراکوي چې: ﴿ وَأَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا رَأَوُا الْعَذَابَ ﴾ (اووبه مومي دوی په زړونو خپلو کي پښېماني کله چې عذاب ووينې) يعني دغه ظالمان به کله چې عذاب ووينې پټ پښېمانه شي امام جلال الدين وايي: چې رئيسان ددوی به پښېماني له کمزورو پټوي له دې وېري چې ضعيفان او کمزوري هغه چې دوی گمراه کړي وو دغو رئيسانو او مشرانو ته پېغور ورنکړي([2]) ﴿ وَقُضِيَ بَيْنَهُم بِالْقِسْطِ ﴾ او ددوی ترمينځ به فيصله وکړل شي په عدل سره ﴿ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴾ او حال داچې پردوی به ظلم نه کاووشي (داعمالو او له گناه پرته په بل څه به جزانه ورکول کېږي) ﴿ أَلَا إِنَّ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ (خبردارشئ چې بېشکه خاص الله لره دی هرهغه څه چې په آسمانونو او په ځمکه کي دي) الا، حرف تنبيه دی دکلام په پيل کي دخبرتياپاره راځي يعني واورئ هغه چې زه درته وايم هرڅه چې په آسمانونو او ځمکه کي دي دالله مملوک دي هيڅ څيز له الله پرته دبل چانه دی الله پاک دټولو خالق او مالک دی ﴿ أَلَا إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ ﴾ خبردارشئ چې بېشکه دالله وعده حقه ده (بعث او جزا خامخا راتلونکي دي) ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ وليکن زيات له خلگو (کوتاه عقله او غافلان) نه (پرې) پوهېږي (او هغه څه وايي چې دوی يې وايي) ﴿ هُوَ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴾ همدغه (الله) ژوندي کول او مړه کول کوي او هم ده ته بيا بېول کېږي (په قيامت کي دجزا لپاره) ﴿ يَا أَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَاءَتْكُم مَّوْعِظَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ ﴾ اې خلگو په تحقيق راغلی دی تاسي ته موعظه له جانبه درب ستاسي (دغه قرآنکريم) ﴿ وَشِفَاءٌ لِّمَا فِي الصُّدُورِ ﴾ او شفا (دارو) لپاره دټولو (دشک او ناپوهي (رنځونو) چې په سينو (دخلگو) کي دي ﴿ وَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ ﴾ او هدايت او رحمت دی لپاره دمؤمنانو دکشاف تفسير مؤلف ليکي چې ددې معناداده چې داسي يو جامع کتاب چې دغه ستري دپند، فائدې خبرې پکې دي تاسي ته

[1] چاپيا ويلي معنايې دا چې له الله څخه تښتېدلای نشئ. تاسو هرچيري چې لاړشئ هغه مو نيسي.
[2] الجلالين ۱۹۲/۲ په البحر المحيط کي وايي خکه دوی پښېماني پټوي چې دوی هسي عذاب ووينې چې هډو گمان يې نه کاوو اونه يې په زړه کي ورتېرېدل نو خکه هيښ ميښ حيران شي اوډ ژړا او ناروتوان له لاسه ورکړي لکه چې څوک داعدام په تخته وخېژول شي نو وچ کلک حيران او هک پک پاتې شي يوه کلمه يې هم په ژبه نه راځي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



راغلی دی او پدې باندې تنبيه وركوي چي توحيد دزړونو لپاره دفاسدو عقائدو له رنځ څخه دارودي او دغه كتاب حق ته بلونكى او له تاسو نه دهغه چالپاره چي وربانډي ايمان راوړي رحمت دی (۱) ﴿ قُلْ بِفَضْلِ ٱللَّهِ وَبِرَحْمَتِهِۦ فَبِذَٰلِكَ فَلْيَفْرَحُوا۟ ﴾ ووايه (اې محمده ! مؤمنانو ته چي خوشحاله او سئ) په فضل (قرآن) دالله سره او په رحمت (اسلام) دالله سره نو په همدغه فضل اورحمت دي مؤمنان خوشحاله شي . ابن عباس رضى الله عنهما وايي چي: دالله فضل يعني قرآن اورحمت يې اسلام دی (۲) ﴿ هُوَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ ﴾ (څكه) چي دغه (فضل اورحمت) د هرغوره دی له هغو مالونو چي دوی يې جمع كوي (ددنيا له فاني هستي او ښكلا څخه څكه دادنيا سره له تولي مافيها دملخ ديو وزر سره هم برابره نه ده لكه چي په حديث شريف كي راځي) ﴿ قُلْ أَرَءَيْتُم ﴾ و وايه (اې محمده آياوينئ تاسي ﴿ مَّآ أَنزَلَ ٱللَّهُ لَكُم مِّن رِّزْقٍ ﴾ هغه څيز چي الله تاسو ته نازل كړی دی له (انواعو) درزق څخه خطاب دعربو كفارو ته دی يعني خبرراكړئ اې مشركانو له هغه چي الله پاک پيداكړي ستاسو لپاره حلال رزق ﴿ فَجَعَلْتُم مِّنْهُ حَرَامًا وَحَلَٰلًا ﴾ نوګرزولی دی تاسي له دغه رزق څخه (ځيني) حرام او(ځيني) حلال (لكه بحيره، سائبه اوميتة) ابن عباس رضى الله عنه وايي چي: دغه په مشركانو باندې دانكار په توګه راغلي دي چي دوی به حلال اوحرام ګڼل له بحائرو، سوائبو اوكښتونو اوچارپايانو څخه (۳) ﴿ قُلْ ءَآللَّهُ أَذِنَ لَكُمْ ۖ أَمْ عَلَى ٱللَّهِ تَفْتَرُونَ ﴾ ووايه (اې محمد ! دوی ته) آياالله اذن كړی دی تاسي ته (په دغه تحليل اوتحريم كي) اوكه په الله جل جلاله پوري دروغ تړئ تاسي (له ځانه)؟ ﴿ وَمَا ظَنُّ ٱلَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى ٱللَّهِ ٱلْكَذِبَ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ اوڅه شی دی ګمان دهغو كسانو چي له ځانه په الله باندي دروغ تړي په ورځ دقيامت كي؟ (چي الله به څه ورسره وكړي ؟ دوی په الله باندې دروغ تپي اوله خپله ځانه حلال اوحرام ټاكي آيادوی ګومان كوي چي الله به يې محاسبه ونكړي اوبخښش به ورته وكړي ؟ خوداسي نه ده بلكه په غرغندو اوركي به يې وغورځوي اودغه دافتراء كوونكو لپاره سخت وعيد دی ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى ٱلنَّاسِ ﴾ بېشكه الله خامخا خاوند دفضل دی پرخلكو (چي ژرترژره يې نه هلاكوي او په دوی باندي يې د رسولانو په رالستولو نعمت كړی اوكتابونه يې وربانډي ، رانازل كړي دي ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُونَ ﴾ وليكن اكثره خلق (دنعمتونو) شكرنه كاږي (بلكه كفران كوي) ﴿ وَمَا تَكُونُ فِى شَأْنٍ وَمَا تَتْلُوا۟ مِنْهُ مِن قُرْءَانٍ ﴾ اونه يې ته (مشغول) په كوم كاركي (له خپلو كارونو . اونه لولې ته (هيڅ سورت ، آيت له دې نه (يعني له قرآنه) خطاب رسول الله صلى الله عليه وسلم ته دی ﴿ وَلَا تَعْمَلُونَ مِنْ عَمَلٍ ﴾ اونه كوئ تاسي (اې خلكو !) كوم (دخير، ياشر) كار له كارونو څخه ﴿ إِلَّا كُنَّا عَلَيْكُمْ شُهُودًا إِذْ تُفِيضُونَ فِيهِ ﴾ مګر او سو موږ پرتاسی شاهدان كله چي مشغول او سېږئ تاسي په هغه كي (ستاسي اعمال څارو اوشمېرو يې ﴿ وَمَا يَعْزُبُ عَن رَّبِّكَ مِن مِّثْقَالِ

---

(۱) الكشاف ۲ / ۳۵۳
(۲) البحر ۵ / ۱۷۱
(۳) المختصر ۲ / ۱۹۸

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ذَرَّةٍ فِى ٱلْأَرْضِ وَلَا فِى ٱلسَّمَآءِ ﴾ اونه غائبېږي له ربه ستا په اندازه ديوې ذرې په ځمکه کي اونه په آسمان کي )
يعني نه پټېږي له رب ستا څخه په اندازه د واړه مېږي ، يا ګرد په ټولو کائناتو او موجوداتو کي ﴿ وَلَآ أَصْغَرَ مِن
ذَٰلِكَ وَلَآ أَكْبَرَ إِلَّا فِى كِتَٰبٍ مُّبِينٍ ﴾ اونشته ډېره وړوکي له دغي ذرې څخه اونه ډېره غټه مګر (داټول ليکلي پراته
دي) په کتاب ښکاره (لوح محفوظ) کي . طبري وايې چي : پدې کي الله دد ې خبر ورکوي چي له الله څخه هيڅ ډېر
کوچنی شی پټ نه دی که څه هم خورا سپک وي اونه خورا لوی شی که څه هم ډېر دروندوي نوستاسي اعمال بايد
دالله له رضاسره سم وي ځکه الله يې درته ليکي ورباندي جزا درکوي[1] ﴿ أَلَآ إِنَّ أَوْلِيَآءَ ٱللَّهِ لَا خَوْفٌ
عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾ ( واورئ خبردارشئ بېشکه نيشته هيڅ قسم وېره دالله په دوستانو اونه به دوی خفه
کېږي ) يعني اې خلګو پدې وپوهېږئ چي دالله په دوستانو اومحبانو دآخرت په ورځ هيڅ دعذاب وېره نشته اونه
به دوی په هغه څه چي په دنياکي خني پاتي شوي وي خفه کېږي بياالله همدغه کسان داسي په ډاګه کوي
﴿ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَكَانُوا۟ يَتَّقُونَ ﴾ (دغه دوستان) هغه کسان دي چي ايمان لري اودوی دي چي ځان
ساتي (له ګناهونو اود اوامرو امتثال کوي ) مؤمن متقي دالله ولي دی اوپه حديث شريف کي راځي : دالله داسي
بندګان شته چي نه نبيان دي اونه هم شهيدان خو انبياء اوشهداء ددوی په حال غبطه کوي چي کله دقيامت په ورځ
دوی الله ته نژدې (مقربان) وي پوښتونکو وويل: هغه کسان او دهغوی اعمال موږ ته راوښيه دا څوک دي چي موږ
هم ورسره محبت وکړو . رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل : داهغه قوم دی چي يوازي دالله لپاره يې يو له بله
مينه اومحبت کاوو خپلوان نه وو اونه يې يوبل ته مالونه سره ورکول په الله لوړه چي بېشکه مخونه يې نور
اوخلاده اودنورپه منبربه ناست وي له هغه څه به نه وېرېږي له کوم څخه چي خلګ وېرېږي اوپه هغه به نه خفه کېږي
له کوم څه چي خلګ خوابدي کېږي اوبيايې دا آيت ولوست: ﴿ أَلَآ إِنَّ أَوْلِيَآءَ ٱللَّهِ ﴾ دآيت ترپايه[2] ﴿
لَهُمُ ٱلْبُشْرَىٰ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَفِى ٱلْءَاخِرَةِ ﴾ ( دوی ته زېری په دغه ژوندون لېږ خسيس(ددنيا ) کي اوپه
آخرت کي) يعني ددوی لپاره په دارينو کي هغه څه دي چي دوی ورباندي خوشحالېږي ځکه چي د مړيني په وخت
کي پرښتې دالله درضا اورحمت زېری ورکوي اوپه آخرت کي جنتونه اونعمتونه لکه چي الله تعالی فرمايي ﴿ إِنَّ
ٱلَّذِينَ قَالُوا۟ رَبُّنَا ٱللَّهُ ثُمَّ ٱسْتَقَٰمُوا۟ تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ أَلَّا تَخَافُوا۟ وَلَا تَحْزَنُوا۟ وَأَبْشِرُوا۟ بِٱلْجَنَّةِ ٱلَّتِى
كُنتُمْ تُوعَدُونَ ﴾ (فصلت ۳۰) ﴿ لَا تَبْدِيلَ لِكَلِمَٰتِ ٱللَّهِ ﴾ (نشته هيڅ بدلول دالله په کلماتو کي) يعني دالله
په وعده کي خلاف نشته ﴿ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلْفَوْزُ ٱلْعَظِيمُ ﴾ (دغه (زېری ددواړو جهانونو ) هم دغه دی بری ډېرلوی )
چي تردې پورته اوستربل بری نشته ﴿ وَلَا يَحْزُنكَ قَوْلُهُمْ ﴾ اونه دي خفه کوي تا ( اې محمده ! ) خبري

---

(1) الطبري ۱۱/ ۱۳۱

(2) طبري ۱۱/ ۱۳۲ ځيني مفسرين وايي چي په دنياکي بشارت هغه صالح خوبونه دي چي مؤمنان يېويني اويا ورليدل کېږي په هغه حديث کي چي حاکم روايت کړی راځي چي بشارت نيک خوبونه اودمرګ په وخت کي دملائکو زېری دی دغه وينا طبري هم غوره کړې دی

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


﴿إِنَّ ٱلْعِزَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ﴾ بېشكه چې ددوی (چې وايي ته نبي نه يې ستا تکذيب کوي) قوت زور ټول خاص الله لره دی (هغه ستا مرستندوی مددګار او معاونت کوونکی دی او يوازي هغه زورور دی چې د خپلو اولياوو مرسته کوي له دښمنانو څخه يې ژغوري) هغه دی ښه اوريدونکی (د ټولو اقوالو) او ښه عليم خبردار دی (په ټولو احوالو) ﴿أَلَآ إِنَّ لِلَّهِ مَن فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَن فِى ٱلْأَرْضِ﴾ (واورئ خبردار شئ چې بېشکه خاص الله لره دي هر هغه څوک چې په آسمانونو کې دی او هغه څوک چې په ځمکه کې دي) يعني ټول الله لره دي خلقا ملکا وعبيدا ﴿وَمَا يَتَّبِعُ ٱلَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ شُرَكَآءَ﴾ او نه کوي متابعت هغه کسان چې بولي (عبادت کوي) دوی غير له الله نه د شريکانو (په حقيقت باندي بلکه دوی ګمان کوي چې دغه زموږ شفاعت کوي او موږ ته نفع رسوي خو هغه نه له دوی څخه ضرر دفع کولای شي او نه ورته ګټه رسولای شي ﴿إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا ٱلظَّنَّ﴾ متابعت نه کوي دوی (د هيڅ شي) مګر د ګمان (باطل) ﴿وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ﴾ (او نه دي دوی مګر دروغ وايي اټکلونه چلوي) په ګمانونو باندي د حقيقت خيال کوي ﴿هُوَ ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُمُ ٱلَّيْلَ لِتَسْكُنُوا۟ فِيهِ﴾ الله هم هغه ذات دی چې تاسي ته يې شپه ګرځولې (تياره) لپاره دد ې چې تاسي پدې کې آرام شئ) پدې کې دالله په بشپړ قدرت باندي تنبيه ده يعني دالله په وحدانيت او قدرت باندي له دلائلو يو هم دا دی چې تاسو ته يې شپه د آرام او هوساينې لپاره ګرځولې چې دورځي د ستوماني او ستړيا څخه پکي آرام ومومي ﴿وَٱلنَّهَارَ مُبْصِرًا﴾ او (ګرځولې يې ده) ورځ ښوونکې (روښانه چې تاسو پکي شيان وينی او خپلي اړتياوي ترسره کوئ کسبونه او کارونه سرته رسوئ ﴿إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّقَوْمٍ يَسْمَعُونَ﴾ بېشکه پدې کې خامخا ډېر دلائل (په وحدانيت دالله) دي د پاره د هغه قوم چې د اقرآن اوري (په اوريدلو د پند او عبرت سره ،بيا الله د يهودانو ، نصرانيانو او مشرکانو ګمراهي ته داسي ګوت نيونه کوي ﴿قَالُوا۟ ٱتَّخَذَ ٱللَّهُ وَلَدًا﴾ (وايي کفار الله نيولی دی زوی) ([1]) يعني يهودان او نصرانيان الله ته د زوی لرلو نسبت کوي دو ی به ويل عزير دالله زوی دی او عيسى دالله زوی دی لکه چې به د مکې کفارو ويل پرښتې (ملائکې) دالله لوڼي دي ﴿سُبْحَٰنَهُۥ هُوَ ٱلْغَنِىُّ﴾ پاک دی الله (له هغه چې دوی ورته نسبت کوي) هم دی غني (بې پروا دی له ټولو خلګو څکه زوی نيول خو د کوم حاجت او اړتيا لپاره وي او الله هيڅ ته هم اړ نه دی نو ځکه د زوی نسبت نه ورته کول کېږي ﴿لَهُۥ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ﴾ خاص ده لره دي هر هغه څه چې په آسمانونو کې دي او هغه چې په ځمکه کې دي (خلقا وملکا) ﴿إِنْ عِندَكُم مِّن سُلْطَٰنٍۭ بِهَٰذَآ﴾ نشته تاسيته څخه هيڅ برهان حجت سند په دې (چې الله تعالى ولد نيولی دی) ﴿أَتَقُولُونَ عَلَى ٱللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ (آيا وايا ست تاسي په الله هغه خبري چې تاسي پرې) نه پوهېږئ) يعني افتراء کوئ او په دروغو ورته نسب، شريک او زوی پيدا کوئ دغه ددوی په ناپوهي

---

([1]) څومره د بې عقلتوب او حماقت نه ډکه خبره ده دوی عَليٌّ الأعلىٰ ذات ته د هغه څه نسبت کوي چې خپل رهبانيان ورڅخه منزه ګڼي او ګمان کوي چې هغوی پاک دي او نکاح نکوي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

باندي توبيخ دی ﴿ قُلْ إِنَّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُونَ ﴾ وو ايه (اې محمده ! (صلى الله عليه وسلم) دوی ته ) بېشکه هغه کسان چي له خپله ځانه پر الله دروغ تړي خلاص به نشي (برى به و نه مومي نه به په مراد ورسېږي ﴿ مَتَاعٌ فِي الدُّنْيَا ﴾ نفع اخيستل دي په دنياكي (د دوی دژوند موده) ﴿ ثُمَّ إِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ ثُمَّ نُذِيقُهُمُ الْعَذَابَ الشَّدِيدَ بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ ﴾ بيا موږ ته راتلل دي ددوی (پس له مرګه دجزا او حساب لپاره ) بيا به ور وڅکو موږ دوی ته عذاب سخت په سبب ددې چي وو دوی به کافران کېدل (او په الله به يې دروغ تړل) .

**بلاغت:**

۱- ﴿ وَمِنْهُم مَّن يُؤْمِنُ بِهِ .... وَمِنْهُم مَّن لَّا يُؤْمِنُ بِهِ ﴾ دلته ددوی ترمينځ دطباق صنعت راغلی دی.

۲- پدې کلام کي چي الله فرمايي : ﴿ تُسْمِعُ الصُّمَّ ... تَهْدِي الْعُمْيَ ﴾ صم او عمی دواړه په مجازي معنا د کافرانو لپاره راغلي چي دوی يې له کانه او ړانده سره پدې تشبيه کړل چي له حق څخه کانه ،ړانده دي

۳- پدې کلماتوکي لکه ﴿ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا ﴾ او همداسي ﴿ بَيَاتًا أَوْ نَهَارًا ﴾ همداراز ﴿ يُحْيِي وَيُمِيتُ ﴾ او ﴿ يَسْتَقْدِمُونَ ... يَسْتَأْخِرُونَ ﴾ پدې ټولوکي دطباق صنعت راغلی دی.

۴- ﴿ وَشِفَاءٌ لِّمَا فِي الصُّدُورِ ﴾ دلته مرسل مجاز راوړل شوی چي محل راوړل شوی او حال ځني اراده کېږي يعني دزړونو لپاره دارو دی ځکه چي صدور دزړونو محلونه دي.

۵- کله چي الله فرمايي: ﴿ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ﴾ په تلخيص البيان کي راوړي چي دا يوه عجيبه غوندي استعاره ده ورځ يې ليدونکي وبلله ځکه چي خلګ پکيويني او دغه ګواکي دشي صفت په هغه څه دی چي هغه دده لپاره سبب وي او دايې دمبالغې په توګه وبلله لکه چي ويل کېږي (ليل أعمى) کله چي ډېره تياره وي او خلګ پکي هيڅ شی نه ويني (1)

۶- ﴿ حَرَامًا وَحَلَالًا ﴾ دلته دطباق صنعت راغلی دی.

۷- پدې کلام کي چي: ﴿ أَتَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴾ توبيخ او تکول دي.

**فائده:**

الله پاک خپل پيغمبر ته په دريو ځايونو کي دلوړي او قسم (حلف) امر په قرآنکريم کي کړی دی پدې سورت کي چي: ﴿ قُلْ إِي وَرَبِّي إِنَّهُ لَحَقٌّ ﴾ دسبا په سورت کي چي: ﴿ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَأْتِينَا السَّاعَةُ قُلْ بَلَىٰ وَرَبِّي لَتَأْتِيَنَّكُمْ ﴾ [سبا ۳] او دتغابن په سورت کي چي: ﴿ زَعَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَن لَّن يُبْعَثُوا قُلْ بَلَىٰ وَرَبِّي لَتُبْعَثُنَّ ﴾ [التغابن ۷] دغه ابن کثير ذکر کړي دي.

(1) تلخيص البيان للشريف الرضى: ۱۵۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تنبیه:

د ﴿ أَرَءَيْتَ ﴾ کلمه دبصري رؤیت داستفهام په معناراځي اوهمدارنګه دعلمي رؤیت داستفهام په معنا
بیا وروسته د(أخبرني) په معنا استعمال شوي چي کله وویل شي: (أرأیت ذلک الأمر) یعني ماته خبر راکړه له هغه
امرڅخه اودغه رؤیت به یابصري وي، یاعلمي نومعنایې داچي آیاتاهغه عجیبه حالت په سترګو لیدلی؟اویاهغه
عجیبه حالت دي پېژندلی وریاندي پوهېدلی یې؟ نوماته خبر راکړه څکه نوپرته له یوعجیب اوغریب امرڅخه
پرته نه استعمالېږي لکه داچي: ﴿ أَرَءَيْتَ ٱلَّذِى يُكَذِّبُ بِٱلدِّينِ ﴾ [الماعون:١] یاداچي: ﴿ أَرَءَيْتَ ٱلَّذِى يَنْهَىٰ (٩) عَبْدًا إِذَا صَلَّىٰٓ ﴾ [العلق:١٠-٩] اوداسي نور

* * *

الله تعالی فرمایي:

﴿ ۞ وَٱتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ نُوحٍ إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِۦ يَٰقَوْمِ إِن كَانَ كَبُرَ عَلَيْكُم مَّقَامِى وَتَذْكِيرِى بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ فَعَلَى
ٱللَّهِ تَوَكَّلْتُ فَأَجْمِعُوٓا۟ أَمْرَكُمْ وَشُرَكَآءَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُنْ أَمْرُكُمْ عَلَيْكُمْ غُمَّةً ثُمَّ ٱقْضُوٓا۟ إِلَىَّ وَلَا تُنظِرُونِ (٧١) فَإِن
تَوَلَّيْتُمْ فَمَا سَأَلْتُكُم مِّنْ أَجْرٍ ۖ إِنْ أَجْرِىَ إِلَّا عَلَى ٱللَّهِ ۖ وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ ٱلْمُسْلِمِينَ (٧٢) فَكَذَّبُوهُ فَنَجَّيْنَٰهُ
وَمَن مَّعَهُۥ فِى ٱلْفُلْكِ وَجَعَلْنَٰهُمْ خَلَٰٓئِفَ وَأَغْرَقْنَا ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا ۖ فَٱنظُرْ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلْمُنذَرِينَ (٧٣)
ثُمَّ بَعَثْنَا مِنۢ بَعْدِهِۦ رُسُلًا إِلَىٰ قَوْمِهِمْ فَجَآءُوهُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ فَمَا كَانُوا۟ لِيُؤْمِنُوا۟ بِمَا كَذَّبُوا۟ بِهِۦ مِن قَبْلُ ۚ كَذَٰلِكَ نَطْبَعُ
عَلَىٰ قُلُوبِ ٱلْمُعْتَدِينَ (٧٤) ثُمَّ بَعَثْنَا مِنۢ بَعْدِهِم مُّوسَىٰ وَهَٰرُونَ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَإِي۟هِۦ بِـَٔايَٰتِنَا فَٱسْتَكْبَرُوا۟ وَكَانُوا۟
قَوْمًا مُّجْرِمِينَ (٧٥) فَلَمَّا جَآءَهُمُ ٱلْحَقُّ مِنْ عِندِنَا قَالُوٓا۟ إِنَّ هَٰذَا لَسِحْرٌ مُّبِينٌ (٧٦) قَالَ مُوسَىٰٓ أَتَقُولُونَ لِلْحَقِّ لَمَّا
جَآءَكُمْ ۖ أَسِحْرٌ هَٰذَا وَلَا يُفْلِحُ ٱلسَّٰحِرُونَ (٧٧) قَالُوٓا۟ أَجِئْتَنَا لِتَلْفِتَنَا عَمَّا وَجَدْنَا عَلَيْهِ ءَابَآءَنَا وَتَكُونَ لَكُمَا
ٱلْكِبْرِيَآءُ فِى ٱلْأَرْضِ وَمَا نَحْنُ لَكُمَا بِمُؤْمِنِينَ (٧٨) وَقَالَ فِرْعَوْنُ ٱئْتُونِى بِكُلِّ سَٰحِرٍ عَلِيمٍ (٧٩) فَلَمَّا جَآءَ ٱلسَّحَرَةُ قَالَ
لَهُم مُّوسَىٰٓ أَلْقُوا۟ مَآ أَنتُم مُّلْقُونَ (٨٠) فَلَمَّآ أَلْقَوْا۟ قَالَ مُوسَىٰ مَا جِئْتُم بِهِ ٱلسِّحْرُ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ سَيُبْطِلُهُۥٓ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُصْلِحُ
عَمَلَ ٱلْمُفْسِدِينَ (٨١) وَيُحِقُّ ٱللَّهُ ٱلْحَقَّ بِكَلِمَٰتِهِۦ وَلَوْ كَرِهَ ٱلْمُجْرِمُونَ (٨٢) فَمَآ ءَامَنَ لِمُوسَىٰٓ إِلَّا ذُرِّيَّةٌ مِّن قَوْمِهِۦ
عَلَىٰ خَوْفٍ مِّن فِرْعَوْنَ وَمَلَإِي۟هِمْ أَن يَفْتِنَهُمْ ۚ وَإِنَّ فِرْعَوْنَ لَعَالٍ فِى ٱلْأَرْضِ وَإِنَّهُۥ لَمِنَ ٱلْمُسْرِفِينَ (٨٣) وَقَالَ مُوسَىٰ يَٰقَوْمِ
إِن كُنتُمْ ءَامَنتُم بِٱللَّهِ فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوٓا۟ إِن كُنتُم مُّسْلِمِينَ (٨٤) فَقَالُوا۟ عَلَى ٱللَّهِ تَوَكَّلْنَا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلْقَوْمِ ٱلظَّٰلِمِينَ
(٨٥) وَنَجِّنَا بِرَحْمَتِكَ مِنَ ٱلْقَوْمِ ٱلْكَٰفِرِينَ (٨٦) وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰ وَأَخِيهِ أَن تَبَوَّءَا لِقَوْمِكُمَا بِمِصْرَ بُيُوتًا وَٱجْعَلُوا۟
بُيُوتَكُمْ قِبْلَةً وَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ ۗ وَبَشِّرِ ٱلْمُؤْمِنِينَ (٨٧) وَقَالَ مُوسَىٰ رَبَّنَآ إِنَّكَ ءَاتَيْتَ فِرْعَوْنَ وَمَلَأَهُۥ
زِينَةً وَأَمْوَٰلًا فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا رَبَّنَا لِيُضِلُّوا۟ عَن سَبِيلِكَ ۖ رَبَّنَا ٱطْمِسْ عَلَىٰٓ أَمْوَٰلِهِمْ وَٱشْدُدْ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوا۟ حَتَّىٰ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



بروا العذاب الاليم ﴿۸۸﴾ قَالَ قَدْ أُجِيبَت دَّعْوَتُكُمَا فَاسْتَقِيمَا وَلَا تَتَّبِعَانِّ سَبِيلَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴿۸۹﴾

يونس: ۷۱ - ۸۹

## مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالى په خپل وحدانيت دلائل راوړل او هغه ماجرا چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم او مکي د کفارو ترمينځ پېښه شوه ياده کړه دلته يې د ځينو انبياوو عليهم السلام کيسې ذکر کړې چي د رسول الله ﷺ لپاره تسليت او ډاډينه وي او په هغوى پسي اقتداء وکړي نو به د غه سختي او تکاليف ورته آسانه احسې پدې آيتونو کي الله پاک درې کيسې يادي کړي لومړى د نوح عليه السلام کيسه له خپله قومه سره دوهمه د موسى او هارون عليهما السلام کيسه چي له فرعون سره يې مقابله وه او دريمه د حضرت يونس عليه السلام چي له خپل قوم سره يې خواشيني وه راوړه او په هره يوه کي د چالپاره چي پند اخلي او سوچ لري ستر وعظ او نصيحت دی.

## لغتونه:

(كبر) په عمر او يا مرتبه کي ستر توب او لويوالى ته وايي (۱) (فاجمعوا) تيار کړئ له اجماع او اعداد څخه دی (غمة) نامعلوم پټ لکه چي وايې: (غم علينا الهلال) يعني مياشت پټه او ونه ليدل شوه (نطبع) مور مهرلگوو (تلفتنا) مور اړوې لفت په اصل کي د لوّی په معنى او لکه (لوّی عنقه) يعني غاړې يې وپېچله (الكبرياء) عظمت او لويې پاچهي سلطنت ته وايي (عال) سرکښ متکبر (المسرفين) په گمراهي او طغيان کي له حد څخه متجاوزين (اطمس) مسخ کړه طمس مسخي ته وايي الزجاج وايې چي: طمس ديوشي له خپل حالت څخه بل حالت ته بېولو ته وايي لکه (عين مطموسة) يعني ړنده سترگه.

## تفسير:

﴿وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ نُوحٍ﴾ (ولوله (اې محمده!) پردوی حال د نوح) يعني اې محمده! د مکي مشرکانو ته د نوح عليه السلام چي له خپله قومه سره کوم حال وو ووايه ﴿إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ يَا قَوْمِ إِن كَانَ كَبُرَ عَلَيْكُم مَّقَامِي وَتَذْكِيرِي بِآيَاتِ اللَّهِ﴾ کله چي وويل (نوح) قوم خپل ته چي اې زما قومه که چېري په تاسي سخت وي او سېدل زما (د پروخت په تاسي کي) او پند د رکول زما (تاسي ته) په آيتونو د الله چي تاسو له الله څخه وېروم او تاسو زما د قتل تو طئې جوړوي او زما د شر لو لپاره موقصد کړی دي ﴿فَعَلَى اللَّهِ تَوَكَّلْتُ﴾ نو ما خاص په الله باندي توکل کړی دی (ستاسو پروا نلرم) ﴿فَأَجْمِعُوا أَمْرَكُمْ وَشُرَكَاءَكُمْ﴾ نو کلک کړئ تاسي کار خپل؛ او خپل شريکان راوبولئ او هغه دوکي او پلمې په کار واچوئ ﴿ثُمَّ لَا يَكُنْ أَمْرُكُمْ عَلَيْكُمْ غُمَّةً﴾ بيا دي نه وي ستاسي کار په تاسي باندي پټ (بلکه بربنډ او په ډاګه يې وکړئ يعني ټول په ښکاره راپسي ملا وتړئ) ﴿ثُمَّ اقْضُوا إِلَيَّ وَلَا تُنظِرُونِ﴾ بيا او رسوئ ما ته هر ډول زيان او ما ته مهلت مه راکوئ) يعني خپل پلان زما په هکله ترسره کړئ يوه شېبه هم ما ته وخت مه راکوئ. ابو السعود وايې چي: حضرت نوح عليه السلام څکه پداسي غوڅه لهجه ورسره خبري کولې چي د دوې پروايې نلرله او د الله په ساتنه او د خوندي کېدلو په وعده يې ټينګ باور درلود ﴿فَإِن

(۱) الرازي ۱۷ / ۱۳۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar net



﴿ تَوَلَّيْتُمْ فَمَا سَأَلْتُكُم مِّنْ أَجْرٍ ﴾ نو که وګرځېدی تاسي (زماله نصیحت او پنده) پس نه دي غوښتي ما له
تاسو هیڅ مزدوري (چي تاسو یې نه منی بلکه دا ستاسو خپله بد مرغي ده ﴿ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى اللَّهِ ﴾ نه دی اجر
زما (په تبلیغ د رسالت) مګر پر الله دی ) او ما تاسو د کوم دنیوي غرض لپاره دین ته نه یاست رابللي بلکه یوازي د الله
لپاره مي درته نصیحت کړی دی ﴿ وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ﴾ او حکم شویدی ماته پدې چي اوسم زه
له مسلمانانو (موحدینو) ﴿ فَكَذَّبُوهُ فَنَجَّيْنَاهُ وَمَن مَّعَهُ فِي الْفُلْكِ ﴾ نو نسبت د دروغو وکړ دوی نوح ته پس
نجات ورکړ موږ دغه (نوح) او هغه چا ته چي له ده سره په بېړۍ کي وو ﴿ وَجَعَلْنَاهُمْ خَلَائِفَ ﴾ او (ګرزولي موږ
دوی خلیفه ګان (د ځمکي له اوسېدونکو او ډوب شوي کسانو نه ) ﴿ وَأَغْرَقْنَا الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا ﴾ او غرق
کړل موږ (په طوفان ) هغه کسان چي زموږ د آیتونو تکذیب یې کړی وو ﴿ فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنذَرِينَ ﴾ نو
وګوره ( اې محمده ! ) څرنګه شوه آخره خاتمه د وېرول شو و یعني د دروغجن بلونکو د رسولانو ؛ له دې څخه مقصد
د رسول علیه السلام تسلا او د مکې د کفارو لپاره تحذیر دی چي دوی به هم هغسي هلاک شي ﴿ ثُمَّ بَعَثْنَا مِن
بَعْدِهِ رُسُلًا إِلَىٰ قَوْمِهِمْ ﴾ بیا لېږلي وو موږ پس له نوح نور رسولان قوم د هغو ته یعني هود ، صالح ، لوط ابراهیم
او شعیب علیهم السلام ﴿ فَجَاءُوهُم بِالْبَيِّنَاتِ ﴾ نو راوړی وو دغو (رسولانو ) هغوی ته ښکاره دلائل ، معجزې
﴿ فَمَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا بِمَا كَذَّبُوا بِهِ مِن قَبْلُ ﴾ نو نه وو (تیار ) دوی ودې ته ) چي ایمان یې راوړی وي په هغو چي
(انبیاوو ورته راوړي وو ) دوی یې تکذیب کړی وو پخوا (او دوی د پخوانیو له هلاک څخه هم ونه وېرېدل ﴿ كَذَٰلِكَ
نَطْبَعُ عَلَىٰ قُلُوبِ الْمُعْتَدِينَ ﴾ داسي مهر لګوو موږ په زړونو د تېرېدونکو هغه چي په کفر ، تکذیب او عناد کي له
حد څخه اوښتي وي. ﴿ ثُمَّ بَعَثْنَا مِن بَعْدِهِم مُّوسَىٰ وَهَارُونَ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَئِهِ ﴾ بیا ولېږل موږ وروسته له
دغو (رسولانو ) څخه موسی او هارون طرف د فرعون او سردارانو د قوم د ده ته ﴿ بِآيَاتِنَا ﴾ په (دلائلو او ) ښکاره
معجزاتو چي نه (۹) معجزې او په اعراف سورت کي یې یادونه وشوه ﴿ فَاسْتَكْبَرُوا وَكَانُوا قَوْمًا مُّجْرِمِينَ ﴾ نو دوی
تکبر وکړ او دوی مجرمان قوم وو (چي د سترو ګناهونو ارتکاب یې کاوو په ګناه روږدي وو ﴿ فَلَمَّا جَاءَهُمُ الْحَقُّ
مِنْ عِندِنَا قَالُوا إِنَّ هَٰذَا لَسِحْرٌ مُّبِينٌ ﴾ نو کله چي راغی دوی ته حق له نزده زموږ نو وویل دوی بېشکه دا خامخا
کوډي ښکاره دي ) یعني کله چي دوی ته حق څرګند شو هغه چي موسی علیه السلام ورته ځلېدونکی لاس او لکړه
معجزه وښوده نو دوی د زیات طغیان او عناد له کبله وویل دا موسی څرګندي کوډي په موږ کوي ﴿ قَالَ مُوسَىٰ
أَتَقُولُونَ لِلْحَقِّ لَمَّا جَاءَكُمْ أَسِحْرٌ هَٰذَا ﴾ وویل : موسی (دوی ته ) آیا وایې تاسي دغه حق (رښتیني معجزې )
ته کله چي راغله تاسي ته (چي دا معجزه نه بلکه سحر دی ) آیا دا سحر دی؟ دلته استفهام د انکار او توبیخ لپاره دی
او ورسره جوخت دوهم انکاري استفهام هم راغلی دی. ﴿ وَلَا يُفْلِحُ السَّاحِرُونَ ﴾ حال دا چي ساحران بری نه

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ قَالُوٓا۟ أَجِئْتَنَا لِتَلْفِتَنَا عَمَّا وَجَدْنَا عَلَيْهِ ءَابَآءَنَا ﴾ وويل: فرعونيانو (موسی ته) آيا راغلی يې ته موږ ته موږ ته لپاره ددې چې واړوې موږ له هغه کاره چې موندلي دي موږ پرې پلرونه خپل ﴿ وَتَكُونَ لَكُمَا ٱلْكِبْرِيَآءُ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ اوچې شي تاسي دواړوته غلبه په ځمکه د(مصر) کي يعني ستا اوستادورور هارون لپاره د مصرپه ځمکه کي سلطنت اوپاچهي په لاس درشي ﴿ وَمَا نَحْنُ لَكُمَا بِمُؤْمِنِينَ ﴾ اونه یو موږ ستاسي دواړو (په نبوت) باور کونکي ﴿ وَقَالَ فِرْعَوْنُ ٱئْتُونِى بِكُلِّ سَـٰحِرٍ عَلِيمٍ ﴾ او وويل فرعون راولئ تاسي ماته هر ساحر ښه پوه( ماهرچي دکوډو په فن کي رسېدلی وي ) ﴿ فَلَمَّا جَآءَ ٱلسَّحَرَةُ قَالَ لَهُم مُّوسَىٰٓ أَلْقُوا۟ مَآ أَنتُم مُّلْقُونَ ﴾ نوکله چي ساحران راغلل وويل دوی ته موسی چي و غورځوئ هغه چي تاسو(يې) غورځونکي ياست ) په کلام کي محذوف توري شته هغه داچي دوی کوډګران راوستل اوچي کله راغلل... ﴿ فَلَمَّآ أَلْقَوْا۟ قَالَ مُوسَىٰ مَا جِئْتُم بِهِ ٱلسِّحْرُ ﴾ نو کله چي ساحرانو وغورځول (پړي ، لکړي ) نو وويل: موسی هغه څيزچي تاسو راوړی يوازي سحردی (نه بل شی هغه څه دي چي تاسو ورباندي زه تورولم ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ سَيُبْطِلُهُۥٓ ﴾ ببشکه چي الله ژرتباه کوي دغه (سحرچي خلګوته به يې بطلان څرګندشي) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُصْلِحُ عَمَلَ ٱلْمُفْسِدِينَ ﴾ ببشکه چي الله نه جوړوي کار د مفسدانو ) څوک چي په ځمکه کي دفساد کولو هڅې کوی ﴿ وَيُحِقُّ ٱللَّهُ ٱلْحَقَّ بِكَلِمَـٰتِهِۦ وَلَوْ كَرِهَ ٱلْمُجْرِمُونَ ﴾ (اوبيا ژر) ربنتيا کوي حقه خبره (چي زمادين دی ) په کلماتو( اوحکمونو ) خپلو سره او اګر که يې مجرمان بدګڼي ) يعني الله حق په دلائلو اوبراهينو ثابتوي اوقوي کوي يې که څه هم کفار فجار يې نه خوښوي ﴿ فَمَآ ءَامَنَ لِمُوسَىٰٓ إِلَّا ذُرِّيَّةٌ مِّن قَوْمِهِۦ ﴾ (نو ايمان نه وو راوړی (پخوا ) په موسی مګرڅو اولادو(ځلميانو ) دده له قومه دده ) يعني سره د دومره معجزاتو دمشاهدې بياهم چا په موسی عليه السلام ايمان نه وو راوړی اونه يې په دين کي داخل شوي وو مګر دبني اسرائيلو يوڅو زلموټو . مجاهد وايي: چي داهغه کسان وو چي موسی عليه السلام ددوی پلرونو ته رااستول شوی اوهغوی پخوا وفات شوي وو ( چي وروسته يې زامن په ايمان مشرف شول )[1] ﴿ عَلَىٰ خَوْفٍ مِّن فِرْعَوْنَ وَمَلَإِي۟هِمْ أَن يَفْتِنَهُمْ ﴾ سره د وېرې له فرعونه اوله مشرانو ددوی له دې نه چي دوی (تعذيب او) ونه ښويوي يعني له دينه يې وانه ړوي ﴿ وَإِنَّ فِرْعَوْنَ لَعَالٍ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ اوببشکه چي دغه فرعون خامخا جابر اومتکبر وو په ځمکه کي ﴿ وَإِنَّهُۥ لَمِنَ ٱلْمُسْرِفِينَ ﴾ ببشکه چي دی خامخا له متجاوزينو څخه وو (چي دخدائي دعوې يې کړي وه ﴿ وَقَالَ مُوسَىٰ يَـٰقَوْمِ إِن كُنتُمْ ءَامَنتُم بِٱللَّهِ فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوٓا۟ إِن كُنتُم مُّسْلِمِينَ ﴾ اوو ويل: موسی (مؤمنانو اوخپل قوم ته چي ددوی وېره يې له فرعون څخه احساس کړه ) اې قومه زما ! که يې تاسي چي ايمان مو پرالله راوړی دی نوپرهغه (الله ) توکل وکړئ (چي هغه ستاسي ژغورونکی دی له هرشر اوضرر نه ) که يې تاسومسلمانان( غاړه اېښودونکي دالله حکم اوشريعت ته ) ﴿ فَقَالُوا۟ عَلَى ٱللَّهِ تَوَكَّلْنَا ﴾ نو وويل: دوی خاص پرالله

[1] امام جلال داغوره کړي چي کومو کسانو چي په موسی عليه السلام ايمان راوړی هغوی دفرعون له قوم څخه وو خوکوم چي موږ دلته راوړي دغه دطبري غوره اود جمهورو وينا ده څکه موږهم ځان کره اوو مو ليکله.

Bawar.net


موږ توكل كړى دى ﴿ رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلْقَوْمِ الظَّـٰلِمِينَ ﴾ اې ربه زموږ مه گرزوه سبب دفتنې (ضلالت) لپاره دقوم ظالمانو ) يعني دوى پرموږ مه مسلط كوه چي موږ ته تعذيب راكوي اوبياوايې كه دوى په حقه واى نوبه مغلوب شوي نه واى ﴿ وَنَجِّنَا بِرَحْمَتِكَ مِنَ الْقَوْمِ الْكَـٰفِرِينَ ﴾ اونجات راكړه موږ ته په (فضل ،رحمت اوانعام ) خپل له (فرعون اومرستندويانو دده ) كافرانونه ﴿ وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰ وَأَخِيهِ أَن تَبَوَّءَا لِقَوْمِكُمَا بِمِصْرَ بُيُوتًا ﴾ او وحى وكړه موږ موسى ته او ورور دده ته داسي چي جوړ(مقرر ) كړئ تاسي دپاره دخپل قوم په مصركي كوټې (دپاره دعبادت اولمانځه ) ﴿ وَاجْعَلُوا بُيُوتَكُمْ قِبْلَةً ﴾ او وگرزوئ كوټې خپلي مسجدونه (په وخت دويري كي ) ابن عباس رضى الله عنه وايې : چي دوى به وېرېدل نوورته هسي امر وشو چي پخپلو كورونو كي لمونځونه وكړي(۱) ﴿ وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ ﴾ اوسم دروئ (اداكوئ سره له ټولو حقوقو ) تاسي لمونځ ﴿ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ اوزېرى وركړه (اې موسى ) مؤمنانوته (په نصرت اوغلبه باندي ) ﴿ وَقَالَ مُوسَىٰ رَبَّنَآ إِنَّكَ ءَاتَيْتَ فِرْعَوْنَ وَمَلَأَهُۥ زِينَةً وَأَمْوَٰلًا فِى الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا ﴾ اوويل موسى اې ربه زموږ بېشكه تاوركړى دى فرعون اوسردارانودده ته زينت (دژوندانه هر راز ښكلا ، رونق سامانونه ) او(ډېر) مالونه په دغه ژوندون ددنياكي ﴿ رَبَّنَا لِيُضِلُّوا عَن سَبِيلِكَ ﴾ (دپاره ددې چي دوى خلګ ګمراه كړي ستاله لاري نه ) لام دعاقبت لپاره دى يعني اې الله ! دوى ته دې دومره پرېمانه مالونه وركړي چي په پاى كي ددوى كار ستاله دين څخه دخلګو ګمراه كول دي ﴿ رَبَّنَا اطْمِسْ عَلَىٰٓ أَمْوَٰلِهِمْ ﴾ اې ربه زموږ ! محوه راوله په مالونو ددوى ﴿ وَاشْدُدْ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ ﴾ اوسختي راوله په زړونو ددوى ﴿ فَلَا يُؤْمِنُوا حَتَّىٰ يَرَوُا الْعَذَابَ الْأَلِيمَ ﴾ (نو ايمان نه راوړي ترهغوچي ووينى دوى عذاب دردناك ) دغه ددوى لپاره دهلاكت دعاده يعني اې الله ! زړونه يې داسي سخت كړه چي ترهغوايمان رانه وړي څوچي دردناك عذاب ووينى څكه دوى ته ايمان راوړل ګټه نه رسوي (په ملنډو ايمان راوړي ) موسى عليه السلام دوى ته څكه ښېرا وكړه چي هغه پوهېدو دغه ګمراهان سخت دضلالت اوطغيان لېونيان دي اوپه زړونو كي يې دايمان لپاره ځاى نشته دغه د وحى په سبب ده ته معلومه شوي وه چي دوى ايمان نه راوړي. ابن عباس رضى الله عنه وايې : چي موسى عليه السلام دعاكوله اوهارون عليه السلام آمين وايو څكه ددعانسبت دواړو ته شوى دى(۲) ﴿ قَالَ قَدْ أُجِيبَت دَّعْوَتُكُمَا فَاسْتَقِيمَا ﴾ وفرمايل (الله) په تحقيق قبوله كړه شوه دعاستاسي دواړو نوسم ولاړ اوسئ ) يعني الله جل جلاله وفرمايل چي: ماستاسي دواړو ښېرادفرعون اودهغه دقوم دسردارانو په باب قبوله كړه نوتاسي خپل دبلنې اودعوت په كار كي اودحجت دالزام په هكله ثابت قدم اوسئ ﴿ وَلَا تَتَّبِعَآنِّ سَبِيلَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ (اومتابعت مكوئ تاسي دلاري دهغو كسانو چي نه پوهېږي ) يعني تاسو ددعا په ژرقبلېدو اوياد الله دوعدې په ترسره

(۱) اوځينو مفسرينو ويلي چي معنايې داده: وګرزوئ كوټې مخامخ قبلې ته.
(۲) البحر ۵ / ۱۸۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


ګېدلو مه وار خطاکېږئ. طبري وایي چي: ددغي ښېرا وروسته له څلوېښتو کالو بیاالله پاک فرعون غرق کړ[۱]

بلاغت:

۱- ﴿عَلَى ٱللَّهِ تَوَكَّلْنَا﴾ دلته تقدیم ماحقه التأخیر دحصر دافادې لپاره راغلی اومعنایې داچي په الله مي توکل کړی نه په بل چاباندي.

۲-پدې کلماتو کي چي فرمایي: ﴿وَيُحِقُّ ٱلْحَقَّ﴾ داشتقاقي جناس صنعت دی.

۳- ﴿لَا يَكُنْ أَمْرُكُمْ عَلَيْكُمْ غُمَّةً﴾ دلته یې له التباس اوسترڅخه په (غمة) تعبیرفرمایلی چي استعاره یې کړې یعني ستاسي حال دې هسې نامعلوم اونغښتی نه وي لکه (عمیاء غمة) یعني یومخ ایزه پټ.

۴- کله چي فرمایي: ﴿وَٱشْدُدْ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ﴾ دلته له سخت عذاب اودوه چنده عقاب څخه استعاره ده.

تنبیه:

ابن کثیروایي چي: دموسی علیه السلام ښېرا فرعون ته ددیني حمیت اوغیرت له مخي اودالله څخه ددوی دزښتي زیاتي نافرماني په وجه وه لکه چي نوح علیه السلام خپل قوم ته ښېرې کړې او وویلي یې دي ﴿وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى ٱلْأَرْضِ مِنَ ٱلْكَٰفِرِينَ دَيَّارًا ﴿٢٦﴾ إِنَّكَ إِن تَذَرْهُمْ يُضِلُّوا۟ عِبَادَكَ وَلَا يَلِدُوٓا۟ إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا ﴿٢٧﴾﴾ [نوح: ۲۶ ۲۷] اوله دې جهته الله جل جلاله دموسی علیه السلام دعاچي هارون علیه السلام هم ورسره ملګرتیا کوله لکه دنوح علیه السلام ښېرا ومنله اوقبوله یې کړه.

* * *

الله تعالی فرمایي:

﴿۞ وَجَٰوَزْنَا بِبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱلْبَحْرَ فَأَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ وَجُنُودُهُۥ بَغْيًا وَعَدْوًا ۖ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَدْرَكَهُ ٱلْغَرَقُ قَالَ ءَامَنتُ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱلَّذِىٓ ءَامَنَتْ بِهِۦ بَنُوٓا۟ إِسْرَٰٓءِيلَ وَأَنَا۠ مِنَ ٱلْمُسْلِمِينَ ﴿٩٠﴾ ءَآلْـَٰٔنَ وَقَدْ عَصَيْتَ قَبْلُ وَكُنتَ مِنَ ٱلْمُفْسِدِينَ ﴿٩١﴾ فَٱلْيَوْمَ نُنَجِّيكَ بِبَدَنِكَ لِتَكُونَ لِمَنْ خَلْفَكَ ءَايَةً ۚ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ ٱلنَّاسِ عَنْ ءَايَٰتِنَا لَغَٰفِلُونَ ﴿٩٢﴾ وَلَقَدْ بَوَّأْنَا بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ مُبَوَّأَ صِدْقٍ وَرَزَقْنَٰهُم مِّنَ ٱلطَّيِّبَٰتِ فَمَا ٱخْتَلَفُوا۟ حَتَّىٰ جَآءَهُمُ ٱلْعِلْمُ ۚ إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِى بَيْنَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ فِيمَا كَانُوا۟ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿٩٣﴾ فَإِن كُنتَ فِى شَكٍّ مِّمَّآ أَنزَلْنَآ إِلَيْكَ فَسْـَٔلِ ٱلَّذِينَ يَقْرَءُونَ ٱلْكِتَٰبَ مِن قَبْلِكَ ۚ لَقَدْ جَآءَكَ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمُمْتَرِينَ ﴿٩٤﴾ وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ فَتَكُونَ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴿٩٥﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٩٦﴾ وَلَوْ جَآءَتْهُمْ كُلُّ ءَايَةٍ حَتَّىٰ يَرَوُا۟ ٱلْعَذَابَ

---
[۱] الطبري ۱۱/۱۲۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



عَذَابَ ٱلْخِزْيِ فِي ٱلْحَيَوٰةِ
ٱلْأَلِيمَ ﴿٩٧﴾ فَلَوْلَا كَانَتْ قَرْيَةٌ ءَامَنَتْ فَنَفَعَهَآ إِيمَٰنُهَآ إِلَّا قَوْمَ يُونُسَ لَمَّآ ءَامَنُوا۟ كَشَفْنَا عَنْهُمْ
ٱلدُّنْيَا وَمَتَّعْنَٰهُمْ إِلَىٰ حِينٍ ﴿٩٨﴾ وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ لَءَامَنَ مَن فِى ٱلْأَرْضِ كُلُّهُمْ جَمِيعًا ۚ أَفَأَنتَ تُكْرِهُ ٱلنَّاسَ حَتَّىٰ يَكُونُوا۟
مُؤْمِنِينَ ﴿٩٩﴾ وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَن تُؤْمِنَ إِلَّا بِإِذْنِ ٱللَّهِ ۚ وَيَجْعَلُ ٱلرِّجْسَ عَلَى ٱلَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ ﴿١٠٠﴾ قُلِ
ٱنظُرُوا۟ مَاذَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ وَمَا تُغْنِى ٱلْءَايَٰتُ وَٱلنُّذُرُ عَن قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُونَ ﴿١٠١﴾ فَهَلْ يَنتَظِرُونَ إِلَّا مِثْلَ أَيَّامِ
ٱلَّذِينَ خَلَوْا۟ مِن قَبْلِهِمْ ۚ قُلْ فَٱنتَظِرُوٓا۟ إِنِّى مَعَكُم مِّنَ ٱلْمُنتَظِرِينَ ﴿١٠٢﴾ ثُمَّ نُنَجِّى رُسُلَنَا وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ۚ كَذَٰلِكَ
حَقًّا عَلَيْنَا نُنجِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿١٠٣﴾ قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِن كُنتُمْ فِى شَكٍّ مِّن دِينِى فَلَآ أَعْبُدُ ٱلَّذِينَ تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَلَٰكِنْ
أَعْبُدُ ٱللَّهَ ٱلَّذِى يَتَوَفَّىٰكُمْ ۖ وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿١٠٤﴾ وَأَنْ أَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ
ٱلْمُشْرِكِينَ ﴿١٠٥﴾ وَلَا تَدْعُ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَنفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ ۖ فَإِن فَعَلْتَ فَإِنَّكَ إِذًا مِّنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٠٦﴾ وَإِن يَمْسَسْكَ
ٱللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُۥٓ إِلَّا هُوَ ۖ وَإِن يُرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَآدَّ لِفَضْلِهِۦ ۚ يُصِيبُ بِهِۦ مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ ۚ وَهُوَ ٱلْغَفُورُ
ٱلرَّحِيمُ ﴿١٠٧﴾ قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ ۖ فَمَنِ ٱهْتَدَىٰ فَإِنَّمَا يَهْتَدِى لِنَفْسِهِۦ ۖ وَمَن ضَلَّ فَإِنَّمَا
يَضِلُّ عَلَيْهَا ۖ وَمَآ أَنَا۠ عَلَيْكُم بِوَكِيلٍ ﴿١٠٨﴾ وَٱتَّبِعْ مَا يُوحَىٰٓ إِلَيْكَ وَٱصْبِرْ حَتَّىٰ يَحْكُمَ ٱللَّهُ ۚ وَهُوَ خَيْرُ ٱلْحَٰكِمِينَ ﴿١٠٩﴾ ﴾

يونس: ۹۰ ـ ۱۰۹

## مناسبت اوتړاو:

کله چي الله تعالی دموسی علیه السلام دښېرا چي دفرعون طاغي په هکله يې کړي وه يادونه وکړه دلته يې هغه خه راوړل کوم چي فرعون اولښکروته يې دخپل بغاوت اوعدوان له مخي په درياب کي غرقېدل اوډوبېدل ورپېښ شوي وو اودهغه ايمان راوړل په وروستيوشېبو کي خکه ورته گټه نه وه رسولي چي دغه داضطرار ايمان وو وروسته يې پسي ديونس عليه السلام کيسه راوړه اوداچي الله پاک دهغه دقوم توبه ومنله ,سورت يې دتوحيد دحقيقت په بيان باندي پای ته ورساوو او دايې په ډاگه کړه چي انسان يوازي په ايمان راوړلو نجات موندلای شي.

## لغتونه:

(بوأنا) موږ سکونت ورکړی (ممترين) شک کونکي (لولا) دهلا په معنی اودهخوني دپاره د ( تحضيض) په معناده (الرجس) عذاب اوقهر (حنيفًا) له ټولوباطلو اديانوڅخه مائل(ميمسک) وبه رسېږي تاته( کاشف) ليري کونکی ويل کېږي (کاشف السوء) يعني دبدي دفع کونکی ( وکيل) ساتونکی ،چاره ساز.

## تفسير:

﴿ وَجَٰوَزْنَا بِبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱلْبَحْرَ ﴾ اوتېرکړل موږ بني اسرائل له بحره (دقلزم روغ رمټ چي دسويس بحر يې بولي ) ﴿ فَأَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ وَجُنُودُهُۥ بَغْيًا وَعَدْوًا ۖ ﴾ نوچي پسي ورسېدو په دوی پسي فرعون اولښکردده دپاره دظلم اوجفا(چي په دوی باندي يې ناحقه استعلاء کوله )﴿ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَدْرَكَهُ ٱلْغَرَقُ ﴾ ترهغه کله چي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


ورسېده دغه (فرعون) ته دوبېدا (چي هلاکت يې يقين شو) ﴿قَالَ ءَامَنتُ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱلَّذِىٓ ءَامَنَتْ بِهِۦ بَنُوٓاْ إِسْرَٰٓءِيلَ﴾ نووې ويل (پدې شبهه کي) چي ايمان راووړ ماپدې چي بېشکه نشته هيڅ برحق معبود مګر يوازي هغه ذات دی چي ايمان راوړي دی پرهغه بني اسرائيلو ﴿وَأَنَا۠ مِنَ ٱلْمُسْلِمِينَ﴾ اوزه له مسلمانانويم دغه يې دايمان ددعوی تاکيدی يعني زه له هغه چاڅخه يم څوک چي دالله حکم ته غاړه اېښودونکي مخلصان وي. ابن عباس رضی الله عنه وايې چي: حضرت جبريل عليه السلام دفرعون په خوله کي زرني (توري ختي) وروا چولې چي دالله رحمت ونه مومي (۱) ﴿ءَآلْـَٔنَ وَقَدْ عَصَيْتَ قَبْلُ وَكُنتَ مِنَ ٱلْمُفْسِدِينَ﴾ (الله دپرښتې په ژبه دهغه دايمان دردولو په باب وفرمايل) آيااوس (دې ايمان راووړ) حال داچي په تحقيق تانافرماني کوله پخوا (له دې نه درسول زما) اوته وې له مفسدانو څخه) يعني اوس چي له ژونده ناهيلی شوې ايمان راوړې اودعذاب ترنزول له مخه دې عصيان کاوو اوپه ضلالت اواضلال کي دې خلک دالله له لاري راګرزول ﴿فَٱلْيَوْمَ نُنَجِّيكَ بِبَدَنِكَ لِتَكُونَ لِمَنْ خَلْفَكَ ءَايَةً﴾ نن ورځ به خلاصی درکړوپه بدن ستاسره (چي له بحره به دې بې ساه ړي راوباسو) دپاره ددې چي ته شې لپاره دهغه چاچي وروسته له تاراځي (لوی) پند (دليل (عبرت) اوبياڅوک ستاپه شان جبروت اوفرعونيت غوره نکړي. ابن عباس رضی الله عنهما وايې چي: ځيني بني اسرائيل پدې کي شکمن وو چي فرعون به مړ وي اوکه نه؟ نوالله جل جلاله بحرته امر وکړچي مړی يې ورته راوغورځوي ترڅودوی يې له مړيني اوهلاکت څخه بېغمه شي (۲) ﴿وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ ٱلنَّاسِ عَنْ ءَايَٰتِنَا لَغَٰفِلُونَ﴾ اوبېشکه چي ډېرله خلګو له آياتونو (دقدرت دلائلو زموږ څخه خامخاغافلان دي دي يعني نه ځني پند اخلي اونه هم پکي سوچ کوي ﴿وَلَقَدْ بَوَّأْنَا بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ مُبَوَّأَ صِدْقٍ﴾ اوخامخاځای ورکړموږ بني اسرائيلوته (وروسته ددوی ددښمنانو دډوبېدلو اوهلاک) ځای درښتيني (لائق اوخوښ) ﴿وَرَزَقْنَٰهُم مِّنَ ٱلطَّيِّبَٰتِ﴾ اوغوره رزق روزي مو ورکړه دوی ته له پاکېزه څيزونو، لذيذو ګټورو څخه ﴿فَمَا ٱخْتَلَفُواْ حَتَّىٰ جَآءَهُمُ ٱلْعِلْمُ إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِى بَيْنَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ فِيمَا كَانُواْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ﴾ نواختلاف ونکړ دوی (په دين کي) ترهغه پوري چي راغی دوی ته علم (پراحکامو دتورات چي دالله حکم پکې وو) بېشکه رب ستابه فيصله وکړي په مېنځ ددوی کي په ورځ دقيامت په هغه څېزکي چي دوی به پکي اختلاف کاوو) دغه ددوی ذم دی چي ددوی اختلاف ددين په سبب وو خودين متحد کونکي وي مختلف کونکی نه وي، دين راغونډونکی وي، تيت کونکی نه وي. طبري وايې: درسول الله صلی الله عليه وسلم تربعثت له مخي دوی دهغه په نبوت ټول يوه خوله وو اقرار يې کاووخوکله چي رسول الله راغی ځيني دوی ورباندي کافران شول اوځيني کسانو يې ورباندي ايمان راووړ نودغه ددوی اختلاف وو (۳) ﴿فَإِن كُنتَ فِى شَكٍّ مِّمَّآ أَنزَلْنَآ إِلَيْكَ﴾ نوکه ته په شک کي يې (بالفرض والتقدير) له هغه (قرآنه) چي موږ تاته نازل کړی وو (نوپوښتنه وکړه) ابن عباس رضی الله عنهما وايې: نه پيغمبرعليه السلام شک کړی وو اونه يې پوښتنه کړي. زمخشري وايې: چي دغه وينافرضاً دی يعني که بالفرض والتمثيل تاته شک پيداشي اويا شيطان وسوسه درواندي کړي نوته دکتابيانو له علماوو څخه وپوښته

---

(۱) الطبري ۱۱/ ۱۲۳ مراد دالله درحمت له موندلو نه له غرقېدلو څخه نجات دی لکه چي هغه غوښتل. دغه ابو السعود وايې.
(۲) المختصر ۲/ ۲۰۲
(۳) الطبري ۱۱/ ۱۲۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اودي دوو ويناګانو چي يوه يې ده: ﴿ وَإِنَّهُمْ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيبٍ ﴾ (هود ۱۱۰) اوبله داچي فرمايي: ﴿ فَإِن كُنتَ فِي شَكٍّ ﴾ دلومړي كلام معنا د شک اثبات سره له تاكيد اوتحقيق دى خوپه دوهم كي بيا د فرض اوتقدير په توګه (۱) اوښيونبياويلي: چي خطاب پيغمبرعليه السلام ته او مراد ښني نور (امت) دى ﴿ فَسْـَٔلِ ٱلَّذِينَ يَقْرَءُونَ ٱلْكِتَٰبَ مِن قَبْلِكَ ﴾ (نوپوښتنه وكړه له هغوكسانو چي لولي دوى كتاب) يعني له كتابيانو هغه كسان چي په تورات اوانجيل پوهيږي ښكه داهغوى ته ثابت دي لكه چي تاته موقصه وكړه اومقصد له قرآني قصو ښخه دشک رفع كول دي ﴿ لَقَدْ جَآءَكَ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ ﴾ خامخاراغلى دى تاته حق له (طرفه د) رب ستا) يعني هغه حق بيان اوخبرصادق تاته راغلى چي هيڅ شک اوشبه پكي نشته ﴿ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمُمْتَرِينَ ﴾ نومه كيږه ته (امت ستا) له شک راوړونكيوښخه ﴿ وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ ﴾ اومه كيږه ته (امت ستا) له هغوكسانو چي دالله دآيتونو تكذيب كوي ﴿ فَتَكُونَ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴾ نوشې به ته (امت ستا) له زيانكارانوښخه ددنيا اوآخرت. بيضاوي وايي: چي دغه دتهيج اوهڅوني په توګه دثابت قدمي او دمشركانو داميدونو دقطع كولو لپاره دى(۲) قرطبي وايي: چي خطاب پردې دواړو آيتونو كي عليه السلام ته اومراد ښني نوركسان دي(۳) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ وَلَوْ جَآءَتْهُمْ كُلُّ ءَايَةٍ ﴾ بېشكه هغه كسان چي حقه ثابت شوي پردوى كلمه (دعذاب) درب ستا(په ازلي اراده دالله) نوايمان نه راوړي دوى اګركه راشي دوى ته دلائل (روښانه) دوحدانيت ﴿ حَتَّىٰ يَرَوُا۟ ٱلْعَذَابَ ٱلْأَلِيمَ ﴾ ترهغه پوري چي ويني دوى عذاب دردناک (لكه چي فرعون ايمان راوړ خوهغه وخت به بياګټه ورته نه رسوي ﴿ فَلَوْلَا كَانَتْ قَرْيَةٌ ءَامَنَتْ فَنَفَعَهَآ إِيمَٰنُهَآ إِلَّا قَوْمَ يُونُسَ ﴾ نوولي نه وه اهل ديوې (نافرمانه) قريې (چي موږ هلاكه كړي) چي ايمان يې راوړى وي پس نفع ورته رسولي واى ايمان (داهل) ددې (قريې) مګرقوم ديونس ﴿ لَمَّآ ءَامَنُوا۟ كَشَفْنَا عَنْهُمْ عَذَابَ ٱلْخِزْىِ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾ كله چي ايمان راووړ هغو نوپورته كړ موږ له دوى نه عذاب دذلت پدې ژوندون ددنياكي ﴿ وَمَتَّعْنَٰهُمْ إِلَىٰ حِينٍ ﴾ او وروسته موكړل تروخت دمرګ پوري قتاده وايي چي: روايت كيږي حضرت يونس عليه السلام دوى له عذابه وويرول اوهغه يې له مينځه ووت كله چي دوى خپل پيغمبر ونه موند اودا ورته څرګند شوه چي عذاب نږدې ورته رارسېدلى نوالله پاک ددوى په زړونو كي توبه ور واچوله. اوكله چي الله پاک ته ددوى دزړونو اخلاص او رښتنولي معلومه شوه چي دوى دزړه له كومي په تيروګناهونو پښېمانه اوتوبه ګار دي نوبيې عذاب ښيني ليري كړ(۴) ﴿ وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ لَءَامَنَ مَن فِى ٱلْأَرْضِ كُلُّهُمْ جَمِيعًا ﴾ اوكه اراده فرمايلي وي رب ستا

---

(۱) الكشاف ۲/ ۳۷۰
(۲) البيضاوي: ۲۴۵
(۳) القرطبي ۸/ ۳۸۳
(۴) الطبري ۱۱/ ۱۷۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


دايمان دټولو خلکو ) خامخا ايمان به راوړی وو هغو کسانو چي په ځمکه کي دي ټولو په اجماع سره ) خو دغسي الله پاک ندي غوښتي چي دغه له حکمت سره مخالف دی بلکه الله جل جلاله له خپلو بندګانو څخه داختياري ايمان غوښتنه کوي دزور او اضطراري ايمان پکار نه دی ﴿ أَفَأَنتَ تُكْرِهُ ٱلنَّاسَ حَتَّىٰ يَكُونُوا۟ مُؤْمِنِينَ ﴾ (آيا نو ته مجبوروې خلګ چي مؤمنان شي ) يعني اې محمده !( صلی الله عليه وسلم) آيا ته خلک په زور ايمان ته راولې او په اضطراري توګه بې پخپل دين کي ګډوې داستا کار نه دی په آيت شريف کي د رسول الله صلی الله عليه وسلم لپاره تسلا او ډاډينه ده او دده دزړه دلاسا ينه چي هغه حرص درلود څو خلګ ايمان راوړي . ابن عباس رضی الله عنهما وايي نبي عليه السلام پدې کي حريص وو چي ټول خلک ايمان راوړي نو الله خبر ورکړ چي يوازي هغه کسان به ايمان راوړي څوک چي ړومبی بې نيکمرغي په برخه شوي وي او هغه کسان بيا ګمراهان دي چاته چي په اول کي لابدمرغي ليکل شوي وه(۱) ﴿ وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَن تُؤْمِنَ إِلَّا بِإِذْنِ ٱللَّهِ ﴾ اوندی (ممکن) لپاره دهيڅ نفس داچي ايمان راوړي مګر (ممکن) دی په اراده دالله ( او توفيق بې) ﴿ وَيَجْعَلُ ٱلرِّجْسَ عَلَى ٱلَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ ﴾ (او اچوي پليتي په هغو کسانو چي عقل نه چلوي ) يعني عذاب غورځوي په هغه چا چي دالله په آيتونو کي سوچ او فکر نه کوي خپل عقلونه په ګټورو لارو چاروکي نه ګماري ﴿ قُلِ ٱنظُرُوا۟ مَاذَا فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ ووايه (اې محمده ! دې مشرکانو ته ) چي وګوري ( څه عجيبه دالله دوحدانيت او بشپړ قدرت) دلائل دي په آسمانونو او ځمکي کي ؟ ﴿ وَمَا تُغْنِى ٱلْـَٔايَـٰتُ وَٱلنُّذُرُ عَن قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُونَ ﴾ او نه دفع کوي (عذاب) دلائل (دوحدانيت ) او وېرونکي له هغه قوم څخه چي ايمان راوړونکي نه دي او دالله پخوا لابدمرغي ورته ليکلي ده) ﴿ فَهَلْ يَنتَظِرُونَ إِلَّا مِثْلَ أَيَّامِ ٱلَّذِينَ خَلَوْا۟ مِن قَبْلِهِمْ ﴾ نو آيا انتظار کوي دا (مشرکان دمکې) بلکه انتظار نه کوي هيڅ شې ته ) مګر (انتظار کوي ) په شان دهغو بدو ورځو د هغو کسانو چي پخوا تېر شوي ( او دالله ورباندي عذاب او نکال نازل کړی وو ﴿ قُلْ فَٱنتَظِرُوٓا۟ إِنِّى مَعَكُم مِّنَ ٱلْمُنتَظِرِينَ ﴾ ووايه ( اې محمده ! دوی ته) نو انتظار کوئ بېشکه زه هم له تاسي سره له انتظار کونکو څخه يم) يعني تاسو دخپلي سرغړوني او تکذيب دانجام او بدي خاتمې انتظار کوئ زه هم ستاسو دهلاکت او بربادي لپاره سترګي په لاره يم ﴿ ثُمَّ نُنَجِّى رُسُلَنَا وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ۚ كَذَٰلِكَ حَقًّا عَلَيْنَا نُنجِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ بيا نجات ورکړ موږ رسولانو زموږ ته او هغو کسانو ته چي ايمان بې راوړی وو همداسي (لکه دغه نجات دهغو ) ثابته ده پر موږ چي خلاصوو نور مؤمنان (هم) ربيع ابن انس وايي: چي يو ځل الله هغوی له عذابه ووېرول او بيا يې دغه خبر ورکړ که دغه عذاب راشي نو الله خپل پيغمبران او دهغوی سره مؤمنان ژغوري(۲) ﴿ قُلْ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِن كُنتُمْ فِى شَكٍّ مِّن دِينِى ﴾ ووايه (اې محمده !) که يې تاسي په شک کي له دينه زما ( اې مشرکانو چي دا به حق او رښتيا وي که نه؟) ﴿ فَلَآ أَعْبُدُ ٱلَّذِينَ تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ نو عبادت نه کوم زه (دهغو بتانو چي نه ګټه لري او نه ضرر دفع کوي )دهغوی چي تاسو يې پرته له الله عبادت کوئ ﴿ وَلَـٰكِنْ أَعْبُدُ ٱللَّهَ ٱلَّذِى يَتَوَفَّىٰكُمْ ﴾ او ليکن زه عبادت دهغه الله کوم چي تاسي وفات کوي (ستاسي مرګ او ژوند

(۱) القرطبي ۸ / ۳۸۵
(۲) الطبري ۱۱ / ۱۷۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دهغه په قدرت کي دی ، طبري وايي چي : دغه په کلام کي يو لطيف لحن او تعريض دی گواکي چي داسي وايي : تاسو ته نه ښايي چي زما په دين کي شکمن شئ تاسو ته دا بايده دي چي دبتانو په عبادت کولو کي شک ولرئ هغه بتان چي نه خو فائده او گټه رسوي او نه ضرر دفع کولای شي او هغه زما پروردگار خو هغه ذات دی چي دخلگو ارواحان کاږي ، گټه رسوي او زيان دفع کوي (١)﴿ وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ او ماته داسي حکم شوی چي له مؤمنانو (موحدانو) څخه يم (له الله سره به شريک نه نيسم) ﴿ وَأَنْ أَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا ﴾ او (داسي حکم راباندي شوی) چي ودروه مخ (ذات) خپل دين ته (هغه چي ملت ابراهيمي) او مائل دی له باطلو اديانو حق ته ﴿ وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴾ او مه کېږه له سره له مشرکانو څخه (هغوی چي دالله سره په عبادت کي شريک نيسي) ﴿ وَلَا تَدْعُ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَنفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ ﴾ او مه بوله (په عبادت سره) پرته له الله هغه چي گټه نه رسوي تاته او نه ضرر رسولای شي تاته (لکه باطل خدايان او بتان) ﴿ فَإِن فَعَلْتَ فَإِنَّكَ إِذًا مِّنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ (نو که (بالفرض) دي وکړ عبادت دغير الله نو بېشکه ته هم په دغه وخت کي له ظالمانو څخه يې) له هغو کسانو چي خانونه يې دالله عذاب ته چمتو کړي او پخپلو ځانونو يې ظلم کړی دی دلته خطاب رسول الله ته او مراد ورڅخه نور کسان دي لکه چي پخوا تېر شو ﴿ وَإِن يَمْسَسْكَ ٱللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُۥٓ إِلَّا هُوَ ﴾ او که ورسوي الله تاته کوم ضرر نو نشته ليري کونکی (دفع کونکی) دهغه (هيڅوک) مگر هم دی دی (يوازي) ﴿ وَإِن يُرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَآدَّ لِفَضْلِهِۦ ﴾ او که اراده وکړي تاته دخير (لکه نعمت او بدايي) نو نشته هيڅ منع کونکی دفضل دده ﴿ يُصِيبُ بِهِۦ مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ ﴾ رسوي (الله) داخير هر هغه چاته چي اراده وفرمايي له بندگانو خپلو نه ﴿ وَهُوَ ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ او هم دی ښه مغفرت کونکی (دگناهونو) د پرر حم والا دی په سمو بندگانو ﴿ قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ ﴾ (ووايه اي محمده !) اي خلگو ! په تحقيق تاسي ته حق راغلی دی له جانبه درب ستاسو) يعني تاسو ته قرآن کريم چي په محاسن الاحکام مشتمل دی راغلی ﴿ فَمَنِ ٱهْتَدَىٰ فَإِنَّمَا يَهْتَدِى لِنَفْسِهِۦ ﴾ نو هر چا چي سمه لاره وموندله نو بېشکه همدا خبره ده چي لاره مومي دپاره (دنفع) دځان خپل (ځانگړي) ﴿ وَمَن ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ﴾ (او هر څوک چي گمراه شو نو بېشکه همدا خبره ده چي گمراه کېږي پر ځان خپل) يعني هر څوک چي په کفر گمراه کېږي نو ددغه کفر وبال همده ته راجع دی ﴿ وَمَآ أَنَا۠ عَلَيْكُم بِوَكِيلٍ ﴾ او نه يم زه پر تاسي باندي وکيل (ساتونکی داعمالو ستاسي بلکه زه بشير او نذير يم) ﴿ وَٱتَّبِعْ مَا يُوحَىٰٓ إِلَيْكَ وَٱصْبِرْ حَتَّىٰ يَحْكُمَ ٱللَّهُ ﴾ (او متابعت وکړه اي محمده !) دهغه څيز چي وحی کولی شي تاته او صبر کوه ترهغو پوري چي حکم وفرمايي الله) يعني اي پيغمبره ته دژوند په ټولو امورو کي دوحی متابعت کوه او په هغه څه چي ددعوت او بلني په لارکي درته کوم تکاليف او زيانونه رسېږي صبر او زغم کوه ترڅو چي ستا او ددوی

---

(١) الطبري نفس المرجع

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ترمينځ الله حکم وفرمايي ﴿ وَهُوَ خَيْرُ الْحَاكِمِينَ ﴾ او هم دغه (الله) بهتراوغوره دټولو حکم کونکودی ، په آيت شريف کي درسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره دادينه اودمشرکانو لپاره وعيد پروت دی.

بلاغت:

۱-﴿ آلْآنَ وَقَدْ عَصَيْتَ قَبْلُ ﴾ پدې آيت شريف کي استفهام دتوبيخ اوانکارلپاره دی.

۲- ددې کلماتو ترمينځ چي فرمايي: ﴿ بَوَّأْنَا مُبَوَّأَ ﴾ اشتقاقي جناس دی.

۳-﴿ كَلِمَتُ رَبِّكَ ﴾ دغه کلمه له حکم اوفيصلې څخه کنايه ده کومه چي په ازل کي ترسره شوي اوددوی بدمرغي يې ليکلې وي.

۴-پدې کلام کي چي: ﴿ ثُمَّ نُنَجِّي رُسُلَنَا ﴾ دمضارع صيغه يې له ماضي څخه دحکايت په ډول راوړې ترڅو ددغه حالت هول اوهيبت وښيې او استحضار يې وکړي.

۵-پدې کلام کي چي راوړي: ﴿ مَا لَا يَنفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ ﴾ ددې کلماتو ترمينځ دطباق صنعت نغښتی دی ،

۶-﴿ وَإِن يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ .....وَإِن يُرِدْكَ بِخَيْرٍ ﴾ ددواړو جملو ترمينځ لطيفه مقابله اودغه له بديعي محسناتو څخه ګڼل کيږي.

۷-ددې کلماتو مبارکاتو ترمينځ چي فرمايي: ﴿ فَمَنِ اهْتَدَىٰ ...وَمَن ضَلَّ ﴾ دطباق صنعت شته.

۸-﴿ يَحْكُمَ اللَّهُ...الْحَاكِمِينَ ﴾پدې کلماتو کي اشتقاقي جناس راغلی دی.

فائده:

امام فخر رازي وايي چي فرعون درې ځلي ايمان راوړی لومړی پدې کلمه چي: ﴿ آمَنتُ ﴾ دوهم دا چي: ﴿ لَا إِلَٰهَ إِلَّا الَّذِي آمَنَتْ بِهِ بَنُو إِسْرَائِيلَ ﴾ [يونس۹۰] اوپه دريم ځل دا چي: ﴿ وَأَنَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ ﴾ نوولې دده ايمان ونه منل شو ؟ ځواب دا چي ده دعذاب دنزول په وخت کښې ايمان راووړ اوپدې وخت کي ايمان نشي منل کېدای ځکه دغه دمجبوري حالت اوپدې کي ايمان اوتوبه نه قبليږي الله جل جلاله فرمايي: ﴿ فَلَمْ يَكُ يَنفَعُهُمْ إِيمَانُهُمْ لَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا ﴾ [غافر:۸۵]

تنبيه: مفسرين کرام وايي: کله چي الله دفرعون جوسه (تن) له غرقېدلو وروسته وژغوره ددې لپاره وو چي تېر يې هغه په خدايي اوالوهيت منلی اوو اوداسي يې انګېرل چي هغه به هډو نه مرکيږي نو الله ﷻ وغوښتل چي فرعون پداسي سپکتيا او خواري دوی ته وروويني ترڅو يې له مړيني څخه مطمئن شي هغه چي پرون په جلال او عظمت دکبريا اوغرور په نيلي سپور وو خواوس هسي نيمه خواسپکه سپانده شو نوبه دخلګو لپاره پند اودسرکښانو طاغوتيانو لپاره به زجر اودعبرت سبق وي.

ديونس سورت تفسير دالله جل جلاله په مرسته اوښه توفيق بشپړ شو والحمد لله رب العالمين

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## د (هود) سورت مکي او يو سل او درويش آيتونه لري.

دهود سورت داسلامي عقيدې بنسټ ته پاملرنه کوي توحيد، رسالت، بعث اوجزا څېړي اودانبياوو عليهم السلام کيسې په تفصيل سره رااخلي ترڅو دنبي محمد عليه السلام لپاره کله چې له مشرکانو څخه يې ډېر ربړونه اوتکاليف ليدلی ډاډينه اوتسليت شي اوپه ځانګړي توګه دهغومشکلاتو اواذيتونو چې خورا درانه اودرسول الله دتره ابوطالب اومېرمني (خديجې رضی الله عنها) له مړيني وروسته ورته پېښ شوي وو اودزغم ورنه وو نوددې سورت آيتونه ورته نازلېدل اوهغه دنبيانو کيسې او ازموينښتونه يې يوپه بل پسي ورته اوروِل ترڅو په هغوی پسي په صبر او استقامت اقتداء وکړي.

دسورت په پيل کي دهغه قرآن کريم تمجيد راغلی کوم چې آيات يې محکم دي خلل اوتناقض ورته لاره نلري ځکه هغه دحکيم عليم ذات له لوري رانازلېږي هغه چې دبندګانو دمصلحتونو هيڅ هم څيني الونيا اوپټ نه دي، بيا وروسته داسلامي دعوت عناصرو ته دعقلي دلائلو له لاري کتنه کېږي اوددوو ډلو ترمينځ دپرتله کېدلو سترفرق په ګوته کوي چې دمؤمن اوکافرترمينځ دومره زيات توپيرشته لکه چې دلمر اوتاريکيو ترمينځ وي فرمايې: ﴿ مَثَلُ ٱلْفَرِيقَيْنِ كَٱلْأَعْمَىٰ وَٱلْأَصَمِّ وَٱلْبَصِيرِ وَٱلسَّمِيعِ ۚ هَلْ يَسْتَوِيَانِ مَثَلًا ۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴾ بيا سورت درسولانواو استاذو کيسې راوړي په پيل کي دحضرت نوح عليه السلام کيسه کوي ځکه هغه دبشريت دوهم پلار دی ځکه له طوفان څخه له نوح اودهغه له ملګرو پرته بل څوک ژوندی ندی پاتي شوی اوهغه ترټولو انبياوو داوږده ژوند خاوند اوترټولو يې ډېر ازموينښتونه ليدلي اووړاندي صبر يې کړی دی. وروسته دحضرت هودعليه السلام کيسه رااخلي هغه څوک چې دغه سورت يې په نامه نومول شوی دی ترڅو دده دتلپاتي زيارونو چې الله ته دبلني په لاره کي يې ګاللي تلپاتي يادګاروي هغه الله جل جلاله دعاديانو قوم ته استولی. وڅوک چې ډېر سرکښه اومتجبرين وو پخپلو ځمکو، په بدنونو اوزور باندي نازېدل اوويل يې: ﴿ مَنْ أَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً ﴾ ؟ څوک ترموږ زيات زورور دی؟ نوالله په تندا وګرندي باد هغوی هلاک کړل آيتونه په ډېر تفصيل دهغوی کيسه راوړي ترڅو چې دکبرجنو زورورو سرکښانو لپاره عبرت شي فرمايي: ﴿ وَتِلْكَ عَادٌ ۖ جَحَدُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَعَصَوْا رُسُلَهُ وَاتَّبَعُوا أَمْرَ كُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ ﴾ آن تردې چې: ﴿ أَلَا إِنَّ عَادًا كَفَرُوا رَبَّهُمْ ۗ أَلَا بُعْدًا لِّعَادٍ قَوْمِ هُودٍ ﴾ وروسته بيا دحضرت صالح عليه السلام کيسه لولي وروسته دحضرت شعيب عليه السلام اوبيادموسی اوهارون عليهما السلام سمدلاسه وروسته دالله له خوا دهلاکت اوله مينځه وړلو هغه څه راوړي چې په ظالمانو يې لوروَلي دي فرمايې: ﴿ ذَٰلِكَ مِنْ أَنبَاءِ الْقُرَىٰ نَقُصُّهُ عَلَيْكَ ۖ مِنْهَا قَائِمٌ وَحَصِيدٌ ﴾ ترديپوري چې: ﴿ وَكَذَٰلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَا أَخَذَ الْقُرَىٰ وَهِيَ ظَالِمَةٌ ۚ إِنَّ أَخْذَهُ أَلِيمٌ شَدِيدٌ ﴾ په پای کي سورت دانبياوو اورسولانو دکيسو له راوړلو دحکمت بيان کوي ددې لپاره چې دپخوانيو زمانو ددروغجنو په سرنوشت آوبرخه ليک نور خلګ پند واخلي اودرسول الله صلی الله عليه وسلم لپاره دغه سختي اوکړاوونه يادول يوډول دلاساينه شي ﴿ وَكُلًّا نَّقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنبَاءِ الرُّسُلِ مَا نُثَبِّتُ بِهِ فُؤَادَكَ ۚ وَجَاءَكَ فِي هَٰذِهِ الْحَقُّ وَمَوْعِظَةٌ وَذِكْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴾ آن ترديچي هسي يې وفرمايل: ﴿ فَاعْبُدْهُ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ ۚ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴾ همداسي سورت په توحيد باندي پای ته رسېږي لکه څرنګه چې پيل شوی وو نوبه يې پيل اوپای په ښه جوړښت اوتنسيق وپېيل شي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

الٓرۚ كِتَٰبٌ أُحۡكِمَتۡ ءَايَٰتُهُۥ ثُمَّ فُصِّلَتۡ مِن لَّدُنۡ حَكِيمٍ خَبِيرٍ ﴿١﴾ أَلَّا تَعۡبُدُوٓاْ إِلَّا ٱللَّهَۚ إِنَّنِي لَكُم مِّنۡهُ نَذِيرٞ وَبَشِيرٞ
﴿٢﴾ وَأَنِ ٱسۡتَغۡفِرُواْ رَبَّكُمۡ ثُمَّ تُوبُوٓاْ إِلَيۡهِ يُمَتِّعۡكُم مَّتَٰعًا حَسَنًا إِلَىٰٓ أَجَلٖ مُّسَمّٗى وَيُؤۡتِ كُلَّ ذِي فَضۡلٖ فَضۡلَهُۥۖ وَإِن تَوَلَّوۡاْ فَإِنِّيٓ
أَخَافُ عَلَيۡكُمۡ عَذَابَ يَوۡمٖ كَبِيرٍ ﴿٣﴾ إِلَى ٱللَّهِ مَرۡجِعُكُمۡۖ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ قَدِيرٌ ﴿٤﴾ أَلَآ إِنَّهُمۡ يَثۡنُونَ صُدُورَهُمۡ لِيَسۡتَخۡفُواْ مِنۡهُۚ
أَلَا حِينَ يَسۡتَغۡشُونَ ثِيَابَهُمۡ يَعۡلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعۡلِنُونَۚ إِنَّهُۥ عَلِيمُۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴿٥﴾ ۞ وَمَا مِن دَآبَّةٖ فِي ٱلۡأَرۡضِ
إِلَّا عَلَى ٱللَّهِ رِزۡقُهَا وَيَعۡلَمُ مُسۡتَقَرَّهَا وَمُسۡتَوۡدَعَهَاۚ كُلّٞ فِي كِتَٰبٖ مُّبِينٖ ﴿٦﴾ وَهُوَ ٱلَّذِي خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ فِي
سِتَّةِ أَيَّامٖ وَكَانَ عَرۡشُهُۥ عَلَى ٱلۡمَآءِ لِيَبۡلُوَكُمۡ أَيُّكُمۡ أَحۡسَنُ عَمَلٗاۗ وَلَئِن قُلۡتَ إِنَّكُم مَّبۡعُوثُونَ مِنۢ
بَعۡدِ ٱلۡمَوۡتِ لَيَقُولَنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ إِنۡ هَٰذَآ إِلَّا سِحۡرٞ مُّبِينٞ ﴿٧﴾ وَلَئِنۡ أَخَّرۡنَا عَنۡهُمُ ٱلۡعَذَابَ إِلَىٰٓ أُمَّةٖ مَّعۡدُودَةٖ
لَّيَقُولُنَّ مَا يَحۡبِسُهُۥٓۗ أَلَا يَوۡمَ يَأۡتِيهِمۡ لَيۡسَ مَصۡرُوفًا عَنۡهُمۡ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُواْ بِهِۦ يَسۡتَهۡزِءُونَ ﴿٨﴾ وَلَئِنۡ أَذَقۡنَا
ٱلۡإِنسَٰنَ مِنَّا رَحۡمَةٗ ثُمَّ نَزَعۡنَٰهَا مِنۡهُ إِنَّهُۥ لَيَـُٔوسٞ كَفُورٞ ﴿٩﴾ وَلَئِنۡ أَذَقۡنَٰهُ نَعۡمَآءَ بَعۡدَ ضَرَّآءَ مَسَّتۡهُ
لَيَقُولَنَّ ذَهَبَ ٱلسَّيِّـَٔاتُ عَنِّيٓۚ إِنَّهُۥ لَفَرِحٞ فَخُورٌ ﴿١٠﴾ إِلَّا ٱلَّذِينَ صَبَرُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ أُوْلَٰٓئِكَ لَهُم مَّغۡفِرَةٞ وَأَجۡرٞ
كَبِيرٞ ﴿١١﴾ فَلَعَلَّكَ تَارِكُۢ بَعۡضَ مَا يُوحَىٰٓ إِلَيۡكَ وَضَآئِقُۢ بِهِۦ صَدۡرُكَ أَن يَقُولُواْ لَوۡلَآ أُنزِلَ عَلَيۡهِ كَنزٌ أَوۡ جَآءَ
مَعَهُۥ مَلَكٌۚ إِنَّمَآ أَنتَ نَذِيرٞۚ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ وَكِيلٌ ﴿١٢﴾ أَمۡ يَقُولُونَ ٱفۡتَرَىٰهُۖ قُلۡ فَأۡتُواْ بِعَشۡرِ سُوَرٖ مِّثۡلِهِۦ
مُفۡتَرَيَٰتٖ وَٱدۡعُواْ مَنِ ٱسۡتَطَعۡتُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ ﴿١٣﴾ فَإِلَّمۡ يَسۡتَجِيبُواْ لَكُمۡ فَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّمَآ أُنزِلَ بِعِلۡمِ ٱللَّهِ
وَأَن لَّآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَۖ فَهَلۡ أَنتُم مُّسۡلِمُونَ ﴿١٤﴾ مَن كَانَ يُرِيدُ ٱلۡحَيَوٰةَ ٱلدُّنۡيَا وَزِينَتَهَا نُوَفِّ إِلَيۡهِمۡ أَعۡمَٰلَهُمۡ فِيهَا وَهُمۡ
فِيهَا لَا يُبۡخَسُونَ ﴿١٥﴾ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ لَيۡسَ لَهُمۡ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ إِلَّا ٱلنَّارُۖ وَحَبِطَ مَا صَنَعُواْ فِيهَا وَبَٰطِلٞ مَّا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ
﴿١٦﴾ أَفَمَن كَانَ عَلَىٰ بَيِّنَةٖ مِّن رَّبِّهِۦ وَيَتۡلُوهُ شَاهِدٞ مِّنۡهُ وَمِن قَبۡلِهِۦ كِتَٰبُ مُوسَىٰٓ إِمَامٗا وَرَحۡمَةًۚ أُوْلَٰٓئِكَ يُؤۡمِنُونَ
بِهِۦۚ وَمَن يَكۡفُرۡ بِهِۦ مِنَ ٱلۡأَحۡزَابِ فَٱلنَّارُ مَوۡعِدُهُۥۚ فَلَا تَكُ فِي مِرۡيَةٖ مِّنۡهُۚ إِنَّهُ ٱلۡحَقُّ مِن رَّبِّكَ وَلَٰكِنَّ أَكۡثَرَ ٱلنَّاسِ لَا
يُؤۡمِنُونَ ﴿١٧﴾ وَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّنِ ٱفۡتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًاۚ أُوْلَٰٓئِكَ يُعۡرَضُونَ عَلَىٰ رَبِّهِمۡ وَيَقُولُ ٱلۡأَشۡهَٰدُ هَٰٓؤُلَآءِ
ٱلَّذِينَ كَذَبُواْ عَلَىٰ رَبِّهِمۡۚ أَلَا لَعۡنَةُ ٱللَّهِ عَلَى ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٨﴾ ٱلَّذِينَ يَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ وَيَبۡغُونَهَا عِوَجٗا وَهُم
بِٱلۡأٓخِرَةِ هُمۡ كَٰفِرُونَ ﴿١٩﴾ أُوْلَٰٓئِكَ لَمۡ يَكُونُواْ مُعۡجِزِينَ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَمَا كَانَ لَهُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِنۡ أَوۡلِيَآءَۘ يُضَٰعَفُ
لَهُمُ ٱلۡعَذَابُۚ مَا كَانُواْ يَسۡتَطِيعُونَ ٱلسَّمۡعَ وَمَا كَانُواْ يُبۡصِرُونَ ﴿٢٠﴾ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ خَسِرُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ وَضَلَّ عَنۡهُم مَّا
كَانُواْ يَفۡتَرُونَ ﴿٢١﴾ لَا جَرَمَ أَنَّهُمۡ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ هُمُ ٱلۡأَخۡسَرُونَ ﴿٢٢﴾

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَأَخْبَتُوٓا۟ إِلَىٰ رَبِّهِمْ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ ۖ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿۲۳﴾
مَثَلُ ٱلْفَرِيقَيْنِ كَٱلْأَعْمَىٰ وَٱلْأَصَمِّ وَٱلْبَصِيرِ وَٱلسَّمِيعِ ۚ هَلْ يَسْتَوِيَانِ مَثَلًا ۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿۲۴﴾ ﴾ هود: ۱ - ۲۴

## لغتونه

(احكمت) ټينګ شوي دي ، احكام له ورانېدلو څخه خوندي ساتلو او ټينګولو ته وايي . ويل كېږي (أحكم الأمر) كله چې يې داسې ټينګ او محكم كړي چې خلل او فساد ورته لاره نلري ( مستقرها) هغه ځاى د استقرار او هستوګنې د هغې په دنياكي ( مستودعها) هغه ځاى چې وروسته له مړيني يې هستوګنځى وي ( أمة معدودة) امت دلته ديوې ټاكلي زمانې په معنادى . قرطبي وايي چې : امت يو مشترك لفظ دى او په اتو (۸) معناګانو راځي ټولى ، ملت ، د خير ښېګڼې خاوند ، وخت زمانه ، د انبياوو پيروي (۱) (مرية) شك شبه ( ضل) ورك او متلاشي ته وايي (لاجرم) يوه كلمه او د (حقا) په معناده چې خليل او سيبويه هم دغسې وايي (أخبتوا) عاجزان شول (إخبات) ذل او انكسار ته وايي (الأصم) هغه كوڼ چې نه اوري.

### د نزول سبب يې:

قرطبي له ابن عباس رضى الله عنه څخه روايت كوي چې هغه ويلي : (أخنس بن شريق ) د خوږې ژبې او پستو خبرو خاوند وو كله چې به له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره مخامخ شو د هغه له زړه سره سمې خبرى به يې ورته كولې او په زړه كي به يې د دې اپوټه ( برعكس) نور څه وو نو الله د اآيت نازل كړ: ﴿ أَلَآ إِنَّهُمْ يَثْنُونَ صُدُورَهُمْ لِيَسْتَخْفُوا۟ مِنْهُ ﴾ د آيت تر پايه.

### تفسير:

﴿ الٓر ﴾ دغه مقطعات توري او دې ته اشاره ده چې قرآنكريم معجز او له دا دول تورو څخه جوړدى . ابن عباس رضى الله عنه وايي چې : معنا يې دا چې ( أنا الله أرى) زه الله يم هر څه وينم ﴿ كِتَٰبٌ أُحْكِمَتْ ءَايَٰتُهُۥ ثُمَّ فُصِّلَتْ مِن لَّدُنْ حَكِيمٍ خَبِيرٍ ﴾ كتاب دى چې محكم كړى شوي دي آيتونه دده (چې هيڅ تناقض او خلل ورته لاره نلري ) بيا په تفصيل سره بيان شوي (چې حلال ، حرام او د بندګانو د معاش او معاد د امورو په هكله خبري دي ) له نزده دلوى حكمت والا ښه خبردار څخه ( هغه چا يې تفصيل او بيان فرمايلى ځوك چې د امورو په څرنګوالي ښه پوه او خبردار دى خكه نو ښه محكم او ښه څرګند دى ) ﴿ أَلَّا تَعْبُدُوٓا۟ إِلَّا ٱللَّهَ ۚ ﴾ چې عبادت مكوئ د هيچا مګر د الله ﴿ إِنَّنِى لَكُم مِّنْهُ نَذِيرٌ وَبَشِيرٌ ﴾ چې بېشكه زه تاسي ته ( له طرفه د الله ) وېرونكى يم (د عذاب دده كه كافران شوى ) او زيرى دركونكى يم ( په ثواب سره كه موايمان راووړ ) ﴿ وَأَنِ ٱسْتَغْفِرُوا۟ رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوٓا۟ إِلَيْهِ ﴾ او چې مغفرت وغواړي له ربه خپله (د تيرو ګناهونو ) بيا توبه وكړئ الله ته (او په طاعت ، انابت باندي مستقيم اوسئ ) ﴿ يُمَتِّعْكُم

---

(۱) لكه د الله تعالى دا قول چې: (وجد عليه أمة من الناس يسقون) يعني ټولى (وادكر بعد امة ) يعني وړ په ياد شوي وو وروسته له څه مودې او دا چې فرمايي: (انا وجدنا آباءنا على أمة ) يعني مونږ خپل پلرونه په يو دين او ملت مونډلي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



مَّتَٰعًا حَسَنًا إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى ﴾ چي فائده دررسوي تاسي ته په غوره نفع سره (چي پراخ رزق اوهوسايي سوكالي ده) ترهغي نېتې تاكلي پوري (چي ستاسو دژوند وروستی شېبې او اجل دی) ﴿ وَيُؤْتِ كُلَّ ذِى فَضْلٍ فَضْلَهُۥ ﴾ او وربه كړي (الله) هرخاوند دفضل ته (چي نيک عمل كوي) فضل دهغه (جزاد عمل دهغه) ﴿ وَإِن تَوَلَّوْا۟ فَإِنِّىٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ كَبِيرٍ ﴾ او كه وگرزيدی تاسو (ای كفارو) نو بېشكه زه وېرېږم پرتاسي له عذابه دلويي ورځي نه ؛چي دقيامت ورځ ده او په لوی والي بې خكه وستايله چي سخت عذابونه اومشكلات پكښې دي ﴿ إِلَى ٱللَّهِ مَرْجِعُكُمْ ﴾ خاص الله ته بيرته ورتله ستاسي دي (وروسته له مرگ نه) ﴿ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴾ (اوالله په هرڅيزباندي قادردی) يعني ستاسو په مړه كولو او بيرته راژوندي كولو او دهغو كسانو چي دغه به يې دروغ گڼل په عذاب وركولو ښه قادردی په آيت شريف كي سترتهديد نغښتی دی ﴿ أَلَآ إِنَّهُمْ يَثْنُونَ صُدُورَهُمْ لِيَسْتَخْفُوا۟ مِنْهُ ﴾ خبردارشئ بېشكه دوی (كفار) تاووي سيني خپلي لپاره ددې چي پټ كړي له الله نه (عداوت درسول الله اومؤمنانو څخه چي الله دوی رسوانكړي) ابن عباس رضی الله عنهما وايي: چي دغه آيت دأخنس بن شريق په باب رانازل شوی دی هغه چي له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره به كښېناست اوقسمونه به يې خوړل چي له رسول الله سره محبت لري خو كينه به يې په زړه كي پټوله[1] قرطبي وايي: چي الله پاک دلته دهغوی (مشركانو) كا هــراز دعداوت اخبارراوړي هغه چي له رسول الله او مؤمنانو سره يې درلود او داسي يې انگېرل چي گواكي الله ددوی په احوالوندی خبر[2] ﴿ أَلَا حِينَ يَسْتَغْشُونَ ثِيَابَهُمْ ﴾ واورئ خبردارشئ په هغه وخت كي چي واغوندي دوی جامې جامې خپلي (ځانونه پكي پټ كړي) ﴿ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ ﴾ عالم دی (الله) په هغه څيزچي پټوي يې دوی اوهغه څيز چي دوی يې ښكاروي ، لكه چي آيت هسي فرمايې چي: تاسو داسی گومان مه كوئ چي ستاسو پټول له الله څخه هم پټېږي بلكه الله پاک ستاسو په پټو او ښكاره حالاتو خبردار دی ﴿ إِنَّهُۥ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴾ الله ښه خبردار دی په پټو خبرو د سينو (دزړه په رازونو) ﴿ وَمَا مِن دَآبَّةٍ فِى ٱلْأَرْضِ إِلَّا عَلَى ٱللَّهِ رِزْقُهَا ﴾ اونشته هيڅ ثلونكی (خوځېدونكی ذي روح انسان ياحيوان) مگرچي ده پرالله روزي دهغه (تفضلا اواكراما لكه څرنگه چي الله خالق دی همداسي رازق هم دی ﴿ وَيَعْلَمُ مُسْتَقَرَّهَا وَمُسْتَوْدَعَهَا ﴾ (اوعالم دی (الله) په ځای داوسېدلو دهغه او ځای دسپارېدلو دهغه) ابن عباس رضی الله عنه وايي: مستقر هغه دځمكي په سرهستوگنځي اومستودع هغه ځای ته چي هلته مركېږي اوخښېږي وايي[3] ﴿ كُلٌّ فِى كِتَٰبٍ مُّبِينٍ ﴾ ټول دغه (مذكوره شيان) په واضح كتاب كي دي) يعني ټول ارزاق ، فيصلې ، عمرونه په لوح محفوظ كي كښل شوي دي ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ ﴾ (اودغه (الله) هغه ذات دی چي پيداكړي يې دي آسمانونه

---

(۱) البحر ۵ / ۲۰۲
(۲) القرطبي ۹ / ۵
(۳) البحر ۵ / ۲۰۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



او ځمکه (په مقدارد) شپږو ورځو کي) ددنيا له ورځو اوپه دې کي بندګانوته هڅونه ده چي په آرام اوکرارسره کارونه ترسره کړي بېشکه الله پاک خوپه دې قادر دی چي دسترګوپه رپ کي ټول کائنات پيداکړي خوبياېې هم دشپږو ورځوپه اندازه موده کي پيداکړي دي ﴿ وَكَانَ عَرْشُهُۥ عَلَى ٱلْمَآءِ ﴾ حال داچي وو عرش دده په اوبو(مخکي له پيدايښت دځمکي اوآسمانونو) زمخشري وايي معناداچي ترعرش دلاندي کوم مخلوق نه وو اوپدې کي دادليل هم دی چي عرش او اوبه ترآسمانونو اوځمکي له مخه پيداوو(۱) ﴿ لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا ﴾ (لپاره ددې چي وازمويي تاسي چي کوم يوله تاسي نه ډېر ښه دی له جهته دعمل) يعني الله پاک داټول څه ديوستر حکمت له مخي پيداکړي دي ترڅوتاسي وازمويي اوګنهګار له محسن اونېکوکار څخه ښکاره اوهرچاته دخپل عمل سره برابر جزا ورکول شي ﴿ وَلَئِن قُلْتَ إِنَّكُم مَّبْعُوثُونَ مِنۢ بَعْدِ ٱلْمَوْتِ ﴾ اوخامخاکه ووايي ته (اې محمده! خپل قوم ته چي دمکې کفار اومنکران دي) چي بېشکه تاسي بياژوندي کېدونکي ياست وروسته له مرګه ﴿ لَيَقُولَنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴾ نوهرومرو به وايي: خامخا هغه کسان چي کافران شوي دي (منکران له بعث او نشورڅخه) چي نه دی دغه (قرآن) مګرجادو ښکاره ﴿ وَلَئِنْ أَخَّرْنَا عَنْهُمُ ٱلْعَذَابَ إِلَىٰٓ أُمَّةٍ مَّعْدُودَةٍ ﴾ (اوقسم دی چي خامخا که وروسته کړو موږ له دوی څخه (هغه) عذاب (چي موعوددی) ترراتلو د اوقاتو شمېرلي شوو) يعني موده له زمانې څخه ﴿ لَّيَقُولُنَّ مَا يَحْبِسُهُۥٓ ﴾ نوهرومروبه دوی (استهزاءً) وايي: چي څه څېزبندکړی دی داعذاب له نزوله ؟) ﴿ أَلَا يَوْمَ يَأْتِيهِمْ لَيْسَ مَصْرُوفًا عَنْهُمْ ﴾ (نوفرمايي الله) خبردارشئ هغه ورځ چي راشي دا(عذاب) دوی ته نونه به وي دا(عذاب) دفع کړی شوی له دوی څخه ﴿ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُواْ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴾ اوچاپېربه شي له دوی نه هغه عذاب چي دوی به په هغه پوري مسخرې کولې) ﴿ وَلَئِنْ أَذَقْنَا ٱلْإِنسَٰنَ مِنَّا رَحْمَةً ﴾ اوقسم دی خامخاکه وروڅکوموږ وکافرانو ياناشکره انسانانو ته) له خپله نزده رحمت (لکه صحت، امن، رزق او نورزيات نعمتونه) ﴿ ثُمَّ نَزَعْنَٰهَا مِنْهُ إِنَّهُۥ لَيَـُٔوسٌ كَفُورٌ ﴾ بيابيرته واخلو موږ دانعمت له ده نه بېشکه دی خامخا(دالله له کرمه) نااميد او ناشکره دالله له نعمت څخه وي ﴿ وَلَئِنْ أَذَقْنَٰهُ نَعْمَآءَ بَعْدَ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُ ﴾ اوقسم دی خامخاکه وروڅکوو موږ دغه (کافر، ياناشکره انسان ته) نعمت (لکه صحت اوهوسايي) وروسته له (هغه) ضرره چي رسېدلی وو ده ته له بلاګانو لکه: ناروغي، فقراوکړاو ﴿ لَيَقُولَنَّ ذَهَبَ ٱلسَّيِّـَٔاتُ عَنِّيٓ ﴾ وايي به دی خامخاولاړې سختي له ماځني (لدې وروسته به ګرد عمرسختي ونه وينم) ﴿ إِنَّهُۥ لَفَرِحٌ فَخُورٌ ﴾ بېشکه دغه (انسان) خامخا خوشالېدونکی دی (په نعمتونو او په هغو تېروتلی چي په خلګوځان لوړګڼي) په آيت شريف کي په هغوکسانو باندي چي دسختي په وخت کي ناهيلي کېږي اودنعمتونو په وخت کي په خلګو ځان لوړګڼي بدي(ذم) ويلي شوي ده. ﴿ إِلَّا

(۱) الکشاف۲/۳۸۰

Bawar.net



﴿ ٱلَّذِينَ صَبَرُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ (مگرهغه کسان چي صبر کوي ( په سختي ) او( ښه) عملونه کوي ( لپاره دشکر د نعمت) يعني د انسان دغه عادت او دود دی چي په سختي کي ناهيلی اوپه آسانتياکي متکبروي مگرهغه کسان هسي نه وي څوک چي په تکاليفوصبرگالي اودنعمت په وخت کي دخيرکارونه کوي نودوی په دوارو حالاتوکي (دمحنت او نعمت ) له محسنانوڅخه دي ) ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ لَهُم مَّغۡفِرَةٞ وَأَجۡرٞ كَبِيرٞ ﴾ دغه(صابرين اوشاکرين) شته دوی ته مغفرت اوډېر لوی أجريعني دغه په ښوصفاتو ستايل شوي مذکور کسانوته دگناهونو مغفرت اوپه آخرت کي ستر اجر(جنت) شته. په البحر کي وايي: چي ثواب ته يې دلته لوی روايو خکه چي تل ترتله نعمتونه پکې دي له عذاب څخه امن اودالله رضاپکې ده همداسي دالله جل جلاله ديدار ترټولو غوره نعمت دی )(۱) ﴿ فَلَعَلَّكَ تَارِكُۢ بَعۡضَ مَا يُوحَىٰٓ إِلَيۡكَ ﴾ (نوښايي ته به پرېښودونکی يې ( يعني مه پرېږده ) ځيني دهغه قرآنه چي وحی کولی شي تاته) مشرکانورسول الله ته داسي وړانديز کاوو چي خزانه ورته راوړي اويابايد ورسره پرښته دتصديق لپاره وای دوی به په قرآن کريم ملنډي وهلې نوالله پاک رسول الله ته هسي وفرمايل: چي ښايي ته به ځيني وحی هغوی ته پدې نه ابلاغوې چي دوی ورباندي ملنډي وهي ﴿ وَضَآئِقُۢ بِهِۦ صَدۡرُكَ ﴾ او تنگېدونکي ده په (تبليغ د ) هغه سره سينه ستا(چي دوی به يې تکذيب وکړي مقصد له دې څخه درسول الله صلی الله عليه وسلم هڅونه ده چي درسالت دتبليغ په لاره کي ددښمنانو پروا ونکړي ﴿ أَن يَقُولُواْ لَوۡلَآ أُنزِلَ عَلَيۡهِ كَنزٌ أَوۡ جَآءَ مَعَهُۥ مَلَكٌۚ ﴾ ( له دې وېري ) چي دوی به وايي: ولي نه ده نازله شوي په ده باندي خزانه (چي عشرت پرې وکړي ) يا( ولي نه ده ) راغلي له ده سره پرښته (چي شاهدي دنبوت يې ورکړي (لکه چي موږ اقتراح کړي ده الله جل جلاله درسول الله صلی الله عليه وسلم دنده هسي ټاکلي ده چي: ﴿ إِنَّمَآ أَنتَ نَذِيرٞۚ ﴾ بېشکه همداخبره ده چي ته وېرونکی يې ( مجرمينولره دالله له عذاب څخه) ﴿ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ وَكِيلٌ ﴾ اوالله په هرشي باندي وکيل دی ) يعني دبندگانو دشئوناتو(امورو ) ښه ساتونکی اوداعمالو خوندي کونکی دی ﴿ أَمۡ يَقُولُونَ ٱفۡتَرَىٰهُۖ ﴾ بلکه آياوايې دوی چي له خپله ځانه جوړکړی دی ( محمد ) دا(قرآن چي تصديق يې وکړي ؟ ) ﴿ قُلۡ فَأۡتُواْ بِعَشۡرِ سُوَرٖ مِّثۡلِهِۦ مُفۡتَرَيَٰتٖ ﴾ ووايه ( اې محمده ! دوی ته ) نو راوړئ تاسي لس سورتونه په شان ديوه سورت دده ( فصيح ،بليغ ) ځکه چي تاسي فصحاء عربان ياست له خانه يې جوړکړئ ! ﴿ وَٱدۡعُواْ مَنِ ٱسۡتَطَعۡتُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ اورا وبولئ هغه کسان چي توانېږئ تاسي (دکومک لپاره ) غيرله الله څخه ﴿ إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ ﴾ که يې تاسي صادقان (رښتوني په دعوی دافتراء کي ) ﴿ فَإِلَّمۡ يَسۡتَجِيبُواْ لَكُمۡ فَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّمَآ أُنزِلَ بِعِلۡمِ ٱللَّهِ ﴾ نوکه ځواب درنکړي دوی تاسي ته (هغه چاچي تاسومرستي ته رابللي وو ) نوپوه شئ ( اې مشرکانو ) چي بېشکه هم داخبره ده چي رالېږل شوی دی (قرآن ) په علم د( وحی ) دالله سره ﴿ وَأَن لَّآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَۖ ﴾ او(پوه (شئ)

(۱) البحر ۵ / ۲۰۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



چي نشته هيڅ لائق د عبادت مګر هم دی دی (چي دغه معجز قرآن يې رااستولی دی) ﴿ فَهَلْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ ﴾ نوآيا يې تاسي مسلمانان؟ دغه لفظ د استفهام او معنا يې امر دی يعني مسلمانان شئ وروسته له دغه کوتلي دلائلو چي ستاسو لپاره هيڅ عذر او مانع هم پاتي نشو په التسهيل کتاب کي وايي چي: دغه استفهام او معنا يې استدعاء ده يعني اسلام ته رابلل يې مقصد دی او دا په کافرانو الزام هم دی چي ايمان راوړي ځکه چي د اسلام په ربښتنولي دلائل راغلل او دوی د قرآن له جوړولو څخه عاجز شول (۱) ﴿ مَن كَانَ يُرِيدُ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا نُوَفِّ إِلَيْهِمْ أَعْمَالَهُمْ فِيهَا ﴾ هرڅوک چي وي غواړي (په سبب د خپلو نېکو اعمالو) يوازي ژوندون د دنيا او ښايست يې او په آخرت ايمان نلري) نو پوره به ورکړو دوی ته (بدل د) اعمالو د دوی په دنيا کي (چي دوی يې غواړي لکه روغتيا، امن او روزي) ﴿ وَهُمْ فِيهَا لَا يُبْخَسُونَ ﴾ حال دا چي دوی به پدې دنيا کي نه شي کم کېدلای (له بدل داعمالو د دوی هيڅ شی). قتاده رضی الله عنه وايي: د چا چي نيت د دنياوي الله به يې د نېکو اعمالو په بدل کي دنيا ورکړي او آخرت ته به داسي ولاړ شي چي هيڅ نېکي به نلري چي جزا ورباندي ورکول شي او د مسلمان مؤمن لپاره به د حسناتو په دنيا کي جزا ورکړل شي او په آخرت کي به يې ثواب ومومي (۲) ﴿ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَيْسَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ إِلَّا النَّارُ ﴾ (داهغه کسان دي چي نشته دوی ته په آخرت کي مګر اور (د دوزخ) يعني دغه کسان چي موخه او هدف يې يوازي دنيا ده نو په آخرت کي پر ته له تل ترتله اوړبل څه د دوی لپاره نشته ﴿ وَحَبِطَ مَا صَنَعُوا فِيهَا ﴾ (او ابته (خراب) شوی دی هغه (نېک عمل) چي دوی به کاوو په دنيا کي) ځکه چي دوی ته يې په دنيا کي بدله ورکړی شوه ﴿ وَبَاطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ (او باطل دی هغه عمل چي دوی به کاوو) دغه د ړومبني حکم تاکيد دی يعني د دوی نېک اعمال چي دوی به په دنيا کي کول هغه باطل دي ﴿ أَفَمَن كَانَ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّهِ ﴾ آيا هغه څوک چي دی پر څرګند برهان (او ښکاره خلا) له جانبه د رب خپل (چي هغه نبي او مؤمنان دي؟ ځواب دلو محذوف دی هغه دا چي دغه ښږی لکه هغه څوک داسي دی چي دنيوي خسيس ژوند غواړي؟! مقصد يې دا دی چي دداړ دواړو ترمينځ ستر توپير موجود دی ډېر سره يو له بله ليري دي څوک چي الله غواړي له هغه چا سره برابر ندی چي هغه دنيا او د دنيا ښايست غواړي ﴿ وَيَتْلُوهُ شَاهِدٌ مِّنْهُ ﴾ (او تابع وي د دې (برهان) پسي شاهد (له جانبه) د (الله) ابن عباس رضی الله عنهما وايي: چي دغه جبريل عليه السلام ښيي ﴿ وَمِن قَبْلِهِ كِتَابُ مُوسَىٰ إِمَامًا وَرَحْمَةً ﴾ او پخوا له دې (قرآنه) کتاب د موسی (تورات وو) په داسي حال کي چي پېشوا او رحمت وو (د هغه چا لپاره چي ورته نازل شوی وو) ﴿ أُولَٰئِكَ يُؤْمِنُونَ بِهِ ﴾ دغه (موصوف) کسان ايمان لري پدې (قرآن په حقه او ربښتيا سره ﴿ وَمَن يَكْفُرْ بِهِ مِنَ الْأَحْزَابِ فَالنَّارُ مَوْعِدُهُ ﴾ او هرڅوک چي کافرشو پدې (قرآن) له ګردو فرقو د (کافرانو) نو اور (د دوزخ) ځای د وعدې د ده دی (خامخا به ورځي) ﴿ فَلَا تَكُ فِي مِرْيَةٍ مِّنْهُ ﴾ نو مه کېږه په

(۱) التسهيل ۲ / ۱۰۲
(۲) المختصر ۲ / ۲۱۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



شک کي ته له دې (قرآنه ) ﴿ إِنَّهُ الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ ﴾ بېشکه چي هغه حق دی له جانبه د رب ستا (نازل شوی دی ) ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ وليکن اکثر د خلګو ايمان نه راوړي (پدې چي دا د رب العالمين له لوري رانازل شوی دی ) ﴿ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا ﴾ (نو څوک دی ډېر ظالم له هغه چاچي تړي له خانه په الله پوري دروغ ) يعني تردې بل ډېر ظالم څوک نشته چي په الله پوري دروغ تړي او نسبت د شريک او زوی ورته کوي ﴿ أُولَٰئِكَ يُعْرَضُونَ عَلَىٰ رَبِّهِمْ ﴾ دغه (دروغ تړونکی) به وړاندې کړی شي (په قيامت کي سره له ټولو خلګو ) رب د دوی ته (چي د دوی خالق او مالک ذات دی ﴿ وَيَقُولُ الْأَشْهَادُ هَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ كَذَبُوا عَلَىٰ رَبِّهِمْ ﴾ او وبه وايي: شاهدان (کرام الکاتبين او نور خلګ هغه چي د دوی اعمال ويني ) چي هم دوی دي هغه کسان چي دروغ يې تړلي وو په رب خپل ( غرض له دې شاهدي څخه د نو موړو رسوا کول او تشهير دی ﴿ أَلَا لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ ﴾ خبردار شئ لعنت دالله دي وي پر ظالمانو (هغوی چي ظلم يې کړی او دروغ يې په الله تړلي دي د لعنت معنا د الله له رحمت څخه شړل دي ﴿ الَّذِينَ يَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ وَيَبْغُونَهَا عِوَجًا ﴾ هغه (ظالمان ) چي اړوي خلګ له لاري دالله نه او لټوي (ستايې ) دالاره خلګو ته په کوږوالي سره ( يعني دوی غواړي چي د دوی له خواهشاتو سره سم دالله دين هم کوږ وي ﴿ وَهُم بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ ﴾ او هم دوی په آخرت هم دوی کافران (منکران ) کېدونکي دي (بعث او نشور نه مني ) ﴿ أُولَٰئِكَ لَمْ يَكُونُوا مُعْجِزِينَ فِي الْأَرْضِ ﴾ (دا کفار نه دي دوی عاجزکونکي (دالله) په ځمکه کي ) يعني دوی دالله له عذاب څخه خلاصېدلای نشي که څه هم چي الله مهلت ورکړي ﴿ وَمَا كَانَ لَهُم مِّن دُونِ اللَّهِ مِنْ أَوْلِيَاءَ ﴾ او نه به وي دوی ته غير له الله هيڅ دوستان (چي دالله عذاب ځني منع کړي ) ﴿ يُضَاعَفُ لَهُمُ الْعَذَابُ ﴾ دوچند به کړی شي دوی ته عذاب (په سبب د جرم او طغيان د دوی دغه مستأنفه جمله ده ) ﴿ مَا كَانُوا يَسْتَطِيعُونَ السَّمْعَ وَمَا كَانُوا يُبْصِرُونَ ﴾ نه وو دوی چي طاقت يې وي د اورېدلو (د حق دزړه له کوڼوالي ) او نه وو دوی چي ليدلي يې وي (دلائل د قدرت د زړه له ړوندوالي ) يعني د عذاب دوه ګون ورکول پدې سبب وو چي الله دوی ته سمع او بصر ورکړی خو دوی ورباندې حق نه اورېدل او نه يې ليدل نو په حواسو کي يې ګټه نه وه اخيستې ﴿ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ ﴾ (هم دوی هغه کسان دي چي زيان يې رسولی دی نفسونو خپلو ته ) يعني دنيوي او اخروي نيکمرغي يې له لاسه ورکړي او په ځان باندې يې راحت او سوکالي بايللي ځکه چي دوزخ ته ورتلونکي دي.﴿ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴾ (او ورک شول له دوی هغه چي و دوی چي دروغ يې تړل ) يعني له دوی څخه به هغه بتان ورک شي چي دوی ګمان کاوو چي هغه به يې شفاعت کوي ﴿ لَا جَرَمَ أَنَّهُمْ فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْأَخْسَرُونَ ﴾ (حقه خبره داده چي بېشکه دوی په آخرت کي هم دوی ډېر زيانکاران دي ) ځکه چي دوی فاني دنيا تر باقي او تلپاتې آخرت غوره ګڼلې او د جنت له نعمتونو څخه يې دا ورلمبې خوښې کړي دي وروسته له دې الله پاک د مؤمنانو نيکمرغي او حال داسې بيانوي: ﴿ إِنَّ الَّذِينَ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَأَخْبَتُوٓا۟ إِلَىٰ رَبِّهِمْ ﴾ (بېشکه هغه کسان چي ايمان يې راوړی دی او کړي يې دي ښه (عملونه) اوعاجزي کوي دوی خپل رب ته) يعني هغه کسان چي له ايمان اوصالح عمل سره يې تواضع، خشوع اويومخ ايزه دالله عبادت ته خان سپارنه ملګري کړي ده ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ ۖ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾ دغه کسان صاحبان (اوسېدونکي) د جنت دي دوی به پدې جنت کي همېشه وي (هيڅکله به خني نه وزي) ﴿ مَثَلُ ٱلْفَرِيقَيْنِ كَٱلْأَعْمَىٰ وَٱلْأَصَمِّ وَٱلْبَصِيرِ وَٱلسَّمِيعِ ۚ ﴾ (مثال ددې دواړو ډلو (دمؤمنانو اوکافرانو) لکه ړانده او(کانه اولکه دليدونکي او اورېدونکي دی) زمخشري وايي: دکافرانو ټولی يې له ړانده اوکانه سره مشابه کړه اودمؤمنانو يې له ليدونکي او اورېدونکي سره چي لف اونشر مرتب اودطباق صنعت پکې دی[1] اومعنا داچي حال ددوی هسي عجيب دی لکه حال دهغه چاچي ړوندوالی اوکونوالی دواړه يوځای ولري اولکه هغه چي بينااوشنوا وي ﴿ هَلْ يَسْتَوِيَانِ مَثَلًا ۚ ﴾ آيا برابردي دغه دواړه له جهته دمثاله (اوصفته بلکه ندي برابر سره يودبله، استفهام انکاري دی يعني هغه څوک چي دحق خلاوينی او وربانديي لاره مومي حال يې داسي نه دی لکه دهغه چاچي دګمراهي په تيارو کي تيندکونه خوري لوېږي رالوېږي او دنيکمرغي لاره نشي موندلای ﴿ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴾ (آيا نو تاسي پندنه اخلئ؟) يعني آياتاسو وعظ نه منئ غرض له دې څخه دايماندارو، عبادت کونکو له منکرانو اوسرغړونکو څخه جلاوالی دی.

## بلاغت:

۱- ﴿ عَذَابَ يَوْمٍ كَبِيرٍ ﴾ اضافت دعذاب يوم کبيرته دهول اوهيبت لپاره دی.

۲- کله چي الله فرمايي: ﴿ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ ﴾ ددې کلماتو ترمينځ دطباق صنعت دی همداراز په: ﴿ نَعْمَآءَ ﴾او ﴿ ضَرَّآءَ ﴾ اوهمداسي ﴿ نَذِيرٌ وَبَشِيرٌ ﴾ کي.

۳-داچي فرمايي: ﴿ لَيَـُٔوسٌ كَفُورٌ ﴾ دمبالغې صيغې دي يعني ډېرناهيلی اوکثيرالکفران.

۴-پدې کلام کي چي الله فرمايي: ﴿ كَٱلْأَعْمَىٰ وَٱلْأَصَمِّ ﴾ دلته مرسله مجمله تشبيه ده ځکه چي دتشبيه ادات (توری) ذکرشوی خو دمشبه وجه حذف شوي ده يعني مثال دکافرانو دټولی لکه ړوند او کوڼ چي سترګي او غوږونه نلري او مثال دټولی دمؤمنانو لکه اورېدونکي اوليدونکي غوندي دی.

**لطيفه:**

خينو صالحانو ويلي چي بي له دې چي ګناه پرېږدی استغفار کول د دروغجنو توبه ده[2]

**تنبيه:**

دلسو سورتونو په جوړولوباندي تحدی (چلينج) ورروسته دټول قرآن کريم له تحدی څخه راغلی دی کله چي دوی دقرآن په مثل راوړلو څخه عاجز شول نوبيايې دلسو سورتونو تحدی ورکړه اوچي له هغه نه هم عاجز

---

[1] القرطبي۹-۳
[2] القرطبي۹/۳

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



شول نو دیوه سورت په مثل چي دبلاغت ، فصاحت په پټو اسرارو ، تشريعي احكامو او مثالونو باندي مشتمل وي دوی ته يې تحدی ورکړه.

**الله تعالی فرمايي:**

﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِۦٓ إِنِّى لَكُمْ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٢٥﴾ أَن لَّا تَعْبُدُوٓا۟ إِلَّا ٱللَّهَ ۖ إِنِّىٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ
يَوْمٍ أَلِيمٍ ﴿٢٦﴾ فَقَالَ ٱلْمَلَأُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِن قَوْمِهِۦ مَا نَرَىٰكَ إِلَّا بَشَرًا مِّثْلَنَا وَمَا نَرَىٰكَ ٱتَّبَعَكَ إِلَّا ٱلَّذِينَ
هُمْ أَرَاذِلُنَا بَادِىَ ٱلرَّأْىِ وَمَا نَرَىٰ لَكُمْ عَلَيْنَا مِن فَضْلٍۭ بَلْ نَظُنُّكُمْ كَـٰذِبِينَ ﴿٢٧﴾ قَالَ يَـٰقَوْمِ أَرَءَيْتُمْ إِن كُنتُ
عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّى وَءَاتَىٰنِى رَحْمَةً مِّنْ عِندِهِۦ فَعُمِّيَتْ عَلَيْكُمْ أَنُلْزِمُكُمُوهَا وَأَنتُمْ لَهَا كَـٰرِهُونَ ﴿٢٨﴾ وَيَـٰقَوْمِ لَآ أَسْـَٔلُكُمْ
عَلَيْهِ مَالًا ۖ إِنْ أَجْرِىَ إِلَّا عَلَى ٱللَّهِ ۚ وَمَآ أَنَا۠ بِطَارِدِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ ۚ إِنَّهُم مُّلَـٰقُوا۟ رَبِّهِمْ وَلَـٰكِنِّىٓ أَرَىٰكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُونَ ﴿٢٩﴾
وَيَـٰقَوْمِ مَن يَنصُرُنِى مِنَ ٱللَّهِ إِن طَرَدتُّهُمْ ۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٣٠﴾ وَلَآ أَقُولُ لَكُمْ عِندِى خَزَآئِنُ ٱللَّهِ وَلَآ أَعْلَمُ ٱلْغَيْبَ وَلَآ أَقُولُ
إِنِّى مَلَكٌ وَلَآ أَقُولُ لِلَّذِينَ تَزْدَرِىٓ أَعْيُنُكُمْ لَن يُؤْتِيَهُمُ ٱللَّهُ خَيْرًا ۖ ٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا فِىٓ أَنفُسِهِمْ ۖ إِنِّىٓ إِذًا لَّمِنَ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴿٣١﴾
قَالُوا۟ يَـٰنُوحُ قَدْ جَـٰدَلْتَنَا فَأَكْثَرْتَ جِدَٰلَنَا فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّـٰدِقِينَ ﴿٣٢﴾ قَالَ إِنَّمَا يَأْتِيكُم بِهِ ٱللَّهُ
إِن شَآءَ وَمَآ أَنتُم بِمُعْجِزِينَ ﴿٣٣﴾ وَلَا يَنفَعُكُمْ نُصْحِىٓ إِنْ أَرَدتُّ أَنْ أَنصَحَ لَكُمْ إِن كَانَ ٱللَّهُ يُرِيدُ أَن يُغْوِيَكُمْ ۚ هُوَ رَبُّكُمْ
وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٣٤﴾ أَمْ يَقُولُونَ ٱفْتَرَىٰهُ ۖ قُلْ إِنِ ٱفْتَرَيْتُهُۥ فَعَلَىَّ إِجْرَامِى وَأَنَا۠ بَرِىٓءٌ مِّمَّا تُجْرِمُونَ ﴿٣٥﴾ وَأُوحِىَ
إِلَىٰ نُوحٍ أَنَّهُۥ لَن يُؤْمِنَ مِن قَوْمِكَ إِلَّا مَن قَدْ ءَامَنَ فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوا۟ يَفْعَلُونَ ﴿٣٦﴾ وَٱصْنَعِ ٱلْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا
وَوَحْيِنَا وَلَا تُخَـٰطِبْنِى فِى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓا۟ ۚ إِنَّهُم مُّغْرَقُونَ ﴿٣٧﴾ وَيَصْنَعُ ٱلْفُلْكَ وَكُلَّمَا مَرَّ عَلَيْهِ مَلَأٌ مِّن قَوْمِهِۦ سَخِرُوا۟
مِنْهُ ۚ قَالَ إِن تَسْخَرُوا۟ مِنَّا فَإِنَّا نَسْخَرُ مِنكُمْ كَمَا تَسْخَرُونَ ﴿٣٨﴾ فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ وَيَحِلُّ عَلَيْهِ
عَذَابٌ مُّقِيمٌ ﴿٣٩﴾ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَ أَمْرُنَا وَفَارَ ٱلتَّنُّورُ قُلْنَا ٱحْمِلْ فِيهَا مِن كُلٍّ زَوْجَيْنِ ٱثْنَيْنِ وَأَهْلَكَ إِلَّا مَن سَبَقَ
عَلَيْهِ ٱلْقَوْلُ وَمَنْ ءَامَنَ ۚ وَمَآ ءَامَنَ مَعَهُۥٓ إِلَّا قَلِيلٌ ﴿٤٠﴾ ۞ وَقَالَ ٱرْكَبُوا۟ فِيهَا بِسْمِ ٱللَّهِ مَجْر۪ىٰهَا وَمُرْسَىٰهَآ ۚ إِنَّ رَبِّى لَغَفُورٌ
رَّحِيمٌ ﴿٤١﴾ وَهِىَ تَجْرِى بِهِمْ فِى مَوْجٍ كَٱلْجِبَالِ وَنَادَىٰ نُوحٌ ٱبْنَهُۥ وَكَانَ فِى مَعْزِلٍ يَـٰبُنَىَّ ٱرْكَب مَّعَنَا وَلَا تَكُن
مَّعَ ٱلْكَـٰفِرِينَ ﴿٤٢﴾ قَالَ سَـَٔاوِىٓ إِلَىٰ جَبَلٍ يَعْصِمُنِى مِنَ ٱلْمَآءِ ۚ قَالَ لَا عَاصِمَ ٱلْيَوْمَ مِنْ أَمْرِ ٱللَّهِ إِلَّا مَن رَّحِمَ ۚ وَحَالَ
بَيْنَهُمَا ٱلْمَوْجُ فَكَانَ مِنَ ٱلْمُغْرَقِينَ ﴿٤٣﴾ وَقِيلَ يَـٰٓأَرْضُ ٱبْلَعِى مَآءَكِ وَيَـٰسَمَآءُ أَقْلِعِى وَغِيضَ ٱلْمَآءُ وَقُضِىَ ٱلْأَمْرُ
وَٱسْتَوَتْ عَلَى ٱلْجُودِىِّ ۖ وَقِيلَ بُعْدًا لِّلْقَوْمِ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴿٤٤﴾ وَنَادَىٰ نُوحٌ رَّبَّهُۥ فَقَالَ رَبِّ إِنَّ ٱبْنِى مِنْ أَهْلِى وَإِنَّ وَعْدَكَ
ٱلْحَقُّ وَأَنتَ أَحْكَمُ ٱلْحَـٰكِمِينَ ﴿٤٥﴾ قَالَ يَـٰنُوحُ إِنَّهُۥ لَيْسَ مِنْ أَهْلِكَ ۖ إِنَّهُۥ عَمَلٌ غَيْرُ صَـٰلِحٍ ۖ فَلَا تَسْـَٔلْنِ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ ۖ إِنِّىٓ
أَعِظُكَ أَن تَكُونَ مِنَ ٱلْجَـٰهِلِينَ ﴿٤٦﴾ قَالَ رَبِّ إِنِّىٓ أَعُوذُ بِكَ أَنْ أَسْـَٔلَكَ مَا لَيْسَ لِى بِهِۦ عِلْمٌ ۖ وَإِلَّا تَغْفِرْ لِى وَتَرْحَمْنِىٓ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



أَكُن مِّنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴿٤٧﴾ قِيلَ يَٰنُوحُ ٱهْبِطْ بِسَلَٰمٍ مِّنَّا وَبَرَكَٰتٍ عَلَيْكَ وَعَلَىٰٓ أُمَمٍ مِّمَّن مَّعَكَ ۚ وَأُمَمٌ سَنُمَتِّعُهُمْ ثُمَّ
يَمَسُّهُم مِّنَّا عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٤٨﴾ تِلْكَ مِنْ أَنۢبَآءِ ٱلْغَيْبِ نُوحِيهَآ إِلَيْكَ ۖ مَا كُنتَ تَعْلَمُهَآ أَنتَ وَلَا قَوْمُكَ مِن قَبْلِ هَٰذَا ۖ فَٱصْبِرْ ۖ
إِنَّ ٱلْعَٰقِبَةَ لِلْمُتَّقِينَ ﴿٤٩﴾ ﴾ هود: ٢٥ ـ ٤٩

## مناسبت اوتړاو:

کله چي الله پاک دمکي کفارو عناد يادکړ اودهغوی تکذيب اوافتراء يې وښودله چي ويل يې: (محمد) صلی الله عليه وسلم قرآن له ځانه جوړکړی دی نودلته يې دنوح عليه السلام کيسه راوړه چي هغه له خپل قوم (تبر) سره يې څومره ناخوالي ګاللي اوپرقوم يې بيا څه راغلي ترڅو ددروغ ګڼونکو اومعاندينو لپاره پند اوعبرت او درسول الله صلی الله عليه وسلم لپاره ډاډينه شي چي انبياوو له خپلو قومونوسره څومره تکاليف وړي دي.

## لغتونه:

(الملأ) دقوم مخه ورسپين روبي ( اراذل) درذيل جمع چي مقصد ځني دلته بېوزلان اوفقيران او دښکته پوړی خلک دي هغه چي نه شتمني لري اونه په څه پرواکوي (فعميت ) ګوډ شوی ويل کېږي (عمی عن کذا وعمی عليه کذا ) يعني ورباندي ګوډ شو يوځبزچي پرې نه پوهېږي (جادلتنا) جګړه دي وکړه له موږ سره دعربو په کلام کي مجادله په خصومت کي مبالغې ته وايي (تزدري) خوارګڼي (الفلک) بېړی اودالفظ په جمع اومفرد دواړو باندي اطلاق کېږي (التنور) داوربلولو ځای چي په پښتوکي هم دخيل دی (مرساها) ثبات او استقرار دهغې (عاصم) منع کونکی. په حديث شريف کي راځي ( فقد عصموا مني دمآئهم ) يعني په تحقيق وساتلي شوې له ماڅخه ويني تويول ددوی (غيض) له (غاض المآء) څخه اخيستل شوی اومعنايې ده کمي شوې (الجودیّ) هغه غره ته وايي چي دموصل له څنګه دی.

## تفسير:

﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِۦٓ ﴾ اوهرومرو په تحقيق موږ نوح لېږلی وو قوم دده ته وروسته له هغه چي خمکه ددوی په شرک اوشر باندي لړل شوي وه ﴿ إِنِّى لَكُمْ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴾ (چي ويل يې ) بېشکه زه تاسي ته ښکاره وېرونکی يم ( له دوزخه که موايمان نه راووړ) ﴿ أَن لَّا تَعْبُدُوٓاْ إِلَّا ٱللَّهَ ۖ ﴾ (چي مه کوئ تاسي عبادت دبل چاپې له الله ) يعني موږ هغه دتوحيد دبلني لپاره استازی کړی وو چي دوی يوازي دالله عبادت ته راوبولي ﴿ إِنِّىٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ أَلِيمٍ ﴾ (بېشکه زه وېرېږم پرتاسي له عذابه دورځي دردناکي ) يعني که موله الله پرته دبل چاعبادت وکړو زه پرتاسي باندي دهغې سختي اودردناکي ورځي له عذابه وېرېږم ﴿ فَقَالَ ٱلْمَلَأُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِن قَوْمِهِۦ ﴾ نوويل: هغو مشرانو چي کافران شوي وو له قومه دده غه (نوح) ﴿ مَا نَرَىٰكَ إِلَّا بَشَرًا مِّثْلَنَا ﴾ (چي نه وينو موږ تا (اي نوح) مګر يوبشر په شان زموږ) ستاپه موږ هيڅ بهتري نشته. زمخشري وايي چي: پدې

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

کي داانګېرنه ده چي ګواکي دوی ترنوح عليه السلام دنبوت ور او مستحق دي اوکه الله چېري غواړي چي دنبوت لپاره يو څوک په بشرکي غوره کړي نونبوت به دوی ته ورکړي (١) ﴿ وَمَا نَرَىٰكَ ٱتَّبَعَكَ إِلَّا ٱلَّذِينَ هُمْ أَرَاذِلُنَا ﴾ اونه وينو موږ تاچي متابعت کړی ستا (هيچا) مګر هغه کسانو چي دوی ښکته زموږ دي. په التسهيل نومي کتاب کي وايي چي دغه پيروان يې ځکه هسي وستايل چي هغوی فقيران اوبې وزلان وو ستايونکي په دې نه پوهېدل اوداسي عقيده يې لرله چي شرافت به په مال اومرتبه وي خوهسي نه ده بلکه مؤمنان سره له دې چي بېوزله اومراوي دي تردوی غوره اوبهتردي ﴿ بَادِيَ ٱلرَّأْيِ ﴾ (سرسري) په ظاهراول فکر بلاتأمل ﴿ وَمَا نَرَىٰ لَكُمْ عَلَيْنَا مِن فَضْلٍ ﴾ اونه وينو موږ تاسي (اوستاسي پلويانو) لره پرموږ باندي هيڅ بهتري (چي تاسو دنبوت ور اودخلګو دپيروي کولو لپاره مستحق وګڼي) ﴿ بَلْ نَظُنُّكُمْ كَٰذِبِينَ ﴾ بلکه موږ پرتاسو د دروغجنانو ګمان کوو (دهغه څه په هکله چي تاسويې ادعاکوئ) دوی وغوښتل چي له دوو خواوو په نوح عليه السلام باندي دليل ونيسي يوداچي پلويان يې دښکته پوړ اوټيټي مرتبي خلک دي چي داقتداوړنه دي اوبل داچي هغوی په دې پيروي کولو کي سوچ ندی کړی بې له غوراوتأمل نه يې ستاپيروي کړې ده ددوی غرض له دغه استدلال څخه داووچي پردوی حجت رانه وړل شي چي ځيني له دوی څخه شته چي په نوح عليه السلام باندي يې ايمان راوړی دی ﴿ قَالَ يَٰقَوْمِ أَرَءَيْتُمْ إِن كُنتُ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّي ﴾ وويل: (نوح) اې قومه زما ! خبرراکړئ ماته که يم زه پرسمه لارله ربه خپله) نوح عليه السلام له قوم سره په نرمي اوپسته ژبه خبري وکړې ترڅو چي دايمان لوري ته يې رامات کړي ورته ويل يې: اې قومه: ماته تاسي خبر راکړئ که چېري زه له خپله ربه په دليل اوجلي برهان دخپلي دعوی يم ﴿ وَءَاتَىٰنِي رَحْمَةً مِّنْ عِندِهِۦ ﴾ او راکړې يې وي ماته رحمت له خپله نزده يعني ځانګړې هدايت چي له نبوت څخه عبارت دی ﴿ فَعُمِّيَتْ عَلَيْكُمْ ﴾ نوپټ کړی شوی دی (ددې دليل حقيقت) ستاسوپه سترګو (ځکه ستاسي او دايمان دنور ترمينځ دماديا تو حجاب دی) ﴿ أَنُلْزِمُكُمُوهَا وَأَنتُمْ لَهَا كَٰرِهُونَ ﴾ آيا موږ تاسي مجبور کولای شو په قبلولو دهغو سره (نه شو کولای) حال داچي تاسي دغه لره بدګڼونکي انکارکونکي ياست؛ استفهام دانکار لپاره دی يعني موږ دغسي نه کوو ځکه چي په دين راوړلو کي جبرنشته (لااکراه فی الدين) ﴿ وَيَٰقَوْمِ لَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مَالًا ﴾ ( اواې قومه زما نه غواړم زه له تاسي په دغه (دعوت اوتبليغ) څه مال) يعني پدغه نصيحت اودعوت له تاسو مزدوري نه غواړم چي تاسي په ماتهمت ترې ﴿ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى ٱللَّهِ ﴾ (ندی اجر (مزدوري) زمامګر په الله باندي) يعني زه خپل ثواب له الله پرته له بل چاڅخه نه غواړم هغه ماته جزا اوثواب راکوي ﴿ وَمَآ أَنَا۠ بِطَارِدِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ ﴾ اونه يم زه شړونکی (له خپله مجلسه) دهغو کسانو (بېوزلانو) چي ايمان يې راوړی دی (لکه چي تاسو يې غوښتنه کوی) ﴿ إِنَّهُم مُّلَٰقُوا۟ رَبِّهِمْ وَلَٰكِنِّيٓ أَرَىٰكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُونَ ﴾ (ځکه چي) بېشکه دوی ملاقات کونکي دي له ربه خپله سره (په مراد رسېدونکي دي دالله په قربت سره نوڅرنګه يې وشړم) وليکن زه ګورم تاسي داسي قوم چي جاهلان (ناپوهان) ياست ددوی په قدر نه پوهېږئ نوله ماڅخه

---

(١) الکشاف ٢/٣٨٨

Bawar.net



غواړئ چي دوی وشړم تاسي داګومان کوئ چي تاسي ترمؤمنانو غوره يئ ! ﴿ وَيَٰقَوۡمِ مَن يَنصُرُنِي مِنَ ٱللَّهِ إِن طَرَدتُّهُمۡۚ ﴾ او اې قومه زما ! څوک به له ماسره مرسته وکړي (چي ما وساتي) له عذابه دالله که زه دوی وشړم؟ ﴿ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴾ آيا (فکرنه کوئ) نوپند نه اخلئ تاسي (چي ستاسي رايه خطاده)؟ ﴿ وَلَآ أَقُولُ لَكُمۡ عِندِي خَزَآئِنُ ٱللَّهِ ﴾ اونه وايم زه تاسوته چي ماخخه دالله خزانې دي (ترڅوتاسي زمادبډای والي له امله متابعت وکړئ ﴿ وَلَآ أَعۡلَمُ ٱلۡغَيۡبَ ﴾ اونه (وايم داچي) په غيب پوهېږم (څوچي تاسي زمادربوبيت ګمان وکړئ) ﴿ وَلَآ أَقُولُ إِنِّي مَلَكٞ ﴾ (اونه وايم زه چي بېشکه زه پرښته يم) تاسوته رالېږلي شوي نوهله به زه په خپله دعوی کي دروغجن يم ﴿ وَلَآ أَقُولُ لِلَّذِينَ تَزۡدَرِيٓ أَعۡيُنُكُمۡ لَن يُؤۡتِيَهُمُ ٱللَّهُ خَيۡرًاۖ ﴾ اونه وايم زه په حق دهغو (بېوزلانومؤمنانو) چي سپک ورته ګوري سترګي ستاسي چي له سره به ورنکړي دوی ته الله هيڅ خير (هدايت اوتوفيق) ﴿ ٱللَّهُ أَعۡلَمُ بِمَا فِيٓ أَنفُسِهِمۡۖ ﴾ الله ښه عالم دی په هغو (پټواسرارو) چي ددوی په زړونو کي دي ﴿ إِنِّيٓ إِذٗا لَّمِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ (که زه دغه ووايم) نوزه په دغه وخت کي خامخا له ظالمانوڅخه يم (دعذاب مستحق يم) ﴿ قَالُواْ يَٰنُوحُ قَدۡ جَٰدَلۡتَنَا فَأَكۡثَرۡتَ جِدَٰلَنَا ﴾ وويل: دوی (کفارو) اې نوح ! په تحقيق جګړه دي وکړه له موږ سره پس ډېره دي کړه جګړه زموږ ﴿ فَأۡتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴾ نوراوړه موږته هغه عذاب چي ته يې له موږ سره وعده کوې که يې ته له صادقانو (په خپله وعده کي) ﴿ قَالَ إِنَّمَا يَأۡتِيكُم بِهِ ٱللَّهُ إِن شَآءَ ﴾ نوووويل نوح بېشکه همدا خبره ده چي رابه ولي تاسي ته دا عذاب (خاص) الله که اراده وکړي يعني دغه په تلواره دعذاب راوړلو واک له الله سره دی هغه که وغواړي درته به يې راوړي له ماسره دغه اختيار نشته ﴿ وَمَآ أَنتُم بِمُعۡجِزِينَ ﴾ اونه ياست تاسي (دالله) عاجز کونکي (چي له عذابه يې وتښتئ څکه تاسي دهغه په ملک اوسلطان کي يئ) ﴿ وَلَا يَنفَعُكُمۡ نُصۡحِيٓ إِنۡ أَرَدتُّ أَنۡ أَنصَحَ لَكُمۡ ﴾ اونفع نه دررسوي تاسي ته نصيحت زما که اراده وکړم زه چي نصيحت وکړم تاسوته ﴿ إِن كَانَ ٱللَّهُ يُرِيدُ أَن يُغۡوِيَكُمۡۚ ﴾ (که وي الله چي ستاسي دګمراهي اراده وفرمايي) دغه دپورتني مطلب لپاره ځواب دی يعني که الله ستاسوبدمرغي اوضلالت غوښتی وي زما نصيحت به څه ګټه در ورسوي ﴿ هُوَ رَبُّكُمۡ وَإِلَيۡهِ تُرۡجَعُونَ ﴾ هم دی دی رب ستاسي (پيداکونکی اوتصرف کونکی په اُمورو (ستاسي کي) اوخاص هم ده ته بيرته بېولی کېږئ (نوبيابه تاسوته پخپلو اعمالو سزادرکړي ﴿ أَمۡ يَقُولُونَ ٱفۡتَرَىٰهُۖ ﴾ (الله فرمايي): بلکه آيا وايي دوی چي له خپله ځانه يې جوړه کړي ده دغه (وحی)؟ يعني آيا دمکې قريش کفار هسي وايي چي محمد دغه قرآن له خپله ځانه جوړکړی دی؟(١) ﴿ قُلۡ إِنِ ٱفۡتَرَيۡتُهُۥ فَعَلَيَّ إِجۡرَامِي ﴾ (ووايه (اې رسوله ادوی ته) که

(١) دغه داکثرومفسرينورايه ده ځوابن عطيه اوابوحيان بياوايي: چي دغه آيت هم دنوح عليه السلام په کيسه کي دی اوضميردنوح عليه السلام قوم ته راجع دی نومعنايې داسي کېږي چي آيادوی وايي: دغه نوح دغه اخبارله ځانه جوړکړی دی؟

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



مي له خانه جوړ كړي واى نو خاص پرمادى عقوبت دګناه زما ) يعني اې محمده ! دوى ته ووايه كه چېرې مادغه قرآن له خانه جوړ كړى وي ګناه يې پرماده او تاسي زما په ګناه نه نيول كېږئ ﴿ وَأَنَا۠ بَرِىٓءٌ مِّمَّا تُجۡرِمُونَ ﴾ او زه بېزاره يم له هغې ګناه چي تاسې كوئ (له كفر او تكذيب څخه) دغه آيت دنوح عليه السلام دكيسې په مينځ كي اعتراض دى چي دې ته اشاره كوي دمشركانو درېځ هم لكه دنوح عليه السلام دقوم په شان درېځ دى چي عناد او تكذيب يې خپل كړى دى. ﴿ وَأُوحِىَ إِلَىٰ نُوحٍ أَنَّهُۥ لَن يُؤۡمِنَ مِن قَوۡمِكَ إِلَّا مَن قَدۡ ءَامَنَ ﴾ او وحى كړى شوه ونوح ته چي بېشكه شان دادى چي له سره به ايمان رانه وړي ستاله قومه (ستا په رسالت ) مګر هغه چي (پخواله دې نه ) په تحقيق ايمان يې راوړى وو ﴿ فَلَا تَبۡتَئِسۡ بِمَا كَانُواْ يَفۡعَلُونَ ﴾ نو مه غمجن كېږه په هغه (ايذاء، دتكذيب تالره او كفر) چي دوى به كول (نو زه دوى ارو مرو هلاكوم) ﴿ وَٱصۡنَعِ ٱلۡفُلۡكَ بِأَعۡيُنِنَا ﴾ او ته بېړۍ جوړه كړه په حضور حفاظت زموږ ﴿ وَوَحۡيِنَا ﴾ او زموږ په درښودلو. مجاهد وايي: معنادا چي لكه څنګه موږ درته امر كوو ﴿ وَلَا تُخَٰطِبۡنِى فِى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓاْ ﴾ او مه كوه خبري ماسره (دشفاعت ددفع كولو دعذاب) په حق دهغو كسانو چي ظالمان شوي (كافران) دي ﴿ إِنَّهُم مُّغۡرَقُونَ ﴾ چي بېشكه په دوى باندي حكم كول شوى (دطوفان په وسيله دغرقېدلو ﴿ وَيَصۡنَعُ ٱلۡفُلۡكَ ﴾ او جوړوله (نوح) بېړۍ ، دپخواني حال حكايت داستحضار لپاره راوړل شوى يعني نوح لكه څرنګه چي رب ورښودلي وه هغسي بېړۍ جوړوله ﴿ وَكُلَّمَا مَرَّ عَلَيۡهِ مَلَأٞ مِّن قَوۡمِهِۦ سَخِرُواْ مِنۡهُۚ ﴾ او كله چي تېرېدل به په دغه (نوح) ډله (دمشرانو ) له قوم دده نو مسخرې به يې كولې په دغه (نوح) پوري (او پوري خندل به يې ، ورته به يې داسي ويل: اې نوح ! ته خو پرون نبي وې اونن بيانجار شوې ؟ ! ﴿ قَالَ إِن تَسۡخَرُواْ مِنَّا فَإِنَّا نَسۡخَرُ مِنكُمۡ كَمَا تَسۡخَرُونَ ﴾ نو وويل: نوح كه مسخرې كوئ تاسي پر موږ (نن ورځ) نو بېشكه موږ به هم مسخرې وكړو (په راتلونكي كي كله چي تاسي غرق شئ )لكه چي اوس تاسي مسخرې كوئ پر موږ نو مسخرې او ملنډي خو پر تاسي وهل پكاردي چي تاسي يې وړ او مستحق ياست ﴿ فَسَوۡفَ تَعۡلَمُونَ ﴾ نو ژر به تاسي (هغه څوك ) وپېژنئ دغه وعيد او تهديد دى يعني ژر به تاسي .دروغ ګڼونكي او ملنډي وهونكي په عذاب وپوهېږئ ﴿ مَن يَأۡتِيهِ عَذَابٞ يُخۡزِيهِ وَيَحِلُّ عَلَيۡهِ عَذَابٞ مُّقِيمٌ ﴾ هغه څوك چي رابه شي ورته (داسي) عذاب چي وبه شرموي ده لره (غرق به شي ) او راكوزېږي به په ده عذاب دائم (چي ددوزخ عذاب دى ) ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَ أَمۡرُنَا وَفَارَ ٱلتَّنُّورُ ﴾ ترهغه پوري كله چي راغى امر (موعود ) زموږ او راوخوټېدو تنور( په اوبو سره ) علماء كرام وايي : چي الله پاک دغه دنوح عليه السلام لپاره علامه او دقوم دهلاک لپاره يې موعد ټاكلى وو . ابن عباس رضى الله عنه وايي: چي مراد له تنور څخه دځمكي مخ دى. طبري وايي: چي عرب دځمكي مخ ته تنور وايي نو ورته وويل شول چي كله دي اوبه دځمكي په مخ وليدلې سمدستي ته او ستاملګري په بېړۍ كي سپاره شئ [1] او ابن كثير

[1] وروسته له هغه چي امام طبري دتنور په هكله دسلفو اقوال راوړل وېې ويل: چي ترټولو غوره زموږ په نزد هغه ده چي تنور هغه ځاى ته ويل كېږي چي هلته ډوډۍ پخېږي څكه دعربو په اقوالو كي دغه مشهوردى او دالله كلام په اغلب او اشهرباندي معنا كول پكاردى. طبرى ۱۲/ ۴۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وايي: چي تنور دځمکي مخ ته وايي يعني ځمکه چينې خوټېدونکي وګرزېږي آن ترديې چي له تنورونو څخه هلته چي پخې اوربلېږي هم اوبه راوغورځي چي دغه وروستی قول دسلفو اوخلفو جمهورو علماوو دی(۱) ﴿ قُلْنَا ٱحْمِلْ فِيهَا مِن كُلٍّ زَوْجَيْنِ ٱثْنَيْنِ ﴾ وويل: موږ (نوح) ته سپاره کړه پدې بېړۍ کي له هري (دلي) نوعي دحيواناتو څخه جوړه دوه دوه (نارينه اوښځينه) ﴿ وَأَهْلَكَ إِلَّا مَن سَبَقَ عَلَيْهِ ٱلْقَوْلُ ﴾ اواهل خپل (دي هم سپاره کړه چي ستااولادونه اومېرمني دي) مګرمه سپروه هغه چي رومبی شوي ده په ده وينا (حکم دډوبېدلو چي مراد له دې څخه دده زوی (کنعان) اومېرمن يې (واعلة) دي) ﴿ وَمَنْ ءَامَنَ وَمَآ ءَامَنَ مَعَهُۥٓ إِلَّا قَلِيلٌ ﴾ اوهغه (هم سپاره کړه چي ايمان يې راوړی دی (ستاپيروان دي) اونه وو ايمان راوړی له دغه (نوح) سره مګر لږو خلکو (سره له دې چي دېرکلونه يې ورسره تېرکړي اوتبليغ يې ورته کړی وو چي نه سوه پنځوس کاله اوږده موده وه. ابن عباس رضی الله عنه وايي: چي دغه مؤمنان اتيا تنه وو چي ځيني له دوی څخه ددوی مېرمني وې اوکعب الاحبار وايي: چي دوی دوه اتيا تنه وو اوچابياويلي: چي يوازي لس کسانو ورباندي ايمان راوړی وو(۲) ﴿ وَقَالَ ٱرْكَبُوا۟ فِيهَا بِسْمِ ٱللَّهِ مَجْر۪ىٰهَا وَمُرْسَىٰهَآ ﴾ او وويل: نوح چي سپاره شئ پردغي بېړۍ او ووايئ) په نامه دالله دی روانېدل ددې (بېړۍ داوبو په سر) اودرېدل ددې (بېړۍ) او استقراريې) طبري وايي چي معناداچي دالله په نامه دابېړۍ روانېږي اودرېږي (۳) ﴿ إِنَّ رَبِّى لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ ببشکه چي رب زماخامخا ښه ښښونکی دي دګناهونو (دتوبه کارو) ډېر رحم والادی (په مؤمنانو چي له ډوبېدلو څخه يې نجات ورکړ) ﴿ وَهِىَ تَجْرِى بِهِمْ فِى مَوْجٍ كَٱلْجِبَالِ ﴾ اودې (بېړۍ) به وړل دوی په څپوکي په شان دغرونو (په لوړوالي اولويوالي کي دالله په حکم اوعنايت سره. صاوي وايي: چي روايت کېږي الله پاک څلوېښت شپې او ورځي باران و اوراوو اوله ځمکي څخه اوبه را وخوټېدې چينې وبهېدلې لکه چي الله فرمايي: ﴿ فَفَتَحْنَآ أَبْوَٰبَ ٱلسَّمَآءِ بِمَآءٍ مُّنْهَمِرٍ ﴿١١﴾ وَفَجَّرْنَا ٱلْأَرْضَ عُيُونًا فَٱلْتَقَى ٱلْمَآءُ عَلَىٰٓ أَمْرٍ قَدْ قُدِرَ ﴾ [القمر ۱۱-۱۲] اوبه هومره لوړي وختلې چي دځمکي دخوراسترغره دپاسه څلوېښت ذراع (ګزه) اوبه ودرېدې او هرڅه دوب شول(۴) ﴿ وَنَادَىٰ نُوحٌ ٱبْنَهُۥ وَكَانَ فِى مَعْزِلٍ ﴾ اوناري کړې نوح خپل زوی (کنعان ته ترېخوا دبېړۍ د روانېدلو) حال داچي هغه وو په يوه څنډه کي (او له مسلمانانو سره سپورشوی نه وو) ﴿ يَٰبُنَىَّ ٱرْكَب مَّعَنَا وَلَا تَكُن مَّعَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴾ اي زويکيه زما! راځه سپورشه (په بېړۍ کي) له موږ سره اوله کافرانو سره مه کېږه (چي غرق به شې) لکه دوی غوندي) ﴿ قَالَ سَـَٔاوِىٓ إِلَىٰ جَبَلٍ يَعْصِمُنِى مِنَ ٱلْمَآءِ ﴾ وويل: (کنعان) چي ژربه لاړشم ځای به ونيسم پرسر دکوم غره باندي چي ماله اوبو څخه وژغوري (ده ګمان کاوو چي اوبه به دغره ترڅوکو هډونه رسېږي ﴿ قَالَ لَا عَاصِمَ ٱلْيَوْمَ مِنْ أَمْرِ ٱللَّهِ إِلَّا مَن رَّحِمَ ﴾ وويل: (نوح) چي نشته ساتونکی نن ورځ له حکمه

طبري ۱۲/ ۴۰
(۱) المختصر ۲/ ۲۲۰
(۲) المختصر ۲/ ۲۲۰
(۳) الطبري ۱۲/ ۴۴
(۴) حاشية الصاوي على الجلالين ۲/ ۲۲۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دالله مگر هغه چي الله ورباندي رحم کړی دی (نجات مومي) یعني نوح علیه السلام خپل زوی ته وفرمایل: چي نن دالله له عذاب څخه څوک نه ژغورل کېږي اونه بې هم ژغورونکی شته مگر هغه چي اللهورباندي رحمت وکړي اونجات ورکړي ﴿ وَحَالَ بَيْنَهُمَا ٱلْمَوْجُ فَكَانَ مِنَ ٱلْمُغْرَقِينَ ﴾ اوپرده شو دددوی دواړو (نوح اوزوی بې) څپه نو وګرځېدو (کنعان) له غرق کړی شویو څخه ﴿ وَقِيلَ يَٰٓأَرْضُ ٱبْلَعِي مَآءَكِ وَيَٰسَمَآءُ أَقْلِعِي ﴾ او وویل شو چي (اې ځمکي جذب کړه اوبه خپلي او اې آسمانه ! بندي کړه (اوبه خپلي چي باران وو) ﴿ وَغِيضَ ٱلْمَآءُ وَقُضِيَ ٱلْأَمْرُ وَٱسْتَوَتْ عَلَى ٱلْجُودِيِّ ﴾ اوکمي کړی شوې اوبه (دځمکي له مخ نه) اوپوره کړی شو حکم (دغرقېدلو داشرارو اونجات د ابرارو) او ودرېده بېړۍ دجودي په غره باندي (چي دعراق موصل سره نژدې دی) ﴿ وَقِيلَ بُعْدًا لِّلْقَوْمِ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ اوویل شو (هلاک) لري والی (له رحمته) دي وي لپاره دقوم ظالمانو (کافرانو) ته دغه جمله دعائیه بولي. الوسي وایې: چي پټه دي نه وي چي په آیت شریف کي دټولو کفارو دهلاکت بلکه دبېړۍ له خلګو پرته دهغه وخت دټولو ځمکني اوسېدونکو دهلاکت خبردی او ددې تائید هغه حدیث هم کوي چي وایې: په دغه طوفان کي یوه ښځه چي وړوکی ماشوم ورسره وو کله چي اوبه بې ولیدلې نوماشوم بې په سینه پوري ونیو کله چي بې اوبه سینې ته ورسېدلې نو بې اوړو ته اوچت کړ او چي اوږې بې هم اوبولاندي کړې نوبې په لاسونو کي پورته کړ که چېري الله پاک د بېړۍ له سپرلیو پرته په بل چا دځمکي له خلګو رحم کولای هغې باندي به بې رحم کړی وو (۱) ﴿ وَنَادَىٰ نُوحٌ رَّبَّهُۥ فَقَالَ رَبِّ إِنَّ ٱبْنِي مِنْ أَهْلِي ﴾ (اوغږ (غوښتنه) وکړه نوح خپل رب ته نو وېې ویل: اې زمارېه بېشکه چي زمازوی زما له اهل څخه دی) یعني نوح علیه السلام خپل رب ته په زاري غږ وکړ چي زمازوی (کنعان) خو زماله اهل څخه دی اوتاله ماسره داهل دنجات وعده فرمایلې وه ﴿ وَإِنَّ وَعْدَكَ ٱلْحَقُّ وَأَنتَ أَحْكَمُ ٱلْحَٰكِمِينَ ﴾ (اوبېشکه چي ستاوعده (ژمنه) حق دی اوته بې لوی حاکم له ټولو حکم کونکو څخه) یعني اې ربه ستاپه وعده کي خلاف نشته او ته ترټولو حاکمانو عادل اوپه حق بې ﴿ قَالَ يَٰنُوحُ إِنَّهُۥ لَيْسَ مِنْ أَهْلِكَ ﴾ (الله) وفرمایل: اې نوح ! بېشکه چي ستاله اهل څخه نه دی (هغه چي مابې دنجات درسره وعده کړې ده څکه دغه کافردی اودکافر اومؤمن ترمینځ خپلوي او ولایت نشته ﴿ إِنَّهُۥ عَمَلٌ غَيْرُ صَٰلِحٍ ﴾ بېشکه دی (خاوندد) بېکاره عمل دی ﴿ فَلَا تَسْـَٔلْنِ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ ﴾ نوسوال مکوه له مانه دهغه څېز چي نه وي تاته په هغه کي علم (پوهه چي دغه کارصواب اوکه خطادی؟ ﴿ إِنِّىٓ أَعِظُكَ أَن تَكُونَ مِنَ ٱلْجَٰهِلِينَ ﴾ بېشکه زه پند درکوم تاته (هسي نه) چي شې ته له جاهلانو ؛ په التسهیل کي وایې: چي پدې کي دنوح علیه السلام دجهالت وصف نشته بلکه یوډول ملاطفت اوعزت پکي راغلی دی (۲) ﴿ قَالَ رَبِّ إِنِّىٓ أَعُوذُ بِكَ أَنْ أَسْـَٔلَكَ مَا لَيْسَ لِى بِهِۦ عِلْمٌ ﴾ وویل: (نوح) اې زمارېه بېشکه زه پناه غواړم په تاباندي له دې نه چي سوال وکړم له تانه دهغه څېز چي زه ورباندي علم نلرم) یعني نوح علیه السلام دعذرپه توګه خپل رب ته هسي وویل: چي اې ربه ! زه په تاپوري پناه نیسم چي دداسي څه

(۱) روح المعاني ۱۲/ ۲۲
(۲) التسهیل ۲/ ۱۰۶

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



غوښتنه درڅخه وکړم هغه چي له ماسره نه ښایي ﴿ وَإِلَّا تَغۡفِرۡ لِي وَتَرۡحَمۡنِيٓ أَكُن مِّنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ ﴾ او که ته ماته مغفرت ونکړې اوپرما رحم ونکړې زه به له زیانکارانو شم (هغوی چي دآخرت نیکمرغي یې له لاسه ورکړي اوخسران یې په برخه شوی وي) ﴿ قِيلَ يَٰنُوحُ ٱهۡبِطۡ بِسَلَٰمٖ مِّنَّا ﴾ وویل شو اې نوح اکوزشه (له دې بېړۍ) سره له سلامتي (او امن) له جانبه زموږ ﴿ وَبَرَكَٰتٍ عَلَيۡكَ وَعَلَىٰٓ أُمَمٖ مِّمَّن مَّعَكَۚ ﴾ او سره له برکتونو (له جانبه زموږ) پرتا اوپرڅو فرقو له هغه چانه چي له تاسره دي (له اهل د دغي بېړۍ نه. قرطبي وایې: چي په دې کي ټول مؤمنان دقیامت تر ورځي پوري داخل دي (١)) ﴿ وَأُمَمٞ سَنُمَتِّعُهُمۡ ﴾ اوځه نوري فرقې (چي کافران اوله اولادې) دهغه چادي چي له تاسره دي) ژربه نفع ورکړو هغوی ته (په دنیاکي) ﴿ ثُمَّ يَمَسُّهُم مِّنَّا عَذَابٌ أَلِيمٞ ﴾ بیابه ورسېږي دوی ته زموږ له طرفه عذاب دردناک (چي دجهنم عذاب دی) ﴿ تِلۡكَ مِنۡ أَنۢبَآءِ ٱلۡغَيۡبِ نُوحِيهَآ إِلَيۡكَۖ ﴾ دغه د (نوح کیسه) له اخبارو دغیب څخه ده (چي تانه ده لیدلي) چي (درښیو) وحی کوو د دغه اخبار تاته (اې محمده!) ﴿ مَا كُنتَ تَعۡلَمُهَآ أَنتَ وَلَا قَوۡمُكَ مِن قَبۡلِ هَٰذَاۖ ﴾ نه وې ته چي پوهېدې په دې کیسې او نه قوم ستاپخوا له دې (اخبار زموږ ه چي دقرآن کریم نزول دی) ﴿ فَٱصۡبِرۡۖ إِنَّ ٱلۡعَٰقِبَةَ لِلۡمُتَّقِينَ ﴾ نوصبر کوه (په تبلیغ کولو ددعوت لکه چي نوح صبر کړی وو ښه خاتمه دپرهېزګارانو لپاره دی او پدې کي د رسول علیه السلام لپاره دمشرکینو په ایذاء باندي دصبر کولو مارښنه (توصیه) او دتسلیت پېرزوینه ده.

بلاغت:

١ - ﴿ فَعُمِّيَتۡ عَلَيۡكُمۡ ﴾ دلته هغه ځوک چي په حجت اودلیل نه پوهېږي له هغه چاسره مشابه وګڼل شو چي په دښتو مېرو سروي، لاره نه شي موندلای اودغه ګواکي تمثیلي استعاره ده.

٢ - پدې کلام کي چي فرمایي: ﴿ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴾ استفهام دانکار اوتقریع لپاره دی.

٣ - ﴿ فَأۡتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ ﴾ دلته امرخو مقصد ځني تهکم او استهزاء دی.

٤ - پدې جمله کي چي: ﴿ فَعَلَيَّ إِجۡرَامِي ﴾ مجاز بالحذف دی یعني په ما باندي جزا دجرم زمادی اوچي د ﴿ إِنِ ﴾ توری یې راوړی هغه چي په شک دلالت کوي ددې لپاره دغه دفرض اوتقدیرپه مثال دی یعني که بالفرض زه جرم وکړم اودغه ګواکي ددوی دجرم په خلاف دي چي. ددوی جرم له شکه وتلی ثابت دی خکه چي: ﴿ وَأَنَا۠ بَرِيٓءٞ مِّمَّا تُجۡرِمُونَ ﴾ یې ویلي دي.

٥ - کله چي فرمایي: ﴿ وَٱصۡنَعِ ٱلۡفُلۡكَ بِأَعۡيُنِنَا ﴾ مرادله سترګو څخه حفظ، ساتنه اوپاملرنه ده لکه چي ځوک مسافرته وایي: (صحبتک عین الله) یعني دالله ساتنه اورعایت دي ملګری شه.!

---

(١) القرطبي ٩ / ٤٨

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


۲- ﴿ يَٰٓأَرۡضُ ٱبۡلَعِي مَآءَكِ وَيَٰسَمَآءُ أَقۡلِعِي ﴾ دلته د ځمکي او آسمان ترمینځ د طباق صنعت او د ﴿ ٱبۡلَعِي ﴾ او ﴿ أَقۡلِعِي ﴾ ترمینځ ناقص جناس دی چي هر دواړه له بدیعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

فائده:

ابن عباس رضی الله عنهما وايي: چي د الله جل جلاله پدې قول کي چي فرمايي: ﴿ إِنَّهُۥ لَيۡسَ مِنۡ أَهۡلِكَۖ ﴾ زوی يې له خپله نسله وو او د هيڅ پيغمبر مېرمني هم زنا نه ده کړې معنادا چي ستا د غه زوی له هغه اهله څخه نه دی کوم چي مايې درسره د ژغورني وعده کړې وه (۱)

زه وايم: چي آيت شريف د دې تنبيه ورکوي چي د نوح اهل هغه صالحان خلګ دي کوم چي د دين او شريعت اهل يې وو او څوک چي صلحيت نلري نجات نشي موندلای او د اهليت او خپلوي مدار په ديني نژدې والي او قرابت پوري اړه لري نه په نسبي نژدې والي پوري. ( او زه ژبارونکی بياد غه د سعدي رحمه الله بيت ورسره زياتوم چي:

(هزار خويش که بيگانه از خدا باشد * فدای يکتن بيګانه که آشنا باشد ).

أبي الاسلام لاأب لي سواه * اذا افتخروا بقيس او تميم

زما پلار اسلام او پرته له هغه بل پلار نلرم کله چي خلګ په قيس او تميم باندي وياړي.

لطيفه:

وايې چي يوه اعرابي دا آيت شريف چي: ﴿ وَقِيلَ يَٰٓأَرۡضُ ٱبۡلَعِي مَآءَكِ وَيَٰسَمَآءُ أَقۡلِعِي ﴾ ترپايه واورېدو نو بې وويل: د غه د مقتدر ذات کلام دی د مخلوق له کلام سره ورته والی نلري وايي چي: ابن مقفع هغه چي د خپل رخت ترټولو د فصاحت خاوند وو وپتېيله چي داسي کلام چي له قرآنکريم سره معارض (سيال) او ساری وي جوړکړي نو يو کلام يې منظوم او وپېيل چي توته توته يې تفصيل کړ او د سورتونو نمونه يې ورباندي کښېښودل خو يوه ورځ په لاري تېرېدو چي يو ماشوم د غه آيت لوستل نو ابن مقفع بيرته کورته راستون شو او ټول هغه څه يې وران کړل کوم چي د قرآن د سيالي لپاره يې تيار کړي وو او ويې ويل: زه شاهدي وايم چي داهسي لوړ کلام دی چي سيال يې هيڅکله نشي پيدا کېدلای او د غه د بشر کلام نه دی.

تنبيه:

د غه آيت د اعجاز د اسرارو وروستني پوړ ته ختلی دی زښته زيات نادر فوائد پکي نغښتي دي لفظي او معنوي دومره محاسن او ښکلاوي پکي شته چي قلم يې له ليکلو بې وسه دی د دې آيت د رازونو او لطائفو په هکله علامه ابوحيان رحمه الله (وطيب ثراه ) داسي ليکلي چي پدې کي د بديع د علم يوويشت ډوله صنعتونه او محسنات راغلي دي: مناسبت لکه پدې قول کي چي ﴿ ٱبۡلَعِي ... أَقۡلِعِي ﴾ بل مطابقت چي د أرض ، او سماء يادونه پکي شوي مجاز: چي مراد له اقلعي څخه باران د آسمان دی استعاره: په ﴿ أَقۡلِعِي ﴾ کي او اشاره: په ﴿ وَغِيضَ ٱلۡمَآءُ ﴾ کي څکه هغه ډېرو معناګانو ته اشاره ده تمثيل: پدې کلمه کي چي: ﴿ وَقُضِيَ ٱلۡأَمۡرُ ﴾ په امرسره يې د هلاک شوو د هلاکت او د ژغورل شوو د نجات تعبير وفرمايه بل ارداف دی: چي پدې کلام کي راد بره کېږي چي ﴿ وَٱسۡتَوَتۡ عَلَى ٱلۡجُودِيِّ ﴾ څکه د واستوت لفظ تام (بشپړ) دی خو وروسته د ردف په توګه ﴿ عَلَى

---

(۱) الطبري ۱۲/ ۵۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ ٱلْجُودِيِّ ﴾ کلمه راوړه شوي ترڅو په دغه مکان کي د تمکن په هکله د مبالغې قصد شوی وي. تعليل: پدې جمله کي چي ﴿ وَغِيضَ ٱلْمَآءُ ﴾ څکه دغه د استواء لپاره علت دی. احتراس: لکه داچي: ﴿ بُعْدًا لِّلْقَوْمِ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ اوداهمغسي بيا ددوی لپاره ذم هم دی. ايجاز: کوم چي کيسه په ډېرو لنډو الفاظو راوړل شوي خو زښته زياتي معاني پکي راغلي دي نوري بديعي ښکلاوي يې لکه: ايضاح، مساوات، حسن نسق، تقسيم، حسن البيان، تمکين، تجنيس، تسهيم، مقابله، تهذيب، او وصف ګڼلي دي.[1] پدې هکله د سيد قطب رحمه الله له في ظلال القرآن تفسير څخه غورچاڼ دلته يوڅو کرښي رانقل کوو چي هغه وايي: د نوح عليه السلام د کيسې دغه برخه دې لوري ته پام رااړوي چي د قريشي مشرکانو دريز د رسول الله صلى الله عليه وسلم په وړاندي کټ مټ لکه د نوح عليه السلام د قوم غوندي دی او داچي دوی به ويل: محمد صلى الله عليه وسلم دغه کيسې له ځانه جوړوي ﴿ أَمْ يَقُولُونَ ٱفْتَرَىٰهُ ۖ قُلْ إِنِ ٱفْتَرَيْتُهُۥ فَعَلَىَّ إِجْرَامِى وَأَنَا۠ بَرِىٓءٌ مِّمَّا تُجْرِمُونَ ﴾ نو افتراء خو يوډول جرم او ګناه دی د هغه وبال خو ما ته راجع دی له دې کبله داليري خبره ده چي زه پوهېږم داجرم دی او بيايې هم مرتکب شم؛ دغه اعتراضي اسلوب د کيسې له روانولو سره څه مخالفت څکه نلري چي کيسه ديو معلوم او څرګند غرض لپاره راوړل شوي ده او بيا د کيسې سياق پرمخ درومي او دوهمه پرده پورته کوي هغه داچي نوح عليه السلام دالله جل جلاله وحی اوري او امر يې مني چي ﴿ وَأُوحِىَ إِلَىٰ نُوحٍ أَنَّهُۥ لَن يُؤْمِنَ مِن قَوْمِكَ إِلَّا مَن قَدْ ءَامَنَ فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوا۟ يَفْعَلُونَ وَٱصْنَعِ ٱلْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا ﴾ يعني زموږ په ساتنه او لورينه يې جوړه کړه ﴿ وَلَا تُخَٰطِبْنِى فِى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓا۟ ۚ إِنَّهُم مُّغْرَقُونَ ﴾ د هغوی برخه ليک (سرنوشت) وټاکل شو نور بلنه او انذار پای ته ورسيد و مباحثه او جدال بشپړ شو. د کيسې له پردو څخه دريمه پرده هغه چي نوح عليه السلام ښکاره کوي چي د بېړۍ په جوړولو لګيا دی ﴿ وَيَصْنَعُ ٱلْفُلْكَ وَكُلَّمَا مَرَّ عَلَيْهِ مَلَأٌ مِّن قَوْمِهِۦ سَخِرُوا۟ مِنْهُ ۚ ﴾ دلته په مضارع سره تعبير کول دی چي پردې ته تازګي او ژوندي توب وربښي چي موږ هغه د خپل خيال په هنداره کي ددې تعبير په مرسته پخپلو سترګو وينو چي سرکښه متکبرين قوم يې ورباندي تېرېږي او په ملنډو مسخرو يې توهين کوي، وايي: هغه څوک چي دوی ته يې ويل: هغه الهي استازی دی خو نا ببره هغه نجار (ترکاڼ) شي او بېړۍ جوړوي څلورمه پرده هغه صحنه ښيي کومه چي دراتلو انتظاريې کېدو ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَ أَمْرُنَا وَفَارَ ٱلتَّنُّورُ قُلْنَا ٱحْمِلْ فِيهَا مِن كُلٍّ زَوْجَيْنِ ٱثْنَيْنِ ﴾ او بيا هغه هېښوونکي او ترهونکي ننداره راځي چي د طوفان شيبې دي ﴿ وَهِىَ تَجْرِى بِهِمْ فِى مَوْجٍ كَٱلْجِبَالِ ...... وَحَالَ بَيْنَهُمَا ٱلْمَوْجُ فَكَانَ مِنَ ٱلْمُغْرَقِينَ ﴾ دلته دوه ډوله وېرونکي او هولناک حالتونه له يوبل سره تاوېږي يو د طبيعت د پټي خولې هول او هيبت او بل د بشري نفس هول دی چي سره غبرګ ورکوي، او موږ وروسته له زرهاوو کالونو کله چي دغه منظر ته ګورو او ددغي پردې ننداره کوو له وېري او هول څخه رپېږو چي: ﴿ وَهِىَ تَجْرِى بِهِمْ فِى مَوْجٍ كَٱلْجِبَالِ ﴾ نوح هغه مشفق او مهربان پلار چي زوی ته پرله پسې ناري وهي خو زوی يې هغه مغرور زلمی چي د پلار په خبره غوږ نه ګروي دغه بلنه نه مني او په غرغنډو څپه ددوی دواړو ترمينځ

[1] النهر الماد من البحر ۵ / ۲۳۷

Bawar.net



دسترګو په رپ کي راپورته کېږي ، دوی سره بېلوي او خبره داسي فيصله کېږي چي: ﴿ وَحَالَ بَيْنَهُمَا الْمَوْجُ فَكَانَ مِنَ الْمُغْرَقِينَ ﴾ هرڅه پای ته رسي لکه چي بلنه او ځواب هېڅ هم نه وي پېښ شوي ، دغه د قرآن کريم په انځورنه کي يوه څرګنده نښه ده نور نو ګرندي بادونه کرارېږي چوپتيا حکومت کوي او فيصله صادرېږي ځمکي او آسمان ته د هوښيارانو په شان خطاب کېږي او هر يو يې سمدستي د الله امر مني ځمکه هم اوبه غورځوي او آسمان يې هم دروي ﴿ وَقِيلَ يَا أَرْضُ ابْلَعِي مَاءَكِ وَيَا سَمَاءُ أَقْلِعِي وَغِيضَ الْمَاءُ وَقُضِيَ الْأَمْرُ وَاسْتَوَتْ عَلَى الْجُودِيِّ ۖ وَقِيلَ بُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴾ صدق الله العظيم.

* * *

## الله تعالی فرمايي:

﴿ وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا ۚ قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا مُفْتَرُونَ ﴿٥٠﴾
يَا قَوْمِ لَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا ۖ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى الَّذِي فَطَرَنِي ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٥١﴾ وَيَا قَوْمِ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوا
إِلَيْهِ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا وَيَزِدْكُمْ قُوَّةً إِلَىٰ قُوَّتِكُمْ وَلَا تَتَوَلَّوْا مُجْرِمِينَ ﴿٥٢﴾ قَالُوا يَا هُودُ مَا
جِئْتَنَا بِبَيِّنَةٍ وَمَا نَحْنُ بِتَارِكِي آلِهَتِنَا عَن قَوْلِكَ وَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ ﴿٥٣﴾ إِن نَّقُولُ إِلَّا اعْتَرَاكَ بَعْضُ
آلِهَتِنَا بِسُوءٍ ۗ قَالَ إِنِّي أُشْهِدُ اللَّهَ وَاشْهَدُوا أَنِّي بَرِيءٌ مِّمَّا تُشْرِكُونَ ﴿٥٤﴾ مِن دُونِهِ ۖ فَكِيدُونِي جَمِيعًا ثُمَّ لَا تُنظِرُونِ ﴿٥٥﴾
إِنِّي تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ رَبِّي وَرَبِّكُم ۚ مَّا مِن دَابَّةٍ إِلَّا هُوَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا ۚ إِنَّ رَبِّي عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٥٦﴾ فَإِن تَوَلَّوْا فَقَدْ
أَبْلَغْتُكُم مَّا أُرْسِلْتُ بِهِ إِلَيْكُمْ ۚ وَيَسْتَخْلِفُ رَبِّي قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّونَهُ شَيْئًا ۚ إِنَّ رَبِّي عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَفِيظٌ ﴿٥٧﴾ وَلَمَّا جَاءَ
أَمْرُنَا نَجَّيْنَا هُودًا وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَنَجَّيْنَاهُم مِّنْ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴿٥٨﴾ وَتِلْكَ عَادٌ ۖ جَحَدُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَعَصَوْا
رُسُلَهُ وَاتَّبَعُوا أَمْرَ كُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ ﴿٥٩﴾ وَأُتْبِعُوا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ ۗ أَلَا إِنَّ عَادًا كَفَرُوا رَبَّهُمْ ۗ أَلَا بُعْدًا لِّعَادٍ
قَوْمِ هُودٍ ﴿٦٠﴾ ۞ وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَالِحًا ۚ قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ هُوَ أَنشَأَكُم مِّنَ الْأَرْضِ
وَاسْتَعْمَرَكُمْ فِيهَا فَاسْتَغْفِرُوهُ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ ۚ إِنَّ رَبِّي قَرِيبٌ مُّجِيبٌ ﴿٦١﴾ قَالُوا يَا صَالِحُ قَدْ كُنتَ فِينَا مَرْجُوًّا قَبْلَ هَٰذَا ۖ أَتَنْهَانَا
أَن نَّعْبُدَ مَا يَعْبُدُ آبَاؤُنَا وَإِنَّنَا لَفِي شَكٍّ مِّمَّا تَدْعُونَا إِلَيْهِ مُرِيبٍ ﴿٦٢﴾ قَالَ يَا قَوْمِ أَرَأَيْتُمْ إِن كُنتُ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّي
وَآتَانِي مِنْهُ رَحْمَةً فَمَن يَنصُرُنِي مِنَ اللَّهِ إِنْ عَصَيْتُهُ ۖ فَمَا تَزِيدُونَنِي غَيْرَ تَخْسِيرٍ ﴿٦٣﴾ وَيَا قَوْمِ هَٰذِهِ نَاقَةُ اللَّهِ
لَكُمْ آيَةً فَذَرُوهَا تَأْكُلْ فِي أَرْضِ اللَّهِ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابٌ قَرِيبٌ ﴿٦٤﴾ فَعَقَرُوهَا فَقَالَ تَمَتَّعُوا
فِي دَارِكُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ ۖ ذَٰلِكَ وَعْدٌ غَيْرُ مَكْذُوبٍ ﴿٦٥﴾ فَلَمَّا جَاءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا صَالِحًا وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ
بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَمِنْ خِزْيِ يَوْمِئِذٍ ۗ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْقَوِيُّ الْعَزِيزُ ﴿٦٦﴾ وَأَخَذَ الَّذِينَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ فَأَصْبَحُوا فِي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دِيَٰرِهِمْ جَٰثِمِينَ ﴿٦٧﴾ كَأَن لَّمْ يَغْنَوْا فِيهَآ ۗ أَلَآ إِنَّ ثَمُودَا۟ كَفَرُوا۟ رَبَّهُمْ ۗ أَلَا بُعْدًا لِّثَمُودَ ﴿٦٨﴾ وَلَقَدْ جَآءَتْ رُسُلُنَآ
إِبْرَٰهِيمَ بِٱلْبُشْرَىٰ قَالُوا۟ سَلَٰمًا ۖ قَالَ سَلَٰمٌ ۖ فَمَا لَبِثَ أَن جَآءَ بِعِجْلٍ حَنِيذٍ ﴿٦٩﴾ فَلَمَّا رَءَآ أَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ نَكِرَهُمْ
وَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً ۚ قَالُوا۟ لَا تَخَفْ إِنَّآ أُرْسِلْنَآ إِلَىٰ قَوْمِ لُوطٍ ﴿٧٠﴾ وَٱمْرَأَتُهُۥ قَآئِمَةٌ فَضَحِكَتْ فَبَشَّرْنَٰهَا بِإِسْحَٰقَ وَمِن
وَرَآءِ إِسْحَٰقَ يَعْقُوبَ ﴿٧١﴾ قَالَتْ يَٰوَيْلَتَىٰٓ ءَأَلِدُ وَأَنَا۠ عَجُوزٌ وَهَٰذَا بَعْلِى شَيْخًا ۖ إِنَّ هَٰذَا لَشَىْءٌ عَجِيبٌ ﴿٧٢﴾ قَالُوٓا۟
أَتَعْجَبِينَ مِنْ أَمْرِ ٱللَّهِ ۖ رَحْمَتُ ٱللَّهِ وَبَرَكَٰتُهُۥ عَلَيْكُمْ أَهْلَ ٱلْبَيْتِ ۚ إِنَّهُۥ حَمِيدٌ مَّجِيدٌ ﴿٧٣﴾ ﴾ هود: ۵۰ _ ۷۳

## مناسبت او تړاو:

دا دهغو کیسو دلړۍ دوهمه کړۍ ده چې الله پاک يې په دغه سورت کې يادوي داکيسه دهود عليه السلام له خپل قوم اوتبرسره دبلني کيسه ده چې په خوراتفصيل سره يې قرآن کريم يادونه کړي څکه نودغه سورت هم دهود عليه السلام په نامه نومول شوی دی وروسته دثمودیانو کیسه راوړي اوبيا دابراهيم عليه السلام اودپرښتو زيرۍ چې داسحاق عليه السلام په هکله يې ده ته ورکوي رااخلي اوداخلورمه کيسه ده.

## لغتونه:

(مدرارا) په شپبو شپبو ډېر باران ته ويل کېږي دغه دمبالغې له صيغو څخه دی ( اعتراک) تاته رسېدلی وو (ناصيتها) تندی ، وچولی اودسر دوېښتو دراټوکېدلو ځای ته ناصيه وايي (جبارا) متکبر( عنيد) سرغړونکی نه منونکی. ابوعبيده وايي چې عنيد اومعاند هغه په خلاف ولاړ معارض ته ويل کېږي ( استعمركم فيها) يعني تاسو يې آبادونکي اوسېدونکي دهغې ګرزولي ياست (تخسيرا ) ګمراهي اوله خيرڅخه ليري شوی (حنيذ) کباب شوی (نكرهم) هغوی يې ونه پيژندل ، ويل کېږي (نكره وانكره) په يوه معناراځي اوهغه داچې په غيرمانوس (نابلده ) شکل يې ووينې.

## تفسير:

﴿ وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا ۚ ﴾ اولېږلی وو موږ دعادقوم ته (قومي ) وروردوی هود (نبي ) ﴿ قَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥٓ ۖ ﴾ وويل: (هود ) اې قوم زماعبادت کوئ(يوازي) دالله (پرته له نوروالهه وواوبتانوڅخه چې ) نشته معبود(مستحق دعبادت ) غير له الله نه ﴿إِنْ أَنتُمْ إِلَّا مُفْتَرُونَ ﴾ نه يې تاسي مګردروغ تړونکي ياست (په عبادت کولو دغيرالله څکه له الله پرته بل معبودنشته ) ﴿ يَٰقَوْمِ لَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا ۖ ﴾ اې قومه زما نه غواړم له تاسي په دې تبليغ درسالت څه اجر اوثواب ) ﴿إِنْ أَجْرِىَ إِلَّا عَلَى ٱلَّذِى فَطَرَنِىٓ ۚ ﴾ ندی مزدوري (ثواب ) زمامګرپه هغه الله چې زه يې پيداکړی يم ﴿أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ آيانوتاسي عقل نه

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar net



کوئ (چي هغه څوک چي تاسو پرته له مزدوري غوښتلو دحق اوخیر لوري ته رابولي امین او نصیحت کونکی دی ؟ استفهام دانکار اوتکوني لپاره راغلی دی ﴿ وَيَٰقَوۡمِ ٱسۡتَغۡفِرُواْ رَبَّكُمۡ ثُمَّ تُوبُوٓاْ إِلَيۡهِ ﴾ او اې قومه زما ! مغفرت وغواړئ (له کفراو اشراک ) له خپل ربه بیارجوع وکړئ طرف ددغه رب ته (په اطاعت کولو اوثبات په دین او استقامت په ایمان اوتوحید باندي ) ﴿ يُرۡسِلِ ٱلسَّمَآءَ عَلَيۡكُم مِّدۡرَارٗا ﴾ چي وبه لېږي (الله له جانبه د ) آسمان پرتاسي (باران ) اورېدونکی (په شپېو شپېو پرله پسې ) روایت کاوه شي چي له عادیانو څخه درې کاله باران منع شوی ؤ او آن تردې چي دمرګ کومي ته نژدې شوي وو نوهودعلیه السلام دوی ته دتوبې اواستغفار امروکړ اودباران داورښت وعده (ژمنه ) یې ورسره وکړه په آیت شریف کي ددې دلیل شته چي توبه او استغفار درحمت او بارانونو داورېدلو سبب کېږي ﴿ وَيَزِدۡكُمۡ قُوَّةً إِلَىٰ قُوَّتِكُمۡ ﴾ (اودرزیات به کړي الله قوت پرقوت ستاسي) یعني ستاسو په عزت او ویاړبه نورعزت اوافتخار دپاسه درکړي. مجاهدوایي : معناداچي ستاسوپه شدت به نورشدت درزیات کړي ([1]) ځکه دوی سخت قوت اوشدت درلود آن تردې چي ویل به یې : ﴿ مَنۡ أَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً ﴾ [فصلت ۱۵] ﴿ وَلَا تَتَوَلَّوۡاْ مُجۡرِمِينَ ﴾ اومخ مه ګرزوئ تاسي (زماله دعوت نه ) حال داچي ګنهګاران اوسېږئ ) په ګناهونو اوجرمونو باندي اصرار کوئ ) ﴿ قَالُواْ يَٰهُودُ مَا جِئۡتَنَا بِبَيِّنَةٖ ﴾ وویل : دوی اې هوده ! تاموږته ظاهره دلیل نه دی راوړی (چي ستادنبوت تصدیق کوي ) الوسي وایي : دوی دغه خبره دزیات عنادله مخي او داچي دحق له لیدلو څخه ړانده وو کوله ([2]) ﴿ وَمَا نَحۡنُ بِتَارِكِيٓ ءَالِهَتِنَا عَن قَوۡلِكَ ﴾ اونه یو موږ پرېښودونکي د(عبادت د ) بتانو خپلوله جهته دوینا ستا ﴿ وَمَا نَحۡنُ لَكَ بِمُؤۡمِنِينَ ﴾ اونه یو موږ پرتاباندي ایمان راوړونکي (چي ستا نبوت اورسالت ومنو دغه خبره دوی دهغه دناهیلي کولو لپاره ویله اوبیایې هغه په لېونتوب او آزاري باندي وستایو ویې ویل : ﴿ إِن نَّقُولُ إِلَّا ٱعۡتَرَىٰكَ بَعۡضُ ءَالِهَتِنَا بِسُوٓءٖ ﴾ نه وایو موږ مګر (داوایو ) چي رسولی دي تاته ځینو خدایانو زموږ څه ضرر (لېونتوب ځکه چي تاهغوی ته بېکنځل کړي اوموږ دي ددوی له عبادت څخه منع کړي یو ؛ زمخشري وایي : چي ددوی ړومبني ځوابونه پدې دلالت کوي چي دوی جفاکارقوم وو سخت زړونه یې درلودل پندیې نه اورېدو اونه یې دهدایت لپاره مینه لرله خودا وروستۍ خبره یې بیا داڅرګندوي چي هغوی ښخي زیات بې عقل اوناپوهان هم وو چي دوی په دبروداسي ګمان کاووچي دغه کسات اخیستونکي او ضرر رسونکي دي ([3]) ﴿ قَالَ إِنِّيٓ أُشۡهِدُ ٱللَّهَ وَٱشۡهَدُوٓاْ أَنِّي بَرِيٓءٞ مِّمَّا تُشۡرِكُونَ مِن دُونِهِۦۖ ﴾ نووویل هود: بېشکه زه شاهدکوم الله اوشاهدان شی تاسي (هم )چي بېشکه زه بېزاریم له هغو خدایانو چي تاسي یې له الله سره (په عبادت کي ) شریکوئ پرته له الله (نور اوثان اوبتان ) ﴿ فَكِيدُونِي جَمِيعٗا ثُمَّ لَا تُنظِرُونِ ﴾ نوحیلې جوړي کړئ تاسي ټول (دهلاک ) زماته بیا ماته مهلت مه راکوئ (یوه شېبه ) ابوالسعود وایي : چي دغه ترټولو ستره معجزه ده هغه ایکي یوازي خو ددوی خورازیات سرکښه قوي اوغښتلي ټولۍ وه له دې سره سره بیاهم هودعلیه السلام دوی سپک وګڼل اوددوی دبتانو سپکاوی یې کاوو اودوی یې مبارزې ته راوبلل خودوی هیڅ هم ونشوکړای اوعجز یې تر

---

[1] الطبري ۱۲/ ۵۸

[2] الالوسي ۱۲/ ۸۱

[3] الکشاف ۲/ ۴۰۳

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



لمرروښانه څرګندشو(۱) زمخشري وايي: چي دا خوراستره دقوت ننبه ده چي يوازي يوسړی دټول هغه امت په وړاندي چي هغوی ويني تويولو ته تړي ناست وي او ټول په يوه سلا اويوه خوله له ده سره جنګېږي بياهم په ميدان دربېږي دغه دهغه په خپل رب پوخ باور اوټينګ ايمان څرګندوي چي الله پاک به ارو مرو ده ته نجات ورکوي او د دوی خونخواري منګولي به هيڅکله په ده ونه لګېږي اولکه چي نوح عليه السلام ويل: ﴿ فَأَجْمِعُوٓاْ أَمْرَكُمْ وَشُرَكَآءَكُمْ ﴾ (۲) ﴿ إِنِّي تَوَكَّلْتُ عَلَى ٱللَّهِ رَبِّي وَرَبِّكُم ﴾ (بېشکه ماتوکل کړی دی پر(هغه) الله چي رب زمااورب ستاسي دی ) يعني ماالله ته پناه وروړي اودخپل کار سپارښتنه مي هغه ته کړي ده چي زما اوستاسي مالک دی ﴿ مَّا مِن دَآبَّةٍ إِلَّا هُوَ ءَاخِذٌۢ بِنَاصِيَتِهَآ ﴾ نشته هيڅ تلونکی (ذي روح خوځېدونکی په ځمکه کي مګرهم دغه (الله) دی نيونکی دتندي دده يعني ټول دالله په پاچهي اوسلطان کي دی اوداجمله دهودعليه السلام دتوکل دقوت لپاره علت دی چي ګواکي هغه په مخلوق باندي پروانکوي ﴿ إِنَّ رَبِّي عَلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾ (بېشکه رب زماپه لاره سمه دی ) يعني بېشکه زما رب عادل دی محسن ته په احسان دهغه جزاورکوي او ګنهګارته له ګناه سره سمه سزا ورکوي په هيچاظلم نکوي. ﴿ فَإِن تَوَلَّوْاْ فَقَدْ أَبْلَغْتُكُم مَّآ أُرْسِلْتُ بِهِۦٓ إِلَيْكُمْ ﴾ نوکه مخ واړوئ تاسي (اې زماقومه له منلو ددعوت زماڅخه) نوپه تحقيق رسولی دی ماهغه پيغام چي رالېږلی شوی وم په هغه سره تاسوته (اونشته په پيغمبرباندي مګر رسېدل اوبلاغ دی ) ﴿ وَيَسْتَخْلِفُ رَبِّي قَوْمًا غَيْرَكُمْ ﴾ (نوهلاک به کړي تاسو ) اوخليفه به وګرزوي رب زما(ستاسي په ځای به راولي) يوقوم غير له تاسي نه (پدې کي سخت وعيددی) ﴿ وَلَا تَضُرُّونَهُۥ شَيْـًٔا ﴾ اوضرر به ونه رسوئ تاسي الله ته دهيڅ شي (په شريک نيولو سره) ﴿ إِنَّ رَبِّي عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَفِيظٌ ﴾ بېشکه رب زماپه هرڅيزښه ساتونکی (شاهد ) دی هغه ماستاسوله شر، مکرڅخه ژغوري ﴿ وَلَمَّا جَآءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا هُودًا وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَعَهُۥ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا ﴾ اوکله چي راغی حکم زموږ (په عذاب) نجات مو ورکړ هوداوهغه کسانوته چي ايمان يې راوړی وو له ده سره په (لوی) رحمت سره له نزده خپله (اوپه سبب دنعمت زموږ پردوی باندي ) ﴿ وَنَجَّيْنَٰهُم مِّنْ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴾ او وژغورل موږ دوی له سخته عذابه (چي هغه هلاکونکی طوفاني باد اوسېلۍ وه کورونه يې وړانول داسي (زهرناک ) بادوو چي په پوزو به يې ننوت اوترلاندني مخرج به يې وتل دالله دښمنان به يې هسي پرمخي غورځول ته به وادخرماله بېخه ايستلي شوي ونوتنې دي ﴿ وَتِلْكَ عَادٌ جَحَدُواْ بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِمْ ﴾ اودغه عاديان دي (اشاره ددوی آثاروانښانونوته ده ) چي منکران شوي وو په آيتونو درب ددوی (وګورئ ورته چي څه وربېښ شول ؟ هغه وخت چي په الله کافران شول دالله آيات يې پخپلو ځانونو اوآفاقو کي نه ليدل هغه ايات چي دالله پر وحدانيت يې دلالت کاوو ) ﴿ وَعَصَوْاْ رُسُلَهُۥ ﴾ اونافرماني کړي وه دوی له رسولانوددغه الله (چي هودعليه السلام وو) دجمعي په صيغه يې له دې کبله راووړچي ددوی دحال فظاعت وښيي اوددوی دکفراوعناد بشپړوالی څرګند کړي يعني ددوی عصيان له هود عليه السلام حځه لکه چي له ټولو پخوانيواوراتلونکوپيغمبرانو څخه يې سرغړونه کړي وي ځکه انبياء ټول دتوحيد په کلمه باندي يوموټی

(۱) ابوالسعود ۳/ ۱۵
(۲) الکشاف ۲/ ۴۰۳

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



او متحد دي. ﴿ وَٱتَّبَعُوٓاْ أَمۡرَ كُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٖ ﴾ او تابع شوي وو دوی د حکم د هر سرکښه عناد والا (هغه چي له حق څخه کوږ او حق يې نه مانو مراد څني هغه د دوي مشران اولويان دي ) ﴿ وَأُتۡبِعُواْ فِي هَٰذِهِ ٱلدُّنۡيَا لَعۡنَةٗ وَيَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِۗ ﴾ او ولېږلی شو په دوی پسي په دغه دنيا کي لعنت (د الله له رحمت څخه په دنيا کي و شړل شول ) او په ورځ د قيامت کي (هم لعنت ورباندي دی ) امام رازي رحمه الله وايي: چي لعنت له دوی سره جوخت سپور ( مرادف) او په آخرت کي ملګری دی او لعنت په لغت کي له هر ډول خير او د الله له رحمت څخه شړلو ته وايي (۱) ﴿ أَلَآ إِنَّ عَادٗا كَفَرُواْ رَبَّهُمۡۗ ﴾ (خبردار بېشکه عاديان کافران شوي وو په رب خپل) دغه د دوی د کفر بدي او تشنيع ده چي د تنبيه په حرف سره يې څني يادونه وکړه او د عاد نوم يې تکرار کړ يعني خبردار چي دوی په خپل رب کافران او له هغه پرته د بل چا عبادت يې کاوو د الله له نعمت څخه انکار او د الله د پيغمبر يې تکذيب کاوو نو د دنيا او آخرت د لعنت وړ او مستحق وګرزېدل ﴿ أَلَا بُعۡدٗا لِّعَادٖ قَوۡمِ هُودٖ ﴾ (بيا واورئ خبردار شئ چي ليري والی دی ( له رحمت د الله) عاد قوم د هود ته) يعني الله هغوی له خير څخه ليري او يو مخه ايزه تول هلاک کړي دغه جمله دعائيه يعني د هلاکت او لعنت لپاره ښېراده ﴿ وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمۡ صَٰلِحٗاۚ ﴾ (او لېږلی وو موږ) ثموديانو ته (قومي) ورور د دوی صالح عليه السلام ﴿ قَالَ يَٰقَوۡمِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنۡ إِلَٰهٍ غَيۡرُهُۥۖ ﴾ وې ويل: اي قومه! زما عبادت کوئ (يو ازي) د الله نشته تاسي ته هيڅ برحق معبود غير له ده الله ) نه ﴿ هُوَ أَنشَأَكُم مِّنَ ٱلۡأَرۡضِ وَٱسۡتَعۡمَرَكُمۡ فِيهَا ﴾ هم دغه الله پيدا کړي ياست تاسي له ځمکي (چي آدم يې ترې پيدا او بيا نور خلک يې د ده له نطفې پيدا کړل او تاسي يې د ځمکي د آبادولو او هستوګني لپاره وګمارلی ﴿ فَٱسۡتَغۡفِرُوهُ ثُمَّ تُوبُوٓاْ إِلَيۡهِۚ ﴾ نو مغفرت وغواړئ له ده څخه د شرک او بيا رجوع وکړئ ده ته (په طاعت سره) ﴿ إِنَّ رَبِّي قَرِيبٞ مُّجِيبٞ ﴾ بېشکه رب زما ډېر نږدې دی (په رحمت) ښه قبلونکی د دعا دی ﴿ قَالُواْ يَٰصَٰلِحُ قَدۡ كُنتَ فِينَا مَرۡجُوّٗا قَبۡلَ هَٰذَآۖ ﴾ (وويل: ثموديانو اي صالحه! په تحقيق ته په موږ کي اميد کړی شوی وې پخوا له دې نه ) يعني موږ پخوا دا اميد لرل چي ته به په موږ کي سرداريې مګر کله چي دي دغه ويناوکړه موږ ناهيلي شو ﴿ أَتَنۡهَىٰنَآ أَن نَّعۡبُدَ مَا يَعۡبُدُ ءَابَآؤُنَا ﴾ آيا ته موله دې منع کوې چي موږ د هغو بتانو عبادت وکړو چي عبادت به يې کاوو پلرونو زموږ؟ ﴿ وَإِنَّنَا لَفِي شَكّٖ مِّمَّا تَدۡعُونَآ إِلَيۡهِ مُرِيبٖ ﴾ (او بېشکه موږ خامخا په شک کي لوېدلي يو له هغه (توحيده) چي ته بولې موږ هغه ته داسي شک چي زموږ زړونه په اضطراب کي اچوي) يعني ستا کار شکمن او د تهمت نه ډک دی ﴿ قَالَ يَٰقَوۡمِ أَرَءَيۡتُمۡ إِن كُنتُ عَلَىٰ بَيِّنَةٖ مِّن رَّبِّي ﴾ وويل: صالح اي قومه زما! آيا وينئ تاسي يعني خبر راکړئ ما ته که يم زه (په برهان ، دليل) ښکاره له جانبه د رب خپل نه ﴿ وَءَاتَىٰنِي مِنۡهُ رَحۡمَةٗ ﴾ او راکړی يې وي ما ته له نزده خپله (نبوت او رسالت ﴿ فَمَن يَنصُرُنِي مِنَ ٱللَّهِ إِنۡ عَصَيۡتُهُۥۖ ﴾ نو څوک به له ماسره مدد وکړي (خلاص به مي کړي ) له عذابه د الله که نافرماني وکړم زه له ده نه

(۱) الفخر الرازي ۱۸ / ۱۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



؟ ﴿ فَمَا تَزِيدُونَنِي غَيْرَ تَخْسِيرٍ ﴾ (نو نه به زياتوي ماته غير له نقصانه يعني ستاسو سره موافقت او له الله څخه عصيان به ماته پر ته له گمراهي او له خير څخه د ليري کېدلو بل څه رازيات نکړي. زمخشري وايي: چي د ﴿ غَيْرَ تَخْسِيرٍ ﴾ معنا داچي تاسو زما عملونه ابته کوئ او باطلوئ يي ﴿ وَيَٰقَوْمِ هَٰذِهِۦ نَاقَةُ ٱللَّهِ لَكُمْ ءَايَةً فَذَرُوهَا تَأْكُلْ فِىٓ أَرْضِ ٱللَّهِ ﴾ او اي قومه زما! دغه اوښه دالله ده تاسي ته معجزه ) پرېږدئ دا (اوښه) چي خوري (څري) په ځمکه دالله کي ) داوښي نسبت کول الله ته د تشريف لپاره دی ځکه هغه اوښه دالله په قدرت له سختي کرکندي د بري څخه ددوی له غوښتني سره سمه پيدا شوي وه يعني دغه اوښه ستاسو لپاره معجزه ده چي زما د رښتنولی شاهدي وايي ﴿ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوٓءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابٌ قَرِيبٌ ﴾ او لاس مه وروړئ دي ته په بدي (او که موبدي ور ورسوله ) نو تاسي به نژدې عذاب ونيسي (مهلت به درنکړی شي ) ﴿ فَعَقَرُوهَا فَقَالَ تَمَتَّعُوا۟ فِى دَارِكُمْ ثَلَٰثَةَ أَيَّامٍ ﴾ پس زخمي او مړه يي کړه هغه (اوښه ) نو وويل: صالح فائده واخلئ تاسي په کورونو خپلو کي درې ورځي بيا به هلاکېږئ ) قرطبي وايي: چي ښېشکه اوښه ځيني کسانو ووژله خوټولو ته يي نسبت وکړ هغه پدې چي د ټولو خوښه وه دوی هغه د چهارشنبې په ورځ ووژله او درې شپې چي پنجشنبه ، جمعه او شنبه وه دوی واوسېدل او ديکشنبې په ورځ ورته عذاب راغی ﴿ ذَٰلِكَ وَعْدٌ غَيْرُ مَكْذُوبٍ ﴾ دا (راتگ دعذاب ) داسي دی چي هيڅ دروغ پکي نشته ﴿ فَلَمَّا جَآءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا صَٰلِحًا وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مَعَهُۥ ﴾ بيا کله چي راغی امر (حکم دعذاب) زموږ نو موږ نجات ورکړ صالح او هغو کسانو ته چي له ده سره يي ايمان راوړی وو ﴿ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا ﴾ په رحمت سره له نزده خپله ﴿ وَمِنْ خِزْىِ يَوْمِئِذٍ ﴾ ( او له رسوايي ددغي ورځي (او ذلت څخه يي ) ﴿ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ ٱلْقَوِىُّ ٱلْعَزِيزُ ﴾ (ښېشکه رب ستا هم دی قوي او ښه غالب ) يعني قوي دی په نيولو سره او زورور دی په پاچهي کي هيڅوک په ده برلاسی کېدای نشي ﴿ وَأَخَذَ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ ٱلصَّيْحَةُ فَأَصْبَحُوا۟ فِى دِيَٰرِهِمْ جَٰثِمِينَ ﴾ او ونيول هغو کسانو لره چي ظلم يي کړی وو پر ځانو خپلو سره چيغي (سختي له آسمانه چي زړونه يي چودل ) بيا وگرزېدل دوی پخپلو کورونوکي مړه وچ کلک (چي خوځېدلی نشوای ) پرمخی په ځنگنونو پراته وو (لکه چي مرغه راپرېوزي ) ﴿ كَأَن لَّمْ يَغْنَوْا۟ فِيهَآ ﴾ لکه چي دوی په کورونو کي نه وو اوسېدلي (نه يي آباد کړي وو ) ﴿ أَلَآ إِنَّ ثَمُودَا۟ كَفَرُوا۟ رَبَّهُمْ أَلَا بُعْدًا لِّثَمُودَ ﴾ واورئ، خبردار شئ چي ښېشکه ثموديان کافران شوي وو په رب خپل ، واورئ ، خبردار شئ ليري والی دی له رحمته ثموديانو ته ( يعني پردوی لعنت ، هلاکت او ليري والی دی )

﴿ وَلَقَدْ جَآءَتْ رُسُلُنَآ إِبْرَٰهِيمَ بِٱلْبُشْرَىٰ ﴾ (او هرومرو په تحقيق راغلي وو رسولان زموږ (پرښتي ) ابراهيم ته په زېري ) دغه خلورمه کيسه ده چي دلوط عليه السلام او دقوم په هکله يي بيان کوي هغه قوم چي دده تکذيب يي کاوو او دغو ملائکو ابراهيم عليه السلام ته په اسحاق عليه السلام باندي زېری هم راوړی وو (١) قرطبي وايي: چي کله الله پاک دلوط عليه السلام دقوم دهلاکت لپاره ملائک راواستول نو ابراهيم عليه السلام ته راغلو هغه

(١) (بشری ) دزوی زېری چابيا ويلي چي دلوط دقوم دهلاکت زېری خو زمخشري وايي چي: دزوی زېری ظاهر او څرگند دی.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



درباندي دمېلمنو ګمان وکړ ملائک حضرت جبريل ، ميکائيل او اسرافيل عليهم السلام وو دغه دابن عباس رضی الله عنه قول او سدي وايي چي يو ولس پرښتي وې چي دښکلو ځوانانو په بڼه راغلي وې ﴿ قَالُوا۟ سَلَـٰمًا ﴾ (١) وويل: ملائکو سلام (اچوو پرتاسي په سلام اچولو سره ) ﴿ قَالَ سَلَـٰمٌ ﴾ وويل: ابراهيم سلام (دي وي پر تاسو ) ﴿ فَمَا لَبِثَ أَن جَآءَ بِعِجْلٍ حَنِيذٍ ﴾ نو ځنډ يې ونکړ چي (دوی ته ) يې وريت (کباب ) شوی خوسی راووړ (او وروته يې کښېښود. زمخشري وايې: چي (عجل) دغوا زوی ' خوسي ته وايي او هغه ته (حسيل ) هم وايې دابراهيم عليه السلام مالداري غوايان وود ﴿ حَنِيذٍ ﴾ معناداچي په اورسرې شوو ډبرو باندي کباب شوی وو او ځابياويلي چي د(حنيذ ) معناداچي غوړي څني څڅېدل او دادخوسي په چاغښت باندي دلالت کوي (٢) ﴿ فَلَمَّا رَءَآ أَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ نَكِرَهُمْ ﴾ اوکله چي وليدل ابراهيم داچي لاسونه يې ( غوښي ته ) نه رسېږي نونابلديې وګڼل (داپېښه ورته ناخوښه ځرګنده شوه ) ﴿ وَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً ﴾ او په زړه کي يې راوسته له دوی نه وېره. قتاده وايې: چي په عربو کي داسي دود (دستور ) وو چي څوک به ورکره راغلل خودکوربه له دوی څخه به يې څه نه خوړل کوربه پوهېدو چي دغه مېلمانه دخيرلپاره ندي راغلي ځکه ابراهيم عليه السلام پټ په زړه کي ددوی له شرڅخه وېرېدو (٣) ﴿ قَالُوا۟ لَا تَخَفْ إِنَّآ أُرْسِلْنَآ إِلَىٰ قَوْمِ لُوطٍ ﴾ (وويل: ملائکو چي مه وېرېږه ! موږ بېشکه لېږلي شوي يو قوم دلوط ته (چي هلاک يې کړو ) يعني ته مه وېرېږه موږ دالله ملائک يو خوراک نه کوو اودلوط عليه السلام دقوم دهلاکت لپاره رااستول شوي يو ﴿ وَٱمْرَأَتُهُۥ قَآئِمَةٌ فَضَحِكَتْ ﴾ او مېرمن دده (ابراهيم ) ولاړه وه نو وېې خندل ؛ دهغې نوم ساره اوترپردې هاخوا ولاړه وه کله چي يې دلوط عليه السلام دقوم دهلاکت واورېدل نوله خوښي يې وخندل ﴿ فَبَشَّرْنَـٰهَا بِإِسْحَـٰقَ وَمِن وَرَآءِ إِسْحَـٰقَ يَعْقُوبَ ﴾ نو زېری ورکړ موږ هغې ته (دپرښتو په ژبه په تولد ) داسحاق اوبيا پس له اسحاقه په (تولد دلمسي ددې ) يعقوب ﴿ قَالَتْ يَـٰوَيْلَتَىٰٓ ءَأَلِدُ وَأَنَا۠ عَجُوزٌ وَهَـٰذَا بَعْلِى شَيْخًا ﴾ نو وويل: هغې ( ساره ) اې زما تعجب آيا زېږومه زه (زوی ) حال داچي زه زړه يم او دغه (ابراهيم ) مېړه زمازوړ دی (څرنګه به مو اولاد وشي ؟ ) ﴿ إِنَّ هَـٰذَا لَشَىْءٌ عَجِيبٌ ﴾ بېشکه چي دغه (تولد ) يوشی دی ډېرعجيب (چي په عادت کي پېښ شوی ندی. مجاهد وايي: چي ددې عمر په دغه وخت کي نه نوي (٩٩ ) کاله او دابراهيم عليه السلام عمر يو سل اوشل کاله (١٢٠) وو (٤) ﴿ قَالُوٓا۟ أَتَعْجَبِينَ مِنْ أَمْرِ ٱللَّهِ ﴾ (وويل: دغو (ملائکو ) آيا تعجب کوې له امره دالله ؟ ) يعني آيا ته دالله له قدرت اوحکمت څخه تعجب کوې چي هغه څرنګه له بوډاګانو مېړه اومېرمني زوی پيدا کوي ؟ دغه خوڅه دتعجب خبره نه ده ﴿ رَحْمَتُ ٱللَّهِ وَبَرَكَـٰتُهُۥ عَلَيْكُمْ أَهْلَ

---

(١) القرطبي ٩ / ٢٣

(٢) الکشاف ٢ / ٤٠٩

(٣) الطبري ١٢ / ٧١

(٤) البيضاوي ٢٥٣

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ٱلْبَيْتِ﴾ رحمت دالله اوبرکتونه دده دي وي پرتاسي اې خاوندانو دکورونو دابراهیم ۱) ﴿إِنَّهُۥ حَمِيدٌ مَّجِيدٌ﴾ بېشکه چي الله ښه ستايلی شوی دلويې خاونددی (په ذات اوصفاتوکي يعني الله دستايني اوتمجيد ور اومستحق دی چي بندګان يې وستايي اودغه لکه چي دزېري لپاره تعليل راغلی وي.

## بلاغت:

۱- پدې کلام کي چي الله فرمايي: ﴿يُرْسِلِ ٱلسَّمَآءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا﴾ مرادله آسمان څخه باران دی اودغه مرسل مجازدی څکه چي باران له آسمانه رااوري ذکر دمحل اومرادخنی حال اومدرار بيا دمبالغې لپاره راغلی دی

۲- ﴿فَكِيدُونِى جَمِيعًا﴾ دلته امرلپاره دتعجيز راغلی دی.

۳- کله چي الله فرمايي: ﴿مَّا مِن دَآبَّةٍ إِلَّا هُوَ ءَاخِذٌۢ بِنَاصِيَتِهَآ﴾ دلته تمثيليه استعاره ده مخلوق يې هغه چي دالله په قدرت ، واک اوملکيت کي دی له هغه څه سره مشابه کړی کوم چي زورور يې ترمهار نيسي بيايې لکه بندي (اسير) آس اونورچي له ناصيې نيولی بېول کېږي.

۴- ﴿إِنَّ رَبِّى عَلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ دلته دالله دعدل له کمال اوبشپړ توب څخه کنايه راغلې يعني الله دبندګانو په ټولو امورو خبردار او هيڅ څوک خني خلاصېدلای نشي څوک چي الله ته پناه ورورې بيايې هيڅوک خورولای نشي.

۵- پدې جمله کي چي الله تعالی فرمايې: ﴿وَلَمَّا جَآءَ أَمْرُنَا﴾ امرله عذاب څخه کنايه ده.

۶- ﴿نَجَّيْنَا هُودًا... وَنَجَّيْنَٰهُم مِّنْ عَذَابٍ غَلِيظٍ﴾ تکرار دنجات دکلمې ددې لپاره دی چي دهرسخت او مشکل کار په وړاندي دي آسانه نه دي دغه ته اطناب وايې.

۷- ﴿وَعَصَوْا۟ رُسُلَهُۥ﴾ يعني دوی دخپل پيغمبر(هود) له امرڅخه غاړه غړولي وه اوپدې کي ددوی دحال فضاعت معلومېږي لکه چي دوی له ټولو پيغمبرانو څخه عصيان کړی وي هغه چي پخواتېرشوي ، ياوروسته راځي او دې ته مرسل مجاز وايې چي اراده دکل شوي اومرادخني جزوي.

۸- ﴿أَلَآ إِنَّ عَادًا ... أَلَا بُعْدًا لِّعَادٍ﴾ دلته دتنبيه ادات(توري) اوهمداراز د(عاد) لفظ مکرر راوړل شوی ترڅودوی دحال په هيبت دلالت وکړي.

## تنبيه:

هودعليه السلام هسي ونه ويل چي (انی اشهد الله واشهدکم) بلکه هسي يې وويل چي: ﴿إِنِّىٓ أُشْهِدُ ٱللَّهَ وَٱشْهَدُوٓا۟ أَنِّى بَرِىٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُونَ﴾ داددې لپاره چي د دوو ګواهيو (شهادتونو) مساوات رانشي څکه دالله ﷻ شهادت اودبنده شهادت خورا سره زيات توپيرلري اوچيري سره يوځای برابرېدلای شي ؟

* * *

الله تعالی فرمايې:

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ فَلَمَّا ذَهَبَ عَنْ إِبْرَٰهِيمَ ٱلرَّوْعُ وَجَآءَتْهُ ٱلْبُشْرَىٰ يُجَٰدِلُنَا فِى قَوْمِ لُوطٍ ﴿٧٤﴾ إِنَّ إِبْرَٰهِيمَ لَحَلِيمٌ أَوَّٰهٌ مُّنِيبٌ ﴿٧٥﴾
يَٰٓإِبْرَٰهِيمُ أَعْرِضْ عَنْ هَٰذَآ ۖ إِنَّهُۥ قَدْ جَآءَ أَمْرُ رَبِّكَ ۖ وَإِنَّهُمْ ءَاتِيهِمْ عَذَابٌ غَيْرُ مَرْدُودٍ ﴿٧٦﴾ وَلَمَّا جَآءَتْ رُسُلُنَا لُوطًا سِىٓءَ
بِهِمْ وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا وَقَالَ هَٰذَا يَوْمٌ عَصِيبٌ ﴿٧٧﴾ وَجَآءَهُۥ قَوْمُهُۥ يُهْرَعُونَ إِلَيْهِ وَمِن قَبْلُ كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ٱلسَّيِّـَٔاتِ ۚ
قَالَ يَٰقَوْمِ هَٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِى هُنَّ أَطْهَرُ لَكُمْ ۖ فَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَلَا تُخْزُونِ فِى ضَيْفِىٓ ۖ أَلَيْسَ مِنكُمْ رَجُلٌ رَّشِيدٌ ﴿٧٨﴾ قَالُوا۟ لَقَدْ
عَلِمْتَ مَا لَنَا فِى بَنَاتِكَ مِنْ حَقٍّ وَإِنَّكَ لَتَعْلَمُ مَا نُرِيدُ ﴿٧٩﴾ قَالَ لَوْ أَنَّ لِى بِكُمْ قُوَّةً أَوْ ءَاوِىٓ إِلَىٰ رُكْنٍ شَدِيدٍ ﴿٨٠﴾ قَالُوا۟ يَٰلُوطُ
إِنَّا رُسُلُ رَبِّكَ لَن يَصِلُوٓا۟ إِلَيْكَ ۖ فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ ٱلَّيْلِ وَلَا يَلْتَفِتْ مِنكُمْ أَحَدٌ إِلَّا ٱمْرَأَتَكَ ۖ إِنَّهُۥ مُصِيبُهَا مَآ
أَصَابَهُمْ ۚ إِنَّ مَوْعِدَهُمُ ٱلصُّبْحُ ۚ أَلَيْسَ ٱلصُّبْحُ بِقَرِيبٍ ﴿٨١﴾ فَلَمَّا جَآءَ أَمْرُنَا جَعَلْنَا عَٰلِيَهَا سَافِلَهَا وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهَا
حِجَارَةً مِّن سِجِّيلٍ مَّنضُودٍ ﴿٨٢﴾ مُّسَوَّمَةً عِندَ رَبِّكَ ۖ وَمَا هِىَ مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ بِبَعِيدٍ ﴿٨٣﴾ ۞ وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ
شُعَيْبًا ۚ قَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥ ۖ وَلَا تَنقُصُوا۟ ٱلْمِكْيَالَ وَٱلْمِيزَانَ ۚ إِنِّىٓ أَرَىٰكُم بِخَيْرٍ
وَإِنِّىٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ مُّحِيطٍ ﴿٨٤﴾ وَيَٰقَوْمِ أَوْفُوا۟ ٱلْمِكْيَالَ وَٱلْمِيزَانَ بِٱلْقِسْطِ ۖ وَلَا تَبْخَسُوا۟
ٱلنَّاسَ أَشْيَآءَهُمْ وَلَا تَعْثَوْا۟ فِى ٱلْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴿٨٥﴾ بَقِيَّتُ ٱللَّهِ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ۚ وَمَآ أَنَا۠ عَلَيْكُم
بِحَفِيظٍ ﴿٨٦﴾ قَالُوا۟ يَٰشُعَيْبُ أَصَلَوٰتُكَ تَأْمُرُكَ أَن نَّتْرُكَ مَا يَعْبُدُ ءَابَآؤُنَآ أَوْ أَن نَّفْعَلَ فِىٓ أَمْوَٰلِنَا مَا نَشَٰٓؤُا۟ ۖ
إِنَّكَ لَأَنتَ ٱلْحَلِيمُ ٱلرَّشِيدُ ﴿٨٧﴾ قَالَ يَٰقَوْمِ أَرَءَيْتُمْ إِن كُنتُ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّى وَرَزَقَنِى مِنْهُ رِزْقًا حَسَنًا ۚ وَمَآ أُرِيدُ
أَنْ أُخَالِفَكُمْ إِلَىٰ مَآ أَنْهَىٰكُمْ عَنْهُ ۚ إِنْ أُرِيدُ إِلَّا ٱلْإِصْلَٰحَ مَا ٱسْتَطَعْتُ ۚ وَمَا تَوْفِيقِىٓ إِلَّا بِٱللَّهِ ۚ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ
﴿٨٨﴾ وَيَٰقَوْمِ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شِقَاقِىٓ أَن يُصِيبَكُم مِّثْلُ مَآ أَصَابَ قَوْمَ نُوحٍ أَوْ قَوْمَ هُودٍ أَوْ قَوْمَ صَٰلِحٍ ۚ وَمَا قَوْمُ لُوطٍ
مِّنكُم بِبَعِيدٍ ﴿٨٩﴾ وَٱسْتَغْفِرُوا۟ رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوٓا۟ إِلَيْهِ ۚ إِنَّ رَبِّى رَحِيمٌ وَدُودٌ ﴿٩٠﴾ قَالُوا۟ يَٰشُعَيْبُ مَا نَفْقَهُ كَثِيرًا
مِّمَّا تَقُولُ وَإِنَّا لَنَرَىٰكَ فِينَا ضَعِيفًا ۖ وَلَوْلَا رَهْطُكَ لَرَجَمْنَٰكَ ۖ وَمَآ أَنتَ عَلَيْنَا بِعَزِيزٍ ﴿٩١﴾ قَالَ يَٰقَوْمِ أَرَهْطِىٓ أَعَزُّ
عَلَيْكُم مِّنَ ٱللَّهِ وَٱتَّخَذْتُمُوهُ وَرَآءَكُمْ ظِهْرِيًّا ۖ إِنَّ رَبِّى بِمَا تَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ﴿٩٢﴾ وَيَٰقَوْمِ ٱعْمَلُوا۟ عَلَىٰ
مَكَانَتِكُمْ إِنِّى عَٰمِلٌ ۖ سَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ وَمَنْ هُوَ كَٰذِبٌ ۖ وَٱرْتَقِبُوٓا۟ إِنِّى مَعَكُمْ
رَقِيبٌ ﴿٩٣﴾ وَلَمَّا جَآءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا شُعَيْبًا وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مَعَهُۥ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَأَخَذَتِ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ ٱلصَّيْحَةُ فَأَصْبَحُوا۟ فِى
دِيَٰرِهِمْ جَٰثِمِينَ ﴿٩٤﴾ كَأَن لَّمْ يَغْنَوْا۟ فِيهَآ ۗ أَلَا بُعْدًا لِّمَدْيَنَ كَمَا بَعِدَتْ ثَمُودُ ﴿٩٥﴾ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ بِـَٔايَٰتِنَا وَسُلْطَٰنٍ
مُّبِينٍ ﴿٩٦﴾ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَإِي۟هِۦ فَٱتَّبَعُوٓا۟ أَمْرَ فِرْعَوْنَ ۖ وَمَآ أَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِيدٍ ﴿٩٧﴾ يَقْدُمُ قَوْمَهُۥ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ
فَأَوْرَدَهُمُ ٱلنَّارَ ۖ وَبِئْسَ ٱلْوِرْدُ ٱلْمَوْرُودُ ﴿٩٨﴾ وَأُتْبِعُوا۟ فِى هَٰذِهِۦ لَعْنَةً وَيَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۚ بِئْسَ ٱلرِّفْدُ ٱلْمَرْفُودُ ﴿٩٩﴾ ﴾



Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


## مناسبت اوتړاو:

تراوسه لا کېسه دابراهيم عليه السلام دمېلمنو روانه ده هغه پرښتې چې دلوط عليه السلام دقوم دهلاکت لپاره رااستول شوي او دابراهيم عليه السلام په کور مېلمانه وو چې بيايې (سارة) ته دزوى زېرى واورول نور بيا آيتونه دلوط عليه السلام دقوم دهلاکت بيان کوي چې دوى ته څه ورپېښ شول اودغه پنځمه کيسه ده ورپسې دشعيب عليه السلام کېسه راوړي چې په مدين کي له خپل اهل سره مېشت وو ورپسې دموسى عليه السلام اوفرعون کيسه ده چې پدې ټولو کي ډېرعبرتونه اوپندونه شته.

## لغتونه:

(الروع) وېره اوډار( منيب) رجوع کونکى اوتوبه ګار (عصيب) په شرکي سخت (يهرعون) تلوارکونکى فراء وايې: چې (اهراع) اسراع ته وايې چې ورسره لړزېدل ملګرى وى هغه که له يخني وي اوکه له غصې اوقهره[1] (تخزون) خزى ذلت اوسپکتيا ته وايې (سجيل) سجيل اوسجين سخته له ډبري او فراء وايې داهغه خټه ده چې په اور پخه اولکه ډبره غوندي وي[2] ( منضود) پرله پسې ( مسومة) معلوم داره له (سيما ) څخه اخيستل شوي اوهغه علامې ته وايې (شقاقى) شقاق عداوت او دښمني ته وايې ( رهطک) خپلوان ستا هغه چې ملاتړ يې غواړي (الورد) دننوتلوځاى (رفد) عطاو مرسته بولي.

## تفسير:

﴿ فَلَمَّا ذَهَبَ عَنْ إِبْرَٰهِيمَ ٱلرَّوْعُ ﴾ (نوکله چې له ابراهيم څخه وېره ولاړه ) هغه چې په زړه کي ورته پيدا شوې وه اوپدې مطمئن شو چې دغه ملائکي دي ﴿ وَجَآءَتْهُ ٱلْبُشْرَىٰ ﴾ اوزېرى ورته راغى (دزوى) ﴿ يُجَٰدِلُنَا فِى قَوْمِ لُوطٍ ﴾ (نوبيايې جګړه کوله ( له رسولانو ) زمونږ سره په ( حق ) دقوم دلوط کي ) چې مقصديې له هغوى څخه دعذاب څنډېدل وو چې ښايې هغوى ايمان راوړي. مفسرين کرام وايې: کله چې ملائکوو ويل: ﴿ وَلَمَّا جَآءَتْ رُسُلُنَآ إِبْرَٰهِيمَ بِٱلْبُشْرَىٰ قَالُوٓا۟ إِنَّا مُهْلِكُوٓا۟ أَهْلِ هَٰذِهِ ٱلْقَرْيَةِ ﴾ (العنکبوت ۳۱ ) نوابراهيم عليه السلام دوى ته وويل: چې آياکه پنځوس تنه مسلمانان پکې وي تاسويې هلاکوئ ؟ هغوى وويل: نه بيايې ورته وويل: چې آياکه څلوېښت تنه پکې وي هلاکوئ يې ؟ هغوى ورته وويل: نه آن تردې چې وارپه وار ښکته راتو اوبالآخره يې ورته وويل: چې آياکه يوتن مسلمان پکې وي هلاکوئ يې ؟ هغوى وويل: نه نوابراهيم عليه السلام ورته وويل: ﴿ قَالَ إِنَّ فِيهَا لُوطًا ۚ قَالُوا۟ نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَن فِيهَا ۖ لَنُنَجِّيَنَّهُۥ وَأَهْلَهُۥٓ إِلَّا ٱمْرَأَتَهُۥ كَانَتْ مِنَ ٱلْغَٰبِرِينَ ﴾ (العنکبوت ۳۲)

---

[1] القرطبي ۹ / ۷۴ (۲).

[2] زه ژباړونکى ورسره دازياتول غواړم چې څيني خلګ وايې دغه له فارسي څخه اخيستل شوى ( سنګ ګل) دى اوهغه له ختې څخه پخې شوي ته وايې چې لکه ډبره غوندي وي دغسې معربي کلماتي نوري هم شته لکه (جناح) هغه په فارسي ګناه بولي معلومه خبره ده چې دفارسي ګاف په عربي کي په جيم تلفظ کېږي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ إِنَّ إِبۡرَٰهِيمَ لَحَلِيمٌ أَوَّٰهٞ مُّنِيبٞ ﴾ بېشکه ابراهيم خامخا تحمل والا لوی آه کونکی نرم زړه دی ) يعني حضرت ابراهيم عليه السلام له ګنهګارانو څخه په تلوار دکسات اخيستلو پلوی نه وو دزړه له نرمي به يې په خلکو زيات افسوس کاوو دالله دطاعت لوري ته زيات راګرزېدونکی وو ﴿ يَٰٓإِبۡرَٰهِيمُ أَعۡرِضۡ عَنۡ هَٰذَآۖ ﴾ ( اې ابراهيمه ! او اوړه له دې (جګړې ) څخه ) يعني ملائکو وويل : اې ابراهيمه ! دغه مجادله پرېږده چې دلوط دقوم په هکله يې کوې بلکه ددوی دهلاکت فيصله شوي ده ﴿ إِنَّهُۥ قَدۡ جَآءَ أَمۡرُ رَبِّكَۖ ﴾ بېشکه شان دادی په تحقيق راغلی دی حکم درب ستا(په هلاکت ددوی ) ﴿ وَإِنَّهُمۡ ءَاتِيهِمۡ عَذَابٌ غَيۡرُ مَرۡدُودٖ ﴾ او بېشکه دوی ته راتلونکی دی (هغه ) عذاب چې بيرته نه ګرزي يعني له دوی څخه دفع کېدونکی نه دی ﴿ وَلَمَّا جَآءَتۡ رُسُلُنَا لُوطٗا سِيٓءَ بِهِمۡ ﴾ او کله چې راغلل رسولان زموږ لوط ته نو لوط په هغوی غمجن شو (ځکه دوی خان دبشر په بڼه ورته څرګند کړ او لوط عليه السلام (چې ددوی ښايست وليد ) له خپله قومه ورباندي وبېرېدو ﴿ وَضَاقَ بِهِمۡ ذَرۡعٗا وَقَالَ هَٰذَا يَوۡمٌ عَصِيبٞ ﴾ اوتنګه شوه له جهته ددوی سينه دده (چې وېرېدو اشرارقوم يې بې عزتي ونکړي ) او وويل لوط دغه يوه ورځ ده ډېره سخته (له شره ډکه) . ﴿ وَجَآءَهُۥ قَوۡمُهُۥ يُهۡرَعُونَ إِلَيۡهِ ﴾ او راغی ده ته قوم دده حال دا چې راځغاست ده ته (لپاره دبدکاري کولوله مېلمنو سره ) داسی په منډه راتلل لکه چې چا راپوري وهل ﴿ وَمِن قَبۡلُ كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ٱلسَّيِّـَٔاتِۚ ﴾ (او پخوا ( له دې نه هم ) دوی ناکاره عملونه کول ) دايې عادت وو چې په نارينه وو به يې جنسي تېری کاوو هيڅ شرم يې نه ګاڼه او کله چې يې خبر واورېدو په منډه منډه يې راځغاستل. قرطبي وايي: چې ددوی دمنډو سبب داوو چې دلوط عليه السلام مېرمني چې کافره وه کله چې يې مېلمانه اوددوی جمال ، ښايست يې وليدل نو راووته ترڅو چې ددوی دناستي ځای ته راغله او ورته يې وويل: چې نن دلوط هسي زلمي مېلمانه راغلي چې ما دهغوی په شان ښکلانه ده ليدلي نو دوی پدې وخت کي په ځغاسته ورته راغلل(۱) ﴿ قَالَ يَٰقَوۡمِ هَٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِي هُنَّ أَطۡهَرُ لَكُمۡۖ ﴾ نو وويل: لوط اې قومه ! زما دا ښځي لوڼي زما دي يعني دغه دښار پېغلي زمالوڼي دي تاسو ته به يې په نکاح درکړم ) چې دوی تاسي ته ښې پاکي دي ( اوداچې ويې ويل: زمالوڼي دي ځکه هرنبي دخپل امت لپاره په شفقت او تربيه کي پلاردی) ﴿ فَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَلَا تُخۡزُونِ فِي ضَيۡفِيٓۖ ﴾ نوله الله ووېرېږئ او ما په حق دمېلمنو کي مه رسوا کوئ ﴿ أَلَيۡسَ مِنكُمۡ رَجُلٞ رَّشِيدٞ ﴾ ( آيانشته له تاسي کوم سړی عاقل) چې له بدو کارونو مو راوګرزوي ؟ استفهام دتوبيخ لپاره دی ﴿ قَالُواْ لَقَدۡ عَلِمۡتَ مَا لَنَا فِي بَنَاتِكَ مِنۡ حَقّٖ ﴾ وويل: قوم دلوط خامخا په تحقيق ته پوه يې چې نشته موږ لره ستا په لوڼو کي هيڅ حاجت (رغبت ) يعني ته پوهېږې موږ ښځوته رغبت نلرو ﴿ وَإِنَّكَ لَتَعۡلَمُ مَا نُرِيدُ ﴾ او بېشکه ته خامخا پوهېږې چې موږ کوم کار غواړو (چې هغه له نارينه وو سره لواطت دی) الله دې دوی وشرموي دوی دخپل ناولي مقصد بيان په ډاګه وکړ ﴿ قَالَ لَوۡ أَنَّ لِي بِكُمۡ قُوَّةً أَوۡ ءَاوِيٓ إِلَىٰ رُكۡنٖ شَدِيدٖ ﴾ ( نو وويل : لوط کاشکي ماته پرتاسي زور وای ، يامي پناه وړای شوی ټينګ پناه ځای ته ) يعني

(۱) القرطبي ۹/ ۷۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کاشکي مادومره زور درلودای چي ستاسي مي مخه نيولي وای اويا خپلوانو قريبانوته مي چي غښتلي وای پناه وروړي وای دلو خواب محذوف دی اوتقدير يې داسي راځي چي مابه په تاسو حمله کړي وه. په حديث شريف کي راځي: الله دي په لوط ﷺ رحم وکړي غوښتل يې تينګ پناه ځای ته پناه يوسي(۱) د رسول الله صلی الله عليه وسلم مقصد دا چي الله يې مرستندوی او محکم پناه ځای وو. قتاده وايي: چي موږ ته داسي يادونه شوي چي الله پاک له لوط عليه السلام نه وروسته هيڅ نبي ندی را استولی مګر د قوم قبيلې ملاتړ به يې درلود. او په هغه وخت کي چي پرښتو دده په خپله يې وزلي افسوس او يو وزري، بې ملاتړو حالت وليدلو ويې ويل: ﴿ قَالُوا۟ يَـٰلُوطُ إِنَّا رُسُلُ رَبِّكَ لَن يَصِلُوٓا۟ إِلَيْكَ ﴾ ووېل: ملائکو: اې لوطه! بېشکه موږ ستا د رب رسولان يو (چي د دوی د هلاکت لپاره راغلي يو) له سره به ونه رسېږي دوی تاته (په ضرر رسولو) ﴿ فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ ٱلَّيْلِ ﴾ (نو بوزه اهل خپل د شپې په يوه برخه کي) طبري وايي، چي معنا يې دا چي ته د دوی له مينځه د شپې په يوه تو ته کي ووزه (۲) ﴿ وَلَا يَلْتَفِتْ مِنكُمْ أَحَدٌ إِلَّا ٱمْرَأَتَكَ ﴾ او ندي ګوري بېرته له تاسي هيڅ يو مګر ښځه ستا (چي هغه به د دوی په شان هلاکېږي له بېرته کتلو څخه يې ځکه منع کړل چي د قوم کلي په هلاکت يې زړه ونه چوي. قرطبي وايي: کله چي يې ښځي د عذاب دروند غږ واورېده نو يې وکتل او داسي يې وويل: (واقوماه) ډېره وربانديي راپرېوته او بيا هلاکه شوه (۳) ﴿ إِنَّهُۥ مُصِيبُهَا مَآ أَصَابَهُمْ ﴾ بېشکه شان دا دی چي رسېدونکی دی دې (ښځي) ته هغه عذاب چي دوی ته رسېږي ﴿ إِنَّ مَوْعِدَهُمُ ٱلصُّبْحُ ۚ أَلَيْسَ ٱلصُّبْحُ بِقَرِيبٍ ﴾ بېشکه وعده (د نزول د عذاب) د دوی سبا دی آيا سبا نژدې نه دی؟ (بلکه نژدې دی ته تلوار مکوه. حضرت لوط عليه السلام له دوی څخه په نژدې د عذاب غوښتنه وکړه ځکه چي سخت ورباندي خواشيني وو نو ملائکو ورته وويل: آيا سهار نژدې نه دی؟ مفسرينو ويلي دي چي د لوط قوم چي کله د ښکلو مېلمنو واورېدل په خغاسته يې ځانونه ورته راورسول نو لوط عليه السلام دروازه وتړله له تړلي دروازې يې له قوم سره مجادله پيل کړه نو دوی پر دېوال ورواوښتل نو کله چي ملائکو د لوط عليه السلام مصيبت وليد ورته ويل يې: اې لوطه! دروازه پرانيزه موږ او دوی سره پرېږده نو يې دروازه پرانيستله او جبرائيل عليه السلام پخپل وزر دوی ووهل سترګي يې ورړندې کړې او بېرته ستانه شول د نجات نجات چيغي يې وهلې الله تعالی فرمايلي دي: ﴿ وَلَقَدْ صَبَّحَهُم بُكْرَةً عَذَابٌ مُّسْتَقِرٌّ ﴾ (القمر:۳۸) بيا حضرت لوط عليه السلام له خپلو ملګرو سره ترسپېدو چاودلو له مخه ووت او چي کله د دوی (ظالمانو) د عذاب وخت را ورسېدو نو الله پاک جبريل عليه السلام ته امر وکړاو د لوط عليه السلام د قوم پنځه ښارونه يې له بېخه و ايستل آسمان ته يې دومره اوچت کړل چي د چرګانو آذانونه او د سپيو غپل يې د آسمان خلګو واورېدل بيا يې پرمخي له پاسه راوغورځول او ورپسې په ډبرو وويشتل شول ځکه الله فرمايي: ﴿ فَلَمَّا جَآءَ أَمْرُنَا جَعَلْنَا عَـٰلِيَهَا سَافِلَهَا ﴾ نو څه وخت چي راغی حکم (د عذاب) زموږ نو وګرزاوو موږ پورته لوري ته د دې ښار ښکته خوا (يعني پر دوی مو دا ښارونه نسکور کړل) ﴿ وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهَا حِجَارَةً مِّن سِجِّيلٍ ﴾ او واورول موږ پر دغو ښارونو باندې کاڼي له ختو جوړشوي په اور

---

(۱) أخرجه الشيخان عن ابي هريرة مرفوعاً.
(۲) الطبري ۱۲/ ۸۹
(۳) القرطبي ۹/ ۸۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



پاخه شوي (له باران سره يې ښکه تشبيه کړل چې سخت اوزيات وو) ﴿مَّنضُودٍ ۝ مُّسَوَّمَةً عِندَ رَبِّكَ﴾ لاندې باندې پرله پسې نښې کړی شوې په نزد درب ستا؛ ربيع وايي: چې په هره تيږه دهغه چانوم کښل شوی وو چې هغه به ورباندې وېشتل کېدو. قرطبي وايي: چې ددې کلمې معناچې وايي: ﴿عِندَ رَبِّكَ﴾ پدې دليل دی چې دغه ډبرې دځمکې نه وې (بلکه آسماني ډبرې وې) (۱) ﴿وَمَا هِيَ مِنَ الظَّالِمِينَ بِبَعِيدٍ﴾ اونه دي دا (هلاک شوي ښارونه) له ظالمانو (ستاقوم دقريشوکافرانو) ښخه ليرې يعني دوی پخپلو سفرونوکي ورباندې تېرېږي راتېرېږي آيادوی عبرت نه آخلي؟ (۲) مفسرين کرام وايي: چې ددوی د ښارونو ځای تريخ درياب جوړ شوی چې (بحرميت) يې بولي ښکه اوبه يې دړوندي سارو ورنه دي اوهيڅ ژوی اوساه لرونکی پکې نشي اوسېدلای دې ته په اوسني وخت کې دبحيره لوط شهرت ورکول شوی دی هغه خوا وشا ځمکه يې هم هيڅ گياه نه زرغونوي. ﴿وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا﴾ او (لېږلی وو مونږ) مدين (قبيلې ته) (قومي) ورور ددوی شعيب، ځرنگه چې شعيب عليه السلام ددوی خپل قومي وو نويې ورور وباله اودغه شپږمه کيسه ددې سورت له کيسوښخه ده ﴿قَالَ يَٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ﴾ وويل: (شعيب) اې قومه زما! عبادت کوئ (يوازې) دالله نشته تاسې لره هيڅ (برحق) معبود له ده (الله) پرته ﴿وَلَا تَنقُصُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ﴾ اومه کموئ پېمانه اوتله) يعني دخلکو حقوق په پېمانه اوتله کم مه ورکوئ دوی دتلې اوپېمانې په کموالي پېژندل شوي او مشهور وو. ﴿إِنِّي أَرَاكُم بِخَيْرٍ﴾ (بېشکه چې زه تاسې په خيروينم) يعني تاسې شتمن، بډايان اودپراخې روزې خاوندان ياست دتلې اوپېمانې کموالي ته مو اړتيا نشته. قرطبي وايي: چې د (خير) معنادروزي پراخوالی اودنعمتونو زيات والی دی (۳) ﴿وَإِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ مُّحِيطٍ﴾ اوبېشکه زه وېرېږم پرتاسې (که موايمان رانه وړ) له عذابه دورځې چاپېرېدونکې (چې هيڅوک ترې خلاصېدلای نشي مرادځني دقيامت دورځې عذاب دی) ﴿وَيَٰقَوْمِ أَوْفُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ﴾ اواې قومه زما! پوره ورکوئ تاسې پېمانه اوتله په انصاف ﴿وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ﴾ اومه کموئ تاسې خلکوته شيان ددوی (يعني دهغوی له حقوقو ښخه څه مه کموئ) ﴿وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ﴾ اومه لټوئ تاسې (خرابي) په ځمکه کې پداسې حال کې چې فسادکونکي ياست (عثی سخت فسادته وايي) ﴿بَقِيَّتُ اللَّهِ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾ هغه باقي رزق پاتې کړی (حلال) دالله ډېرغوره دی تاسې ته (ترهغه چې تاسويې حرام ټولوئ) که يې تاسې مؤمنان يعني که چېرې دالله جل جلاله په وعد او وعيد باورکونکي ياست؟. مجاهدوايي: چې معنايې داچې دالله طاعت ستاسو

---

(۱) القرطبي ۹/ ۸۳

(۲) چاپياويلي چې ضميرډبروته راجع دی معناداچې دغه ډبرې له ظالمانوليرې نه دي چې هرڅوک ظالمان وی ورباندې به وويشتل شي.

(۳) الطبري ۱۲/ ۱۰۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



لپاره خیردی(۱) ﴿ وَمَآ أَنَا۠ عَلَيۡكُم بِحَفِيظٖ ﴾ اونه یم زه پرتاسو د هر ساتونکی چي ستاسو څارنه وکړم اوستاسي پراعمالو جزادرکړم بلکه زه نصیحت کونکی مبلغ یم (اولکه چي وایي ) (وقدأعذر من أنذر) یعنی ویرول شوته عذرنشته ﴿ قَالُواْ يَٰشُعَيۡبُ أَصَلَوٰتُكَ تَأۡمُرُكَ أَن نَّتۡرُكَ مَا يَعۡبُدُ ءَابَآؤُنَآ ﴾ نو وویل قوم دده یاشعیبه ! آیادغه د هرلمونځ کول ستا تاته ددي امرکوي چي موږ هغه بتان پرېږدو دچاچي زموږ پلرونو عبادت کاوو ؛ کله چي شعیب علیه السلام دوی ته دبتانو دعبادت پرېښودلو اودالله دعبادت دکولو امروکړ اودوی یې دپیمانې اوتلې دبشپړي ورکولو لوري ته راوبلل نودوی دملنډو اواستهزاء په ډول ورته داسي وویل : ؛ یعني دغه ستاخبري دهوښیارسړي نه دي . ﴿ أَوۡ أَن نَّفۡعَلَ فِيٓ أَمۡوَٰلِنَا مَا نَشَٰٓؤُاْۖ ﴾ (یاچي وکړو موږ په خپلو مالونو کي هغه تصرف چي موږ یې غواړو ) یعني ته موږته امرکوي چي موږدتلي اوپیمانې تطفیف (کمول) پرېږدو ؟ امام فخر رازي وایي: چي شعیب علیه السلام دوی ته ددوشیانو امروکړ یوتوحید اوبل دپیمانې اوتلي پوره ورکول وو نو دوی هم ددواړو انکار پدې خبروو کړ ؛ لومړی ﴿ مَا يَعۡبُدُ ءَابَآؤُنَآ ﴾ چي دتوحید انکارته اشاره شي اوبل دا چي ﴿ أَوۡ أَن نَّفۡعَلَ فِيٓ أَمۡوَٰلِنَا ﴾ چي دتطفیف دپرېښودلو انکارخني معلوم شي ؛ اوکله کله له (صلوة) څخه دین هم اراده کېږي چي بیابه یې معناداوي چي آیاستادین تاته دادرښیي ؟ اودین ته ځکه صلوة وویل شي چي هغه ددین شعارڅرګندوي اوداسي هم روایت کېږي چي شعیب علیه السلام به د هرلمونځ ګوزارل اوکله چي به یې قوم ولید یوبل ته به یې اشارې کولې او وریسي به یې خندل نوګواکي ددوی په دې قول سره یې چي ﴿ أَصَلَوٰتُكَ تَأۡمُرُكَ ﴾ ریشخند اوتمسخردی لکه چي ته یوتاپوه سړي ته چي کتابونه لولي اوبیا یوه ناکاره خبره وکړي ووایې : چي آیاداخبره دي دکتابونوله لوستلوڅخه راایستلي اوزده کړي ده ؟ !(۲) ﴿ إِنَّكَ لَأَنتَ ٱلۡحَلِيمُ ٱلرَّشِيدُ ﴾ بېشکه هم ته یې (پوه) په حلم اورشد ستایلي ؛ طبری وایې : چي دوی ځکه وریسي ملنډي وهلې چي دالله دښمنان وو اودغه یې هم داستهزاء په توګه ورته ویل اوپدې خبره یې دده ناپوهي اوجهل ته نسبت کاوو (۳) ﴿ قَالَ يَٰقَوۡمِ أَرَءَيۡتُمۡ إِن كُنتُ عَلَىٰ بَيِّنَةٖ مِّن رَّبِّي ﴾ وویل: شعیب اې قومه زما ! آیا وینئ تاسي (خبرراکړئ ) که یم زه په برهان (څرګند ) له جانبه درب خپل (چي هغه هدایت اونبوت دی ) ﴿ وَرَزَقَنِي مِنۡهُ رِزۡقًا حَسَنٗاۚ ﴾ اوراکړی یې وي ماته له درباره خپله رزق ، روزي ښایسته یعني حلال مال ځکه چي شعیب علیه السلام د هرمال درلود . زمخشري وایي: چي ځواب حذف شوی اومعناوربانديدلالت کوي یعني ماته خبرراکړئ که چېري زه په څرګندبرهان اوباور له جانبه درب خپل اوپه حقیقي توګه نبي یم آیاداسمه ده چي تاسوته دبتانو په پرېښودلو اوله ګناهونوڅخه دځان ژغورلو امر پرېږدم ؟ (بلکه سمه نه ده )انبیاء علیهم السلام خودهمدې لپاره رالاستول کېږي (۴) ﴿ وَمَآ أُرِيدُ أَنۡ أُخَالِفَكُمۡ إِلَىٰ مَآ أَنۡهَىٰكُمۡ عَنۡهُۚ ﴾ (اونلرم اراده ددې چي مخالفت وکړم له تاسي هغه کارته چي تاسي له هغه

---

(۱) القرطبي ۹ / ۸۵
(۲) تفسیرالرازي ۱۸/ ۴۲
(۳) الطبري ۱۲/ ۱۰۳
(۴) الکشاف ۲/ ۴۲۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


ځخه منع کوم) يعني زه هسې نکوم چې تاسو ته وايم او پخپله يې نه پرځای کوم هغه څه درته وايم چې پخپله يې هم عملي کوم ﴿إِنْ أُرِيدُ إِلَّا الْإِصْلَاحَ مَا اسْتَطَعْتُ وَمَا تَوْفِيقِي إِلَّا بِاللَّهِ﴾ زه اراده نلرم مگر د اصلاح ستاسي څو چې زما توان کېږي او نه دی توفيق زما (خيرته) مگر (په هدايت ، نصرت) د الله ﴿عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ﴾ خاص پر همدغه الله ما توکل کړی دی او د همده طرف ته رجوع کوم (په توبه او انابت سره) ﴿وَيَا قَوْمِ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شِقَاقِي﴾ او اې زما قومه! حاصله دې نکړي تاسي ته دښمني (ستاسي) له ما سره ﴿أَن يُصِيبَكُم مِّثْلُ مَا أَصَابَ قَوْمَ نُوحٍ أَوْ قَوْمَ هُودٍ أَوْ قَوْمَ صَالِحٍ﴾ داچې ورسېږي تاسي ته په شان د هغه (عذاب) چې رسېدلی وو قوم د نوح ته (چې غرق وو) يا قوم د هود ته (چې سخت باد وو) ، يا قوم د صالح ته (چې زلزله وه) حسن رحمه الله وايي: معنا دا چې ستاسي دښمني له ما سره دې تاسي دې ته ارنکړي چې ايمان نه راوړئ نو بيا به هغه څه درته ورسېږي چې کفارو ته رسېدلی (۱) ﴿وَمَا قَوْمُ لُوطٍ مِّنكُم بِبَعِيدٍ﴾ (او ندی قوم د لوط له تاسو څخه ليري) يعني د لوط عليه السلام د ظالم قوم کور او کلی له تاسو څخه ليري نه دی آيا تاسو د هغوی له هلاکت څخه عبرت نه آخلئ؟ ﴿وَاسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ﴾ او مغفرت وغواړئ تاسي له رب خپل څخه (له ټولو گناهونو) بيا رجوع وکړئ تاسي په لوري دده (په نصوحا توبه وباسئ) ﴿إِنَّ رَبِّي رَحِيمٌ وَدُودٌ﴾ بېشکه رب زما ډېر مهربان د لوی محبت والادی ﴿قَالُوا يَا شُعَيْبُ مَا نَفْقَهُ كَثِيرًا مِّمَّا تَقُولُ﴾ وويل: قوم دده (د سپکاوي په ډول) اې شعيبه! نه پوهېږو موږ په ډېرو هغو خبرو چې ته يې وايې؛ الوسي وايي: چې دوی د شعيب عليه السلام هغه ويناچې د حکمتونو او پندونو په فنونو سمبال وه او علوم او معارف پکې نغښتي وو د هذيان او چټياتو له ډوله وبلله هغه چې ځوک پرې نه پوهېږي سره له دې لکه چې په حديث شريف کي راغلي حضرت شعيب عليه السلام د انبياوو عليهم السلام خطيب دی (۲) ﴿وَإِنَّا لَنَرَاكَ فِينَا ضَعِيفًا﴾ (او بېشکه موږ خامخا وينو تا په موږ کي کمزوری) يعني نه زورلرې او نه هم ستا زموږ په مېنځ کي عزت شته ﴿وَلَوْلَا رَهْطُكَ لَرَجَمْنَاكَ﴾ او که نه وي دغه خپلوان ستا نو خامخا موږ به ته سنگسار کړی وای (په ډېرو به مو وژلای وای) ﴿وَمَا أَنتَ عَلَيْنَا بِعَزِيزٍ﴾ او نه يې ته په موږ هيڅ عزتناک (چې موږ دې احترام ولرو او سنگسار دې نکړو) ﴿قَالَ يَا قَوْمِ أَرَهْطِي أَعَزُّ عَلَيْكُم مِّنَ اللَّهِ﴾ وويل: (شعيب) اې قومه زما! آيا دغه خپلوان زما ډېر عزيز دي پر تاسي تر الله) دغه دده لپاره توبيخ دی چې آيا تاسو ما د خپلوانو په سبب پرېږدئ؟ او د الله تبارک وتعالی عظمت ته نه گورئ؟ ابن عباس رضی الله عنهما وايي: چې د شعيب عليه السلام قوم ته د شعيب خپلوان تر الله جل جلاله گران وو د الله جل جلاله شان د دوی په سترگو کي کوچنی وو (عزربنا وجل ثناءه) (۳) ﴿وَاتَّخَذْتُمُوهُ وَرَاءَكُمْ ظِهْرِيًّا﴾ او گرزولی مو دی دغه (الله) وروسته د تاسي شا ته غورځول شوی ، چې نه يې اطاعت کوئ ، نه يې عظمت منئ او هيڅ پروايي نه کوئ شا ته غورځول د نه

(۱) القرطبي ۹/ ۹۰
(۲) روح المعاني ۱۲/ ۱۲۳
(۳) الطبري ۱۲/ ۱۰۶

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



منلو لپاره مثل دی. طبري وايې: کله چې يو څوک د چاپه غوښتنه غوږ نه ګروي نو وايې چې دده غوښتنه يې شاته وغورځوله او هيڅ التفات يې ورته ونکړ (۱) ﴿إِنَّ رَبِّي بِمَا تَعْمَلُونَ مُحِيطٌ﴾ بېشکه رب زما په هغو کارونو چې تاسي يې کوئ ښه احاطه کونکی) دی ستاسي بداعمال ورمعلوم دی جزا به يې درکړي ﴿وَيَٰقَوْمِ ٱعْمَلُوا۟ عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ إِنِّي عَٰمِلٌ﴾ او اې قومه زما! عمل کوئ په خای خپل زه هم عمل کونکی يم (پخپله طريقه سره لکه چې ورته وايې تاسو پخپل کفر او عداوت ټينګ شئ او زه په اسلام باندي ثابت قدم يم پدې کي ددوی لپاره سخت تهديد پټ دی ﴿سَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ﴾ ژر به تاسي وپېژنئ هغه څوک چې راځي ده ته عذاب چې رسوا (ذليل) کوي هغه ﴿وَمَنْ هُوَ كَٰذِبٌ﴾ او هغه څوک چې دروغ ويونکی دی ﴿وَٱرْتَقِبُوٓا۟ إِنِّي مَعَكُمْ رَقِيبٌ﴾ او انتظار کوئ د (عاقبت خپل) بېشکه چې زه هم له تاسي سره انتظار کونکی يم ﴿وَلَمَّا جَآءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا شُعَيْبًا وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مَعَهُۥ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا﴾ او کله چې راغی امر زموږ (ددوی په هلاکولو) نو موږ وژغورل شعيب او هغه کسان چې ايمان يې راوړی وو له ده سره (له هلاکته) په رحمت سره له خپله نزده (پردوی باندي) ﴿وَأَخَذَتِ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ ٱلصَّيْحَةُ﴾ او ونيول هغه کسان چې ظلم يې کړی وو سختي چيغي. قرطبي وايې: چې جبريل عليه السلام ورباندي سخته چيغه وکړه او ددوی له بدنونو څخه ساوي راووتلې (۲) ﴿فَأَصْبَحُوا۟ فِي دِيَٰرِهِمْ جَٰثِمِينَ﴾ نو وګرځېدل دوی په کورونو خپلو کي مړه وچ کلک پراته. ابن کثير وايې: چې دلته ذکر شو چې دوی ته سخته چيغه راغله، په اعراف کي زلزله (رجفه) ذکر شوي او په الشعرآء کي (عذاب يوم الظلة) راغلی دی او دغه يوامت وو ددوی د هلاکت په ورځ دغه ټول عذابونه ورباندي راپرېوتي او په هرځای کي يې له حاله سره مناسبه يادونه شوي ده (۳) ﴿كَأَن لَّمْ يَغْنَوْا۟ فِيهَآ ۗ أَلَا بُعْدًا لِّمَدْيَنَ كَمَا بَعِدَتْ ثَمُودُ﴾ (داسي تباه شول) لکه چې نه وو اوسېدلي په دغو کورونو کي (پخواله دې نه) خبردار شئ واورئ ليري والی دی (له رحمته او عذاب دی) مدين ته لکه چې ليري او هلاک شول ثموديان) يعني الله پاک مدين هم داسي له خپله رحمته ليري او په عذاب اخته کړ لکه چې تر پخوا يې ثموديان له رحمته ليري کړي او په غضب يې ککړ کړي وو (۴) ﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ بِـَٔايَٰتِنَا وَسُلْطَٰنٍ مُّبِينٍ﴾ (دغه شپږمه کيسه چې پدې سورت کي راځي او وروستنی کيسه ده معنادا چې: او خامخا په تحقيق لېږلی وو موږ موسی په شرائعو احکامو او ښکاره حجت سره؛ او دهغه ملاتړمو په سترو معجزاتو لکه لکړه اولاس سره کړی وو ﴿إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَإِي۟هِۦ﴾ فرعون او مشرانو (دقوم) دده ته ﴿فَٱتَّبَعُوٓا۟ أَمْرَ فِرْعَوْنَ ۖ وَمَآ أَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِيدٍ﴾ او متابعت وکړ دغو مشرانو د امر (حکم) د فرعون حال دا چې نه وو حکم د فرعون برابرونکی په

---

(۱) الطبري ۲
(۲) القرطبي ۹/۹۲
(۳) المختصر ۲/۲۳۱
(۴) الطبري ۱۲/۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



سمي لاري (بلکه سراسر جهل او گمراهي وو) ﴿ يَقْدُمُ قَوْمَهُۥ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ ﴾ مخ کي به شي دغه فرعون دقوم خپل دقيامت په ورځ (اورته به يې بيايې لکه چي په دنياکي ددوی مخکښ وو) ﴿ فَأَوْرَدَهُمُ ٱلنَّارَ ۖ وَبِئْسَ ٱلْوِرْدُ ٱلْمَوْرُودُ ﴾ نوننې به باسي دوی په اورکي او بدځای دورتلو (د دوی هغه) دی چي دوی وروستل شي ﴿ وَأُتْبِعُوا۟ فِى هَـٰذِهِۦ لَعْنَةً وَيَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ ۚ بِئْسَ ٱلرِّفْدُ ٱلْمَرْفُودُ ﴾ او وروسې لګولی شوی دی په دغه دنياکي لعنت (سمدستي) او په ورځ دقيامت (هم) بد انعام دی (هغه چي دوی ته) ورکړل شوی (کوم چي ددارينو لعنت دی)

## بلاغت:

۱- ﴿ ذَهَبَ ٱلرَّوْعُ ... وَجَآءَتْهُ ﴾ دلته دطباق صنعت اوله بديعي محسناتو ګڼل کېږي.

۲- پدې کلام کي چي فرمايي: ﴿ جَآءَ أَمْرُ رَبِّكَ ﴾ له سخت عذاب څخه کنايه راغلي هغه چي الله ورته ليکلی وو.

۳- ﴿ أَلَيْسَ مِنكُمْ رَجُلٌ رَّشِيدٌ ﴾ ؟ دلته استفهام دتعجب او توبيخ لپاره دی.

۴- پدې آيت کي چي ﴿ أَوْ ءَاوِىٓ إِلَىٰ رُكْنٍ شَدِيدٍ ﴾ شريف رضي وايي چي دغه استعاره ده اومراد څني خپل خپلوان دي څکه يې رکن وګڼل چي انسانان هم خپلوانو ته پناه وروړي او خپلو پلويانو مرستندويانو ته لکه چي څوک ديوې ستري کوټې دېوال اورکن ته تکيه کوي هسي پناه وروړي او د(لو) خواب محذوف دی هغه داچي نوربه ستاسو دفساد اوزماترمينځ پرده غوړېدلي وه حذف ددې لپاره راغلی چي أبلغ دی اودستري جزا او سخت عذاب وهم څيني کېدلای شي.[1]

۵- ﴿ عَـٰلِيَهَا سَافِلَهَا ﴾ ددوی ترمينځ دطباق صنعت دی.

۶- کله چي فرمايي: ﴿ عَذَابَ يَوْمٍ مُّحِيطٍ ﴾ پدې کي عقلي مجاز او ورځي ته يې داحاطې نسبت وکړ سره له دې چي ورځ جسم نلري خو پدې اعتبار چي عذاب پکې دی نو دغه اسناد زمانې ته دی.

۷- ﴿ وَٱتَّخَذْتُمُوهُ وَرَآءَكُمْ ظِهْرِيًّا ﴾ دلته تمثيلي استعاره ده لکه چي کوم څيز شاته غورځول کېږي او پروا پرې نه کېږي.

۸- هلته چي فرمايي: ﴿ فَأَوْرَدَهُمُ ٱلنَّارَ ﴾ پدې کي مکنيه استعاره ده څکه ورود په اصل کي په اوبوباندي دځښلو لپاره تېرېدو ته وايي نو اور يې له اوبو سره مشابه وګڼل او مشبه به حذف خوله لوازمو څخه يې يوه ته اشاره وکړه چي هغه (ورود) يعني تېرېدل دی او فرعون يې له هغه چاسره مشابه کړ څوک چي دتږو په مخ کي اوبو ته ځان رسوي چي تنده ماته کړي او په دې قول کي چي فرمايي: ﴿ وَبِئْسَ ٱلْوِرْدُ ٱلْمَوْرُودُ ﴾ تاکيد دی څکه ورود خو لپاره دتندې دماتولو اوزړه يخولو لپاره وي خو اوربيا تنده لازياتوي اوزړونه سوځوي نعوذبالله من نارجهنم.

* * *

[1] تلخيص البيان ۱۲۳

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


الله تعالى فرمايي:

﴿ ذَٰلِكَ مِنْ أَنۢبَآءِ ٱلْقُرَىٰ نَقُصُّهُۥ عَلَيْكَ ۖ مِنْهَا قَآئِمٌ وَحَصِيدٌ ﴿١٠٠﴾ وَمَا ظَلَمْنَٰهُمْ وَلَٰكِن ظَلَمُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ ۖ
فَمَآ أَغْنَتْ عَنْهُمْ ءَالِهَتُهُمُ ٱلَّتِى يَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مِن شَىْءٍ لَّمَّا جَآءَ أَمْرُ رَبِّكَ ۖ وَمَا زَادُوهُمْ غَيْرَ تَتْبِيبٍ ﴿١٠١﴾
وَكَذَٰلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَآ أَخَذَ ٱلْقُرَىٰ وَهِىَ ظَٰلِمَةٌ ۚ إِنَّ أَخْذَهُۥٓ أَلِيمٌ شَدِيدٌ ﴿١٠٢﴾ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَةً لِّمَنْ خَافَ عَذَابَ
ٱلْءَاخِرَةِ ۚ ذَٰلِكَ يَوْمٌ مَّجْمُوعٌ لَّهُ ٱلنَّاسُ وَذَٰلِكَ يَوْمٌ مَّشْهُودٌ ﴿١٠٣﴾ وَمَا نُؤَخِّرُهُۥٓ إِلَّا لِأَجَلٍ مَّعْدُودٍ ﴿١٠٤﴾ يَوْمَ يَأْتِ لَا
تَكَلَّمُ نَفْسٌ إِلَّا بِإِذْنِهِۦ ۚ فَمِنْهُمْ شَقِىٌّ وَسَعِيدٌ ﴿١٠٥﴾ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ شَقُوا۟ فَفِى ٱلنَّارِ لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَشَهِيقٌ ﴿١٠٦﴾
خَٰلِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ ٱلسَّمَٰوَٰتُ وَٱلْأَرْضُ إِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ ۚ إِنَّ رَبَّكَ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ ﴿١٠٧﴾ ۞ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ سُعِدُوا۟ فَفِى
ٱلْجَنَّةِ خَٰلِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ ٱلسَّمَٰوَٰتُ وَٱلْأَرْضُ إِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ ۖ عَطَآءً غَيْرَ مَجْذُوذٍ ﴿١٠٨﴾ فَلَا تَكُ فِى مِرْيَةٍ مِّمَّا يَعْبُدُ
هَٰٓؤُلَآءِ ۚ مَا يَعْبُدُونَ إِلَّا كَمَا يَعْبُدُ ءَابَآؤُهُم مِّن قَبْلُ ۚ وَإِنَّا لَمُوَفُّوهُمْ نَصِيبَهُمْ غَيْرَ مَنقُوصٍ ﴿١٠٩﴾ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى
ٱلْكِتَٰبَ فَٱخْتُلِفَ فِيهِ ۚ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ لَقُضِىَ بَيْنَهُمْ ۚ وَإِنَّهُمْ لَفِى شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيبٍ ﴿١١٠﴾ وَإِنَّ كُلًّا
لَّمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ رَبُّكَ أَعْمَٰلَهُمْ ۚ إِنَّهُۥ بِمَا يَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿١١١﴾ فَٱسْتَقِمْ كَمَآ أُمِرْتَ وَمَن تَابَ مَعَكَ وَلَا تَطْغَوْا۟ ۚ إِنَّهُۥ بِمَا
تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿١١٢﴾ وَلَا تَرْكَنُوٓا۟ إِلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ فَتَمَسَّكُمُ ٱلنَّارُ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِنْ أَوْلِيَآءَ ثُمَّ لَا
تُنصَرُونَ ﴿١١٣﴾ وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ طَرَفَىِ ٱلنَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ ٱلَّيْلِ ۚ إِنَّ ٱلْحَسَنَٰتِ يُذْهِبْنَ ٱلسَّيِّـَٔاتِ ۚ ذَٰلِكَ ذِكْرَىٰ لِلذَّٰكِرِينَ
﴿١١٤﴾ وَٱصْبِرْ فَإِنَّ ٱللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴿١١٥﴾ فَلَوْلَا كَانَ مِنَ ٱلْقُرُونِ مِن قَبْلِكُمْ أُو۟لُوا۟ بَقِيَّةٍ يَنْهَوْنَ عَنِ ٱلْفَسَادِ
فِى ٱلْأَرْضِ إِلَّا قَلِيلًا مِّمَّنْ أَنجَيْنَا مِنْهُمْ ۗ وَٱتَّبَعَ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ مَآ أُتْرِفُوا۟ فِيهِ وَكَانُوا۟ مُجْرِمِينَ ﴿١١٦﴾ وَمَا كَانَ
رَبُّكَ لِيُهْلِكَ ٱلْقُرَىٰ بِظُلْمٍ وَأَهْلُهَا مُصْلِحُونَ ﴿١١٧﴾ وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ ٱلنَّاسَ أُمَّةً وَٰحِدَةً ۖ وَلَا يَزَالُونَ مُخْتَلِفِينَ
﴿١١٨﴾ إِلَّا مَن رَّحِمَ رَبُّكَ ۚ وَلِذَٰلِكَ خَلَقَهُمْ ۗ وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ ٱلْجِنَّةِ وَٱلنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴿١١٩﴾ وَكُلًّا
نَّقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنۢبَآءِ ٱلرُّسُلِ مَا نُثَبِّتُ بِهِۦ فُؤَادَكَ ۚ وَجَآءَكَ فِى هَٰذِهِ ٱلْحَقُّ وَمَوْعِظَةٌ وَذِكْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿١٢٠﴾ وَقُل لِّلَّذِينَ
لَا يُؤْمِنُونَ ٱعْمَلُوا۟ عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ إِنَّا عَٰمِلُونَ ﴿١٢١﴾ وَٱنتَظِرُوٓا۟ إِنَّا مُنتَظِرُونَ ﴿١٢٢﴾ وَلِلَّهِ غَيْبُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَإِلَيْهِ يُرْجَعُ
ٱلْأَمْرُ كُلُّهُۥ فَٱعْبُدْهُ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ ۚ وَمَا رَبُّكَ بِغَٰفِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿١٢٣﴾ ﴾ هود: ١٠٠ - ١٢٣

مناسبت او تړاو:

کله چې الله دځينو انبياوو عليهم السلام کيسې راوړې اوهغه عذابونه اوهلاکتونه يې يادکړل کوم چې دهغوی په امتونو راغلي وو نودلته يې له هغو کيسو څخه مقصد پند اوعبرت راوړي ترڅو په دې شاهدوي چې له دروغجنو څخه به ژرکسات اخيستل کيږي او ورباندې به عذاب نازليږي اوپدې

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



باندي برهان اوڅرګند دليل شي چي دالله جل جلاله ملاتړ اونصرت له خپلو انبياوو او اولياووسره شته اوهمداسي په آيتونوکي دقيامت ورځ ياده شوي اوداچي خلک په دوو برخو وېشل شوي چي نېکمرغه اوبدمرغه کسان دي دسورت په پای کي عالي جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم ته دمشرکانو په کړاوونو اوربړونو دصبر امر شوی اوداچي په (حی قيوم ) ذات دي توکل وکړي.

## لغتونه:

(حصيد) رېبل شوی لوړېدلی اوله بېخه ايستل شوی لکه کښت غوندي ( تتبيب) هلاک اوخسران ته وايي (زفير) هغه ساغونډولوته وايي چي له زياتو منډو وهلو پيدا کېږي (شهيق ) ساغورځولوته وايي ليث وايي: چي (زفير) هغه چي سړی خپله سينه له ساخخه دغم اوسختي خواشيني په سبب ډکه کړي اوبيايې راوکاږي او(شهيق) داچي هغه ساپه سختي اوشدت سره راوباسي (۱) خيني دلغت پوهانو ويلي چي (زفير) دخره دهينګاري دلومړي پيل په مثال او(شهيق ) بيا دخره دآواز دآخر پای په مثال دی (محذور) پرېکړې شوی (ترکنوا) له رکون څخه اخيستل شوی اورکون ديوشي خواته ميلان اوخوښي ته وايي (زلفا) د(زلفة) جمع اودشپې يوې ټوټې ته وايي ثعلب ليکي چي: دغه دشپې اول شومي ته وايي او اصل يې له زلفی څخه اخيستل شوی چي نژدېوالي ته وايي لکه چي (وازلفت الجنة ) يعني نژدې شوی ( أترفوا) ترف هوسايې ته وايي يعني نعمت اوپراخي روزي يې موندلی(مرية) شک اوشبه بولي.

## دنزول سبب:

ابن مسعود رضی الله عنه وايي چي يوسړی پيغمبرصلی الله عليه وسلم ته راغی او ويې ويل: مادمدېنې (منورې) په ورستی برخه کي ديوې ښځي څخه پرته له دې چي ورباندي جنسي تېری وکړم (يوازي ) مچه واخيستله زه داده راغلی يم هرڅه چي غواړې په ماباندي فيصله وباسه! عمر رضی الله عنه ورته وويل: الله ستاسترکړی دی کاشکي تاپخپله نه لوڅولای رسول الله صلی الله عليه وسلم څه ورته ونه ويل اوسړی روان شو او داآيت شريف چي فرمايي: ﴿ وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ طَرَفَيِ ٱلنَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ ٱلَّيۡلِۚ إِنَّ ٱلۡحَسَنَٰتِ يُذۡهِبۡنَ ٱلسَّيِّـَٔاتِۚ ﴾ نازل شو نو رسول الله صلی الله عليه وسلم څوک پسي واستاوو هغه يې راوغوښت او داآيت شريف يې ورته ولوست(۲)

## تفسير:

﴿ ذَٰلِكَ مِنۡ أَنۢبَآءِ ٱلۡقُرَىٰ نَقُصُّهُۥ عَلَيۡكَۖ ﴾ دا(کيسې ) له احوالو دکليو دي (چي موږ يې خلک درسولانو دتکذيب اوکفرپه سبب هلاک کړي ) بيانوو موږ هغه پرتاباندي ( اې محمده ! اود وحی په توګه درته اخبارکوو )

﴿ مِنۡهَا قَآئِمٞ وَحَصِيدٞ ﴾ (خيني له هغوقريوولاړي دي (کنډوالې ددوی ) اوخيني رېبلی شوي دي ) يعني خيني هغه دي چي اهل يې هلاک شوي خو ددوی بنيان لا ولاړ اوپاتي دي اوخيني هغه دي چي بېخي له اهل سره له مينځه تللي اولکه رېبلی کښت غوندي شوي دي ﴿ وَمَا ظَلَمۡنَٰهُمۡ وَلَٰكِن ظَلَمُوٓاْ أَنفُسَهُمۡۖ ﴾ موږ ورباندي ظلم نه دی کړی (پرهلاکولو ددوی ) وليکن ظلم کړی وو دوی پرخپلو ځانونو يعني په سبب دکفر او ګناهونو دعذاب او

---

(۱) البحر ۵ /۲۵۱

(۲) القرطبي ۹ /۱۱۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



هلاک ورل او مستحق وګرځېدل ﴿ فَمَآ أَغۡنَتۡ عَنۡهُمۡ ءَالِهَتُهُمُ ٱلَّتِي يَدۡعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مِن شَيۡءٍ ﴾ نو هيڅ دفع ونکړه له دوی څخه هغه باطلو خدايانو د دوی هغه چې دوی به بلل غير له الله نه هيڅ شی (دعذاب) ﴿ لَّمَّا جَآءَ أَمۡرُ رَبِّكَ وَمَا زَادُوهُمۡ غَيۡرَ تَتۡبِيبٖ ﴾ کله چې راغی امر (حکم ،عذاب ) د رب ستا او زيات نکړ دغو خدايانو دوی ته (هيڅ شی ) غير له هلاکته ( او وراني ) ﴿ وَكَذَٰلِكَ أَخۡذُ رَبِّكَ إِذَآ أَخَذَ ٱلۡقُرَىٰ وَهِيَ ظَٰلِمَةٌ ﴾ او په شان د همدغو (هلاکتونو ) نيول د رب ستادي کله چې ونيسي الله اهل د قريو حال داچې دوی ظالمان وي (د انبياوو مکذبين وي) الله پاک فاجران او ظالمان په عذاب اخته کوي. الوسي وايي: چې په آيت شريف کې داسې وېرونه او انذار دی چې له ورايه ښکاره ښکاره ږدي ژوند هري اولکه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :(ان الله ليملى للظالم حتى اذاأخذه لم يفلته ) يعني الله پاک ظالم ته مهلت ورکوي خو کله چې يې ونيسي بيايې هيڅلکه نه خوشی کوي بيايې داآيت ولوست ﴿ إِنَّ أَخۡذَهُۥٓ أَلِيمٞ شَدِيدٌ ﴾ بېشکه نيول د الله ډېر دردناک سخت زورودي ؛ دلته په تهديدکې مبالغه راغلې ده ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَةٗ لِّمَنۡ خَافَ عَذَابَ ٱلۡأٓخِرَةِۚ ﴾ بېشکه په دې (کيسه ) کې خامخا ډېر عبرت (پند) دی د پاره د هغه چاچې د آخرت له عذابه څخه وېرېږي ﴿ ذَٰلِكَ يَوۡمٞ مَّجۡمُوعٞ لَّهُ ٱلنَّاسُ ﴾ دغه ورځ قيامت داسې يوه ورځ ده چې جمع به کړی شي پدې کې ټول خلک (د حساب ، ثواب او عذاب لپاره ﴿ وَذَٰلِكَ يَوۡمٞ مَّشۡهُودٞ ﴾ او داهغه ورځ ده چې وبهويني ټول مخلوقات د آسمان او ځمکې رومبني او وروستني . ابن عباس رضی الله عنه وايي: چې حاضر به شي نيک او فاجر ټول خلک[1] ﴿ وَمَا نُؤَخِّرُهُۥٓ إِلَّا لِأَجَلٖ مَّعۡدُودٖ ﴾ او نه به وروستی کوو موږ دا ( ورځ د قيامت ) مګر لپاره د پوره کېدو د نېټې معلومې (هغه چې د الله له لوري د فيصلې لپاره ټاکلې شوې نه به رومبی کېږي او نه به وروسته کېږي ﴿ يَوۡمَ يَأۡتِ لَا تَكَلَّمُ نَفۡسٌ إِلَّا بِإِذۡنِهِۦۚ ﴾ هغه ورځ چې راشي (هيبتناکه د قيامت (ورځ خبرې به نه کوي هيڅ نفس مګر په اذن د الله تعالی ) ﴿ فَمِنۡهُمۡ شَقِيّٞ وَسَعِيدٞ ﴾ نوځيني له دغو خلکو به بدبخته او ځيني به نيکمرغه وي لکه چې الله بل ځای فرمايي: ﴿ فَرِيقٞ فِي ٱلۡجَنَّةِ وَفَرِيقٞ فِي ٱلسَّعِيرِ ﴾ الشورى: ۷ ﴿ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ شَقُواْ فَفِي ٱلنَّارِ لَهُمۡ فِيهَا زَفِيرٞ وَشَهِيقٌ ﴾ پس هرهغه څوک چې بدبختان شوي دي نو په اور کې به وي ، وي به هغوی ته په اور کې ( له ډېرې سختۍ ) زفير(هغه په سختۍ سره د ساايستل ؛او بيرته ساګرزول) ځينو مفسرينو بيا ويلي دي چې د دوی چيغې چې په دوزخ کې به يې وهي د خرو له هنګارو سره مشابه وګڼل شوې. طبري پخپل روايت کې له قتاده څخه راوړي چې: د کافر غږ به په دوزخ کې لکه د خره غوندې وي اول به يې زفير او آخر به يې شهيق وي (سخت غږ او نرم غږ ) ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ ٱلسَّمَٰوَٰتُ وَٱلۡأَرۡضُ ﴾ همېشه به وي دوی په دغه اور کې څوچې وي آسمانونه او ځمکه. طبري وايي: چې عربو به کله هم چې کوم يو شيز په دوام سره ستايل نو به يې ويل چې داشی څوچې آسمانونه او ځمکې وي دا به هم وي پدې معنا چې تل تر تله به وي نو الله تعالی دوی ته د دوی له دود سره سمه مخاطبه وکړه . ابن زيد بيا وايي : چې معنا دا چې تر هغو به پکې وي څوچې آسمان

---

(۱) القرطبي ۹ /۹۲۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar net



آسمان او ځمکه ځمکه وي يعني همېشه او تل ترتله به پکې وي (۱) زمخشري وايي: چي پدې کي دوې وجهي دي يو داچي مقصد له آسمانونو او ځمکو څخه د آخرت ځمکي او آسمانونه دي او هغه پخپله همېشه او تل ترتله دي او دوهم داچي عبارت به له تابيد او همېشه توب څخه وي چي هيڅ پرېکړون نلري (۲) ﴿ إِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ ﴾ (مگرچي اراده وفرمايي رب ستا) دغه د اهل توحيد په شان کي استثناء ده ځکه چي د ﴿ شَقُوا ﴾ کلمه کفارو او گنهکارانو دواړو ته شامله ده نو گنهکاران موحدين به د دوزخ په اورکي پاکېږي او بيا به د رسول الله صلى الله عليه وسلم په شفاعت بيرته را ايستل کېږي او جنت ته به داخلېږي چي ورته به ويلاى شي ﴿ إِنَّ رَبَّكَ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ ﴾ (بېشکه رب ستا کونکى دى (په کمال دقدرت سره ) د هرهغه کار چي اراده يې وفرمايي ) يعني رحم او مهرباني کوي په هغه چاچي ورته اراده يې شي او همدارنگه عذاب ورکوي هغه چاته چي اراده يې شي نه څوک د هغه فيصله ماتولاى شي او نه يې حکم منع کولاى شي ﴿ وَأَمَّا ٱلَّذِينَ سُعِدُوا۟ فَفِى ٱلْجَنَّةِ خَٰلِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ ٱلسَّمَٰوَٰتُ وَٱلْأَرْضُ إِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ ﴾ او هرهغه کسان چي نېک بختان شوي دي نو همېشه به په جنت کي وي ترڅو چي وي آسمانونه او ځمکه مگرچي اراده وفرمايي رب ستا ) دغه د دوهم تولگي نېکمرغه خلگو د حال بيان دى الله دي موږ له دغه نېک بختانو څخه وگني يعني دوى به تل ترتله په جنت کي وى کي هيڅکله به ځني نه راوزي ترڅوچي دوام د ځمکو او آسمانونو وي او ياچي ترڅو د جنت او دوزخ ځمکه او آسمان وي سم له ارادي د الله تعالى سره هغه چي ورته د خلود او دوام اراده يې کړي ده ﴿ عَطَآءً غَيْرَ مَجْذُوذٍ ﴾ دغه ورکړه بخشش دى بې انتهاء او ترمالانهايه پوري به وي ﴿ فَلَا تَكُ فِى مِرْيَةٍ مِّمَّا يَعْبُدُ هَٰٓؤُلَآءِ ﴾ پس مه کېږه ته په شک کي له هغو بتانو چي عبادت يې کوي دغه کسان يعني ددې مشرکانو په عبادت کولو کي هيڅ شک مکوه ځکه چي دا گمراهان دي او دين يې فاسد دى ﴿ مَا يَعْبُدُونَ إِلَّا كَمَا يَعْبُدُ ءَابَآؤُهُم مِّن قَبْلُ ﴾ دوى عبادت نکوي مگرلکه چي عبادت به کاوو پلرونو ددوى پخوا (له دې نه يعني دوى د خپلو پلرونو تقليد کوي هيڅ دليل او برهان نلري او دغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره تسلا او دادينه او ددوى لپاره دکسات او انتقام اخيستلو اخطاردى ځکه حال ددوى په مثل د حال د پخوانيو گمراهانو او دروغجنانو دى او تاته معلومه شوه چي په هغوى څه راغلي وو نو پردوى به هم هغه راپرېوزي ﴿ وَإِنَّا لَمُوَفُّوهُمْ نَصِيبَهُمْ غَيْرَ مَنقُوصٍ ﴾ بېشکه موږ پوره ورکونکي يو دوى ته د برخي ددوى بې له نقصانه ) يعني دوى ته به د عذاب بشپړه برخه ورکړو چي نقصان به پکي نه وي ؟ ابن عباس رضى الله عنه وايي: معنا داچي هغه څه چي ددوى لپاره د خير او يا شر ليکل شوي پوره به ورکول شي (۳) ﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ فَٱخْتُلِفَ فِيهِ ﴾ او خامخا په تحقيق موږ موسى ته کتاب ورکړى وو نو اختلاف وکړشو په دغه کتاب (تورات) کي. طبري وايي: چي الله پاک رسول الله صلى الله عليه وسلم ته د تسليت په ډول فرمايي چي ته د خپل قوم د مشرکانو په تکذيب خفگان مکوه په تحقيق سره چي موږ موسى عليه السلام ته تورات ورکړى وو خو په هغه

(۱) الطبري ۱۲ / ۱۱۷
(۲) الکشاف ۲ / ۴۳
(۳) الطبري ۱۲ ۱۲۲

Bawar.net


کي هم اختلاف وکړای شو څینوهغه نه مانو اوځینو وربانديایمان راووړلکه چي ستاقوم اختلاف کوي (۱)﴿ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ لَقُضِىَ بَيْنَهُمْ ﴾ اوکه نه وای هغه حکم چي ړومبی شوی وو له ربه ستا(په تأخیردجزا ترقیامته پوري ) نو خامخافیصله به شوي وه په مینځ ددوی کي (په دنیاکي ) نوبه نیکوکارته دنیکي ثواب ورکول شوی وو او گنهگارته به دگناه عذاب ورکول شوی وو خودالله حکم پخوالاشوی چي جزابه ترقیامته پوري تأخیروي ﴿ وَإِنَّهُمْ لَفِى شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيبٍ ﴾ اوبېشکه خامخادوی په شک کي دي له قرآنه چي زړونه يې په اضطراب کي اچونکي دي (څکه نه پوهېږي چي دابه حق وي اوکه باطل؟ ﴿ وَإِنَّ كُلًّا لَّمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ رَبُّكَ أَعْمَالَهُمْ ﴾ اوبېشکه هره فرقه (دمؤمنانو اوکافرانو ) څخه خامخاپوره به ورکړي دوی ته رب ستا(جزا) دعملونوددوی (په آخرت کي ) ﴿ إِنَّهُۥ بِمَا يَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴾ بېشکه چي الله پرهغوکارونو چي دوی يې کوي ښه خبرداردی ( که کوچني وي اوکه غټ ژرده چي په هغوباندي به جزا ورکړي ﴿ فَٱسْتَقِمْ كَمَآ أُمِرْتَ وَمَن تَابَ مَعَكَ وَلَا تَطْغَوْا۟ ﴾ نومستقیم اوثابت اوسه لکه چي حکم کړی شوی تاته ( اي محمده ) اوهم مستقیم اوثابت دي اوسي) هغه څوک چي توبه يې ایستلي ده له شرک اوکفرنه او ایمان يې راوړی دی له تاسره اومه تېرېږئ له حده (چي دمحرماتو ارتکاب کوئ ) ﴿ إِنَّهُۥ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴾ بېشکه چي الله پرهغوکارونو چي تاسي يې کوئ ښه لیدونکی دی ( اوپرهغه به جزادرکړي ) ﴿ وَلَا تَرْكَنُوٓا۟ إِلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ فَتَمَسَّكُمُ ٱلنَّارُ ﴾ (اومه مائلېږئ په طرف دهغوکسانوچي ظلم يې کړی دی نو وبه رسېږي تاسي ته اور( ددوزخ ) یعني دظالمانو حاکمانو اونوروفاسقانو فاجرانو لوري ته میلان مکوئ چي تاسي به په دوزخ کي واچوي. بیضاوي وايي: چي (رکون) لږ څه میلان ته وايي یعني تاسولږڅه میلان هم ددوی لورته مکوئ چي پدغه سبب به تاسوپه اورکي ولوېږئ نوکله چي لږ میلان دهغه لوري ته چي له هغه څخه ظلم صادرشوی ددوزخ دلوېدلو سبب دی نوستاڅه گومان دی په هغه چاچي په بشپړه توگه دهغه چالوري ته چي ربښتوني ظالمان وي میلان کوي ددوی به څه حال وي ؟ ! (۲) ﴿ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِنْ أَوْلِيَآءَ ثُمَّ لَا تُنصَرُونَ ﴾ (حال داچي نه به وي تاسي ته پرته له الله هیڅ دوستان بیابه ونکړی شي درسره مرسته ) یعني نه به وي ستاسي لپاره هغه څوک چي دالله عذاب درڅخه منع کړي اوداسي څوک به ونه مومئ چي دديې بلاڅخه دژغورلو لپاره مومرستندوی شي. قرطبي وايي: چي په آیت شریف کي دديې دلالت شته چي له کفارو فاسقانو څخه دي هجران وشي او له دوی سره ملگرتیاکفردی څکه چي ملگرتیاخوله دوستي څخه وي اوکله چي څوک دظالم له وېري ورسره یاري کوي دغه په اضطراري ډول څني مستثنی دی ﴿ وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ طَرَفَىِ ٱلنَّهَارِ ﴾ (اوقائم کړه لمونځ په دواړو طرفونو دورځي ) یعني سم ودروه فرض لمنځونه سره له حقوقو په اول دورځي اوآخرکي يې مراد څني دسهار او مازیگرلمنځونه دي څکه چي دغه دورځي دوه طرفونه دي .(۳) ﴿ وَزُلَفًا مِّنَ

---

(۱) الطبري ۱۲ / ۱۲۳

(۲) البیضاوي ص: ۲۵۸

(۳) دغه دحسن بصري اوقتاده قول دی اوطبري غوره کړی اودا له ابن عباس څخه روایت شوی چي له (طرفی النهار )څخه مقصد دسهاراو مازیگر لمونځ دی.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ٱلَّيۡلِۚ ﴾ اوپه ساعاتوله شپې (چي نژدې وي ورځي ته چي مقصد ځني ماښام اوماخوستن دی ﴿ إِنَّ ٱلۡحَسَنَٰتِ يُذۡهِبۡنَ ٱلسَّيِّـَٔاتِۚ ﴾ (بېشکه چي نیکۍ بدۍ لیرې کوي ) یعني صالح اعمال چي له هغوی ځخه پنځه وخته لمنځونه دي صغیره گناهونه له مینځه وړي اوپه حدیث شریف کي راځي چي : پنځه لمنځونه کفاره دي دهغو (وړو ) گناهونو چي ترمینځ ددوی وي کله چي له لویو گناهونو ځخه پرهېز وکړای شي . مفسرین کرام وایې : چي مرادپه حسناتو سره پنځه لمنځونه دي دي او دنزول په سبب یې دلیل نیولی دی دغه دجمهورو علماوو وینادو ظاهره داده چي مرادځني عام گناهونه واخیستل شي اودغه دابن کثیر غوره دی چي معنایې داچي نیک کارونه تېرشوي گناهونه لیری کوي لکه چي په حدیث شریف کي راځي : (مامن مسلم یذنب ذنباویصلی رکعتین الاغفرله)(۱) یعني هرمسلمان چي کومه (صغیره )گناه وکړي اودوه رکعته لمونځ وگذاري ورته ببښنه کېږي ﴿ ذَٰلِكَ ذِكۡرَىٰ لِلذَّٰكِرِينَ ﴾ دغه (ذکرشوی استقامت اودلمانځه ساتنه ) پندونه دي لپاره دپند قبلونکو (اوارشاددی لپاره دمسترشدینو ) ﴿ وَٱصۡبِرۡ فَإِنَّ ٱللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجۡرَ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴾ اوصبروکړه ( اې محمده ! په زیان در رسولو دمشرکانو اونورو تکالیفو الله درسره دی ) نوبېشکه الله نه ضائع کوي ثواب دنېکي کونکو ﴿ فَلَوۡلَا كَانَ مِنَ ٱلۡقُرُونِ مِن قَبۡلِكُمۡ أُوْلُواْ بَقِيَّةٍ يَنۡهَوۡنَ عَنِ ٱلۡفَسَادِ فِي ٱلۡأَرۡضِ ﴾ نو ولي نه وو(یعني نه و ) له اهله دهغو زمانوچي وو پخواله تاسي نه خاوندان دفکر اوعقل چي منع کول یې خلک له کولو دفساد په ځمکه کي ﴿ إِلَّا قَلِيلٗا مِّمَّنۡ أَنجَيۡنَا مِنۡهُمۡۗ ﴾ مگرچي منع وکړه لږ له هغو خلکو نه چي خلاص کړل موږ(دوی ) له عذاب دهغوپخوانیو نه؛ په البحرالمحیط کي وایې: چي (لولا ) په آیت کي دتحضیض اوهڅوني لپاره ده چي تأسف اوخواشیني پکي پرته ده لکه داقول چي فرمایې : ﴿ يَٰحَسۡرَةً عَلَى ٱلۡعِبَادِۚ ﴾[یس ۳۰] غرض له آیت نه تأسف په هغو امتونو کول دی چي هدایت یې ونه موند لکه دنوح ، عاد ، ثمود او نورچي تېرشول (۲) ﴿ وَٱتَّبَعَ ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ مَآ أُتۡرِفُواْ فِيهِ ﴾ اومتابعت وکړهغوکسانو چي ظلم یې کړی وو دهغي لارې چي آسوده کړی شوي وو دوی په هغې کي (په شهوتونو ، نعمتونو او لذائذوباندي اخته اودنیایې ترآخرت غوره کړې وه ) ﴿ وَكَانُواْ مُجۡرِمِينَ ﴾ او وودوی گنهکاران (اوپه گناه یې اصرار کاوو ) ﴿ وَمَا كَانَ رَبُّكَ لِيُهۡلِكَ ٱلۡقُرَىٰ بِظُلۡمٖ وَأَهۡلُهَا مُصۡلِحُونَ ﴾ اوله سره نه دی رب ستا (پدې یې عادت جاري نه دی ) چي هلاک کړې قریې په ظلم سره حال داچي وي اهل ددغوقریو صالحان ؛ځکه چي الله تعالی له ظلم ځخه منزه دی اوپه تحقیق سره الله جل جلاله دوی دکفر اوگناهونو په سبب هلاکوي ﴿ وَلَوۡ شَآءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ ٱلنَّاسَ أُمَّةٗ وَٰحِدَةٗۖ ﴾ اوکه اراده فرمایلي وي رب ستانو هرومروبه یې گرزولي وو داخلک ټول سره یوامت ( لارموندونکي مؤمنان ؛ خوداسي یې ونکړل چي حکمت یې پکي درلود ﴿ وَلَا يَزَالُونَ مُخۡتَلِفِينَ إِلَّا مَن رَّحِمَ رَبُّكَۚ ﴾ (اوهمېشه به وي دوی اختلاف کونکي (په دین کي ) مگرهغه ځوک چي رحم

(۱) المختصر۲ / ۲۳۵

(۲) البحر۵ / ۲۷۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

ورباندي وکړي رب ستا ) يعني تل ترتله به دوی په دين کي ) اختلاف کونکي وي څوک يهودي ، څوک نصراني اوڅوک به مجوسي وي مگر هغه چي الله له خپله فضله ورته هدايت کړی وي اوهغوی اهل حق دي ﴿ وَلِذَٰلِكَ خَلَقَهُمْ ﴾ (اولپاره ددې (اختلاف ) الله دوی پيداکړي دي ) لام دعاقبت لپاره دی يعني دوی بې ددې لپاره پيداکړي چي پايله بې اختلاف وي څوک بدمرغه اوڅوک بيانېکمرغه وي . طبري وايې : چي دوی يې پدغه اختلاف دشقاء اوسعادت لپاره پيداکړي يوه ډله ددوی به په جنت کي وي اوبله ډله په دوزخ کي(۱) ﴿ وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴾ (اوتمامه پوره شوه کلمه درب ستاچي خامخاډک به کړم هرومرو دوزخ له پېريانو اوانسانانوسره گډ ) يعني دالله جل جلاله حکم بشپړ اوفيصله نافذه شوه چي جهنم به دپېريانانو اوانسانانو له کفارو فجارو څخه ډکوي. الوسي وايې: چي دجملې په ضمن کي دقسم معناپرته وه ځکه نوپه لام سره راوړل شوه چي وېې فرمايل: ﴿ لَأَمْلَأَنَّ ﴾ اولکه چي فرمايلي يې وي زمادي قسم وي چي دوزخ به دابليس له پلويانوهغوی که پېريان اوکه انسانان وي ډک کړم ﴿ وَكُلًّا نَّقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنبَاءِ الرُّسُلِ مَا نُثَبِّتُ بِهِ فُؤَادَكَ ﴾ او داټول اخبار لولو پرتا ( اې محمده ! ) له خبرونو دپيغمبرانو (تېروشوو ) هغه چي کلکوو په هغه سره ستازړه (لپاره دتثبيت په اداکولو درسالت )څوچي ستالپاره دهغوی کړنلاري اوپېښي سرمشق وي اوته هم ددوی په شان صبر وکړې ﴿ وَجَاءَكَ فِي هَٰذِهِ الْحَقُّ وَمَوْعِظَةٌ وَذِكْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴾ اوراغلی دی تاته په دغو اخبارونو کي حق (رښتيايقيني ) اوپند اويادونه دمؤمنانولپاره ؛ مؤمنان بې ښکه ځانگړي يادکړل چي دوی دقرآن په مواعظو گټه اوپنداخلي. ﴿ وَقُل لِّلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ اعْمَلُوا عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ إِنَّا عَامِلُونَ ﴾او ووايه (اې محمده!) هغوکسانوته چي ايمان نه راوړي چي عمل وکړئ پرځای خپل (يعني خپله لاره دکفرونيسئ ) بېشکه موږ هم عمل کونکي يوپه حال خپل (چي اسلام دی ) دغه کلمه امر اومعنايې تهديددی او وېرول دي ﴿ وَانتَظِرُوا إِنَّا مُنتَظِرُونَ ﴾ (اوانتظارکوئ بېشکه موږ هم انتظارکونکي يو ) دايوبل تهديد دی يعني تاسي انتظاروکړئ چي موږ ته څه راپېښېږي موږ انتظار باسوچي پرتاسو څرنگه دالله عذاب راپرېوزي؟ ﴿ وَلِلَّهِ غَيْبُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ اوخاص الله لره دی (علم په) پټو دآسمانونو او(په پټو د )ځمکي (هم) داهرڅه دالله په قدرت اوعلم کي دي ﴿ وَإِلَيْهِ يُرْجَعُ الْأَمْرُ كُلُّهُ ﴾ اوهم ده ته بيرته گرځولی شي ټول کار (دهرشي نوله هغه چاڅخه چي عصيان کوي کسات اخلي اوهغه چاته ثواب ورکوي چي اطاعت يې کوي پدې کي درسول الله صلی الله عليه وسلم لپاره دادينه اودکفارو لپاره دانتقام تهديد دی ﴿ فَاعْبُدْهُ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ ﴾ نوعبادت کوه دالله (يوازي الله ستالپاره کافي دی ﴿ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴾ (اوندی رب ستابې خبره دهغوکارونو څخه چي تاسي يې کوئ ) يعني پرالله باندي دبندگانو اعمال پټ نه دي هرچاته به له خپل عمل سره سمه سزا ورکړي.

(۱) الطبري ۱۲ / ۱۴۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar net



بلاغت:

۱- ﴿ وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ وَلَٰكِن ظَلَمُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ ﴾ دلته دسلب طباق دی.

۲- پدې کلام کې چې فرمايي: ﴿ إِذَآ أَخَذَ ٱلْقُرَىٰ ﴾ دمجاز صنعت دی ځکه چې مراد ځني (أهل القری) يعني ذکرد محل اومراد ځني حال دی.

۳- په دې برخه دآيت شريف کې چې فرمايلي يې دي ﴿ مِنْهَا قَآئِمٌ وَحَصِيدٌ ﴾ دلته يې دکليو پاتې شوني اودبوالونه ولاړ له داسي کښت سره مشابه وګڼل هغه چې ولاړوي اوهغه هلاک شوی اهل يې له هغه کښته سره مشابه کړل چې په لور رېبل شوی اوهيڅ اثر يې نه معلوميږي نو دغه مکنيه استعاره ده.

۴- ﴿ شَقِيٌّ وَسَعِيدٌ ﴾ دلته دطباق صنعت چې له بديعي محسناتو څخه يودی راغلی دی.

۵- ﴿ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ شَقُوا۟ ... وَأَمَّا ٱلَّذِينَ سُعِدُوا۟ ﴾ دلته لف اونشر مُرتب دی.

۶- کله چې الله تعالی فرمايي: ﴿ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ ﴾ کلمه دلته له قضا اوقدر څخه کنايه راغلي ده.

۷- ﴿ إِنَّ ٱلْحَسَنَٰتِ يُذْهِبْنَ ٱلسَّيِّـَٔاتِ ﴾ دلته بيا دطباق صنعت دی.

۸- پدې کلام کې چې فرمايي: ﴿ ذَٰلِكَ ذِكْرَىٰ لِلذَّٰكِرِينَ ﴾ دلته داشتقاق جناس دی.

تنبيه:

په کوټلي توګه آيتونه ناطق دي چې تل ترتله جنتيان په جنت کې اودوزخيان په دوزخ کې پاتې کيږي او پدغه سورت کې په مشيت سره استثناء راغلی او دقرآني اسلوبو داډول استعمال په ثبوت او استمرار باندې ددلالت کولو لپاره دی اوپدې کې دانکته نغښتې ده چې دغه ټولي چاري دالله جل جلاله په مشيت سره دي که وغواړي هغه به بدلي کړي دالله له مشيت اورضا څخه هيڅ شی وتلی نه دی ، ايمان اوکفر ، سعادت اوشقاوت ، وتل اوخلود داټول دالله جل جلاله په مشيت اورضا پوري بالکل تړلي دي

فائده اوګټه:

دقرآني بلاغت په هکله شهاب يوې لطيفې ته اشاره کړې هغه داچې دخيرپه کارونو امرکول يې بواري دپيغمبر صلی الله عليه وسلم ته په يوازنۍ توګه امرفرمايلی که څه هم په معناکې عام وي لکه: ﴿ فَٱسْتَقِمْ كَمَآ أُمِرْتَ وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ وَٱصْبِرْ ﴾ اوپه منهياتوکې بيا دامت لپاره دجمعي صيغه راوړي لکه: ﴿ وَلَا تَطْغَوْا۟ وَلَا تَرْكَنُوٓا۟ إِلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ ﴾ اوداسي نور دابې په عنايه کې ليکلي دي.

دالله تعالی په مرسته دهود دسورت تفسير بشپړ شو

* * *

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar net


# د(يوسف )سورت مكي او يوسل يو ولس آيتونه لري

## د سورت په وړاندي:

ديوسف سورت يو دهغو مكي سورتونو څخه دی چي د انبياوو كيسې يې راوړي اوپدې سورت كي يوازي دالله دنبي يوسف بن يعقوب كېسه راغلي او دهغه دهر ربړونه اوسختي چي دخپلو ورونو او نوروله پلوه ګاللي دمصر دعزيز په انګركي په بنديخانه (محبس ) كي اودښځو په دوكوفريبونو كي څوچي الله تعالى هغه له دې ګردو مشكلاتو وژغوره اومقصدپكي درسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره داډينه ده چي كوم تكاليف اومشكلات له خپلو ، پردو ورته رسېږي ترده له مخه حضرت يوسف عليه السلام ته هم رسېدلي وو.

په دې مبارک سورت كي دالفاظو ، تعبيرونو اداء اودكيسې په وړاندي كولوكي عجيبه ځانګړي خوندور اسلوب كارېدلى چي لطافت اوباريكي يې له ساه اخيستوسره داسي جوخته ښكته ، پورته كېږي لكه چي وينه په رګونو كي دهغې نرم والى اوخوږتوب زړه ته هسي لاره مومي لكه چي روح بدن ته داكه څه هم مكي سورت دى هغه چي غالبًاپكي تهديد اواخطار وړاندي كېږي خودغه سورت په دې هكله له نورومكي سورتونو څخه ګوښې بڼه لري داسورت بېخي نرم اوپاسته اسلوب چي خوراخوندور ، آسانه روان اوښايسته دى خپل كړی اودرحمت ، الفت , ميني اورأفت فضا ورباندي خپره ده خكه نو خالدبن معدان وايې : چي ديوسف عليه السلام اومريم رضي الله عنهاسورتونه به جنتيان دساتېري لپاره لولي عطاء وايې چي : كه غمجن سړی سورت يوسف ولولي نوخوشحاله به شي (۱) ، دغه مبارک سورت په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندي وروسته دهودله سورت څخه خورادناخوالو په موده كي نازل شوی هغه دخواشيني اوخفګان وخت چي په سترپيغمبر عليه السلام باندي دهغه په ژوندانه اوپرمؤمنانوباندي راغلى ووپه ځانګړي توګه چي دوه مرستندويان يې له لاسه وركړل يويې مهربانه اومباركه مېرمن خديجة رضى الله عنها اوبل يې تره ابو طالب چي دده لپاره ښه مددګاران اومرستيالان وو ددوى له مړيني وروسته تكاليف اوربړونه په رسول الله صلى الله عليه وسلم اومؤمنانو دومره زيات شول چي دغه كال ته (عام الحزن) يعني دخفګان اوغم كال وويل شو.

درسول الله صلى الله عليه وسلم دژوندانه په دې ترخه اولانجمن بهيركي چي پيغمبر اومؤمنانو دوېرې ، ترهي اوغربت وخت دجهالت دورې دقريشو په ناپخلاتوب ، انقطاع اوشلون كي تېر اوو الله تبارک وتعالى دغه سورت دتسليت لپاره ورته رانازل كړ ترڅويې ورباندي پرهارونه تكور اودردونه آرام كړي چي درسولانو كيسې واوري او لكه چي الله تعالى هغه ته وربښيې چي اې محمده ! پدې مه خوابدی كېږه چي ستاقوم ستاتكذيب وكړ اودرته تكاليف يې درسول چي وروسته له سختي څخه آساني اوسوكالى شته وروسته له تنګسيا څخه پراخي وي ستا وروريوسف ته وګوره ژورفكر وكړه ! چي هغه ته څومره محنتونه او ازموينتونه ورپېښ شول څه ربړونه اوتكاليف يې وګالل دورونو دكركي ، حسد اودهغوى خُلل اوجفاچي په كوهي كي يې وغورځاوو اوبياهغه مصيبت اومحنت چي دعزيز مېرمني دعشق اړيكي ورسره ونښلولې اوبيايې ځان ته راوغوښت اودفتنې اوتېرايستني تولي فتنې اوبهانې يې په كاراچولې اوبيادښځانې زحمتونه اوله دې په وروسته بياهغه عزت اوپراخ عيش وګوره چي كله هغه دعقيدې په لاره كي په تكاليفوصبروكړ نوالله هغه دښځانې له تورو پنجرو څخه دپاچهي قصرته ولېږداوو اودمصرپه هيواد كي يې عزيز وګماړو دمصرخزانې ورته حواله شوې په خلكو كي عزتمن اومنلى شخصيت جوړشو همداسي زه له خپلو دوستانو سره چي زماپه ازموينه صبروكړي چلند كوم نواكه

(۱) حاشية الصاوي على الجلالين ۲/ ۲۳۳

Bawar.net



پکه خپل خان په تکلیفونو روږدي اوډتیرو انبیاوو تکلاره ونیسه ﴿ فَاصۡبِرۡ كَمَا صَبَرَ أُوْلُواْ ٱلۡعَزۡمِ مِنَ ٱلرُّسُلِ ﴾ [الاحقاف ۳۵] ﴿ وَٱصۡبِرۡ وَمَا صَبۡرُكَ إِلَّا بِٱللَّهِۚ وَلَا تَحۡزَنۡ عَلَيۡهِمۡ وَلَا تَكُ فِي ضَيۡقٖ مِّمَّا يَمۡكُرُونَ ﴾ [النحل: ۱۲۷].

همداسي دیوسف علیه السلام کیسه درسول الله صلی الله علیه وسلم لپاره دتکلیفونو دزغملو لپاره تسلا اوپکي دالفت ، راحت ، اواطمینان زېری شته دی چي که هرڅوک دانبیاوو علیهم السلام په لاره درومي نو اروموبه له زحمتونو وروسته راحتونه ویني په تنګسیاپسي ورته پراخي رادرومي اوله سختي بعد آسانتیا ویني پدې سورت کي نورډېرپندونه اوعجیبه نادر اخبار اوپېښي نغښتي دي ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَذِكۡرَىٰ لِمَن كَانَ لَهُۥ قَلۡبٌ أَوۡ أَلۡقَى ٱلسَّمۡعَ وَهُوَ شَهِيدٞ ﴾ [ق: ۳۷].

دغه دسورت فضا اودهغه رموز اواشارې دي دنصرت دنژدې والي زېری ورکوي کله چي څوک صبر خپل کړي اودانبیاوو علیهم السلام په پله پل کېږدي اودمخلصو دعوتګرانو په لاره ولاړشي دغه کیسه دزړه داد اودېرهارونو تکوردی.

دقرآنکریم دود اوعادت دادی چي یوه کیسه توته توته څوځایه تکرار دپند اوعبرت لپاره بیانوي خوپه لنده توګه وی پوره تفصیل پکي نه وي ترڅونوري کړی، بې هم بشپړي کړي اوپرته له دې چي اوږدونکی خني مورښي واوري خودیوسف علیه السلام دکیسې تولي حلقې (کړی) یې یوځای دلته په خورا تفصیل سره یادي کړې او دنورو کیسو په شان یې توته توته نه دی راوړی ترڅو دقرآنکریم اعجاز ته په مجمل اومفصل یاد ایجاز او اطناب حالت کي اشاره وکړي فسبحان الملک العلی الوهاب.

علامه قرطبي وایې: چي الله جل جلاله دانبیاوو علیهم السلام کیسې په مکرر ډول متضادو الفاظو او مختلفو ډولونو پداسي حال کي چي یوه معناافاده کوي راوړي چي دبلاغت اوبیان لوړي درجي لري خودیوسف علیه السلام کیسه یې په تکرارنده راوړي اومخالفین توان نلري چي دمکرر اویادغیر مکرر قرآني بیان معارضه وکړي نو دقرآن کریم اعجاز هغه چاته چي پکي سوچ کوي ښخي څرګنده ی او الله پاک رښتیافرمایې: ﴿ لَقَدۡ كَانَ فِي قَصَصِهِمۡ عِبۡرَةٞ لِّأُوْلِي ٱلۡأَلۡبَٰبِ ﴾.

***

الله تعالی فرمایې:

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ الٓرۚ تِلۡكَ ءَايَٰتُ ٱلۡكِتَٰبِ ٱلۡمُبِينِ ۝١ إِنَّآ أَنزَلۡنَٰهُ قُرۡءَٰنًا عَرَبِيّٗا لَّعَلَّكُمۡ تَعۡقِلُونَ ۝٢ نَحۡنُ نَقُصُّ عَلَيۡكَ أَحۡسَنَ ٱلۡقَصَصِ بِمَآ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ هَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانَ وَإِن كُنتَ مِن قَبۡلِهِۦ لَمِنَ ٱلۡغَٰفِلِينَ ۝٣ إِذۡ قَالَ يُوسُفُ لِأَبِيهِ يَٰٓأَبَتِ إِنِّي رَأَيۡتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوۡكَبٗا وَٱلشَّمۡسَ وَٱلۡقَمَرَ رَأَيۡتُهُمۡ لِي سَٰجِدِينَ ۝٤ قَالَ يَٰبُنَيَّ لَا تَقۡصُصۡ رُءۡيَاكَ عَلَىٰٓ إِخۡوَتِكَ فَيَكِيدُواْ لَكَ كَيۡدًاۖ إِنَّ ٱلشَّيۡطَٰنَ لِلۡإِنسَٰنِ عَدُوّٞ مُّبِينٞ ۝٥ وَكَذَٰلِكَ يَجۡتَبِيكَ رَبُّكَ وَيُعَلِّمُكَ مِن تَأۡوِيلِ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ٱلْأَحَادِيثِ وَيُتِمُّ نِعْمَتَهُۥ عَلَيْكَ وَعَلَىٰٓ ءَالِ يَعْقُوبَ كَمَآ أَتَمَّهَا عَلَىٰٓ أَبَوَيْكَ مِن قَبْلُ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْحَٰقَ ۚ إِنَّ رَبَّكَ عَلِيمٌ حَكِيمٌ
﴿٦﴾ ۞ لَّقَدْ كَانَ فِى يُوسُفَ وَإِخْوَتِهِۦٓ ءَايَٰتٌ لِّلسَّآئِلِينَ ﴿٧﴾ إِذْ قَالُوا۟ لَيُوسُفُ وَأَخُوهُ أَحَبُّ إِلَىٰٓ أَبِينَا مِنَّا وَنَحْنُ
عُصْبَةٌ إِنَّ أَبَانَا لَفِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٨﴾ ٱقْتُلُوا۟ يُوسُفَ أَوِ ٱطْرَحُوهُ أَرْضًا يَخْلُ لَكُمْ وَجْهُ أَبِيكُمْ وَتَكُونُوا۟ مِنۢ بَعْدِهِۦ قَوْمًا
صَٰلِحِينَ ﴿٩﴾ قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ لَا تَقْتُلُوا۟ يُوسُفَ وَأَلْقُوهُ فِى غَيَٰبَتِ ٱلْجُبِّ يَلْتَقِطْهُ بَعْضُ ٱلسَّيَّارَةِ إِن كُنتُمْ فَٰعِلِينَ
﴿١٠﴾ قَالُوا۟ يَٰٓأَبَانَا مَا لَكَ لَا تَأْمَ۫نَّا عَلَىٰ يُوسُفَ وَإِنَّا لَهُۥ لَنَٰصِحُونَ ﴿١١﴾ أَرْسِلْهُ مَعَنَا غَدًا يَرْتَعْ وَيَلْعَبْ وَإِنَّا لَهُۥ
لَحَٰفِظُونَ ﴿١٢﴾ قَالَ إِنِّى لَيَحْزُنُنِىٓ أَن تَذْهَبُوا۟ بِهِۦ وَأَخَافُ أَن يَأْكُلَهُ ٱلذِّئْبُ وَأَنتُمْ عَنْهُ غَٰفِلُونَ ﴿١٣﴾ قَالُوا۟ لَئِنْ
أَكَلَهُ ٱلذِّئْبُ وَنَحْنُ عُصْبَةٌ إِنَّآ إِذًا لَّخَٰسِرُونَ ﴿١٤﴾ فَلَمَّا ذَهَبُوا۟ بِهِۦ وَأَجْمَعُوٓا۟ أَن يَجْعَلُوهُ فِى غَيَٰبَتِ ٱلْجُبِّ ۚ وَأَوْحَيْنَآ
إِلَيْهِ لَتُنَبِّئَنَّهُم بِأَمْرِهِمْ هَٰذَا وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿١٥﴾ وَجَآءُوٓ أَبَاهُمْ عِشَآءً يَبْكُونَ ﴿١٦﴾ قَالُوا۟ يَٰٓأَبَانَآ إِنَّا ذَهَبْنَا نَسْتَبِقُ
وَتَرَكْنَا يُوسُفَ عِندَ مَتَٰعِنَا فَأَكَلَهُ ٱلذِّئْبُ ۖ وَمَآ أَنتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا وَلَوْ كُنَّا صَٰدِقِينَ ﴿١٧﴾ وَجَآءُو عَلَىٰ قَمِيصِهِۦ
بِدَمٍ كَذِبٍ ۚ قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ أَنفُسُكُمْ أَمْرًا ۖ فَصَبْرٌ جَمِيلٌ ۖ وَٱللَّهُ ٱلْمُسْتَعَانُ عَلَىٰ مَا تَصِفُونَ ﴿١٨﴾ وَجَآءَتْ سَيَّارَةٌ فَأَرْسَلُوا۟
وَارِدَهُمْ فَأَدْلَىٰ دَلْوَهُۥ ۖ قَالَ يَٰبُشْرَىٰ هَٰذَا غُلَٰمٌ ۚ وَأَسَرُّوهُ بِضَٰعَةً ۚ وَٱللَّهُ عَلِيمٌۢ بِمَا يَعْمَلُونَ ﴿١٩﴾ وَشَرَوْهُ بِثَمَنۭ بَخْسٍ
دَرَٰهِمَ مَعْدُودَةٍ وَكَانُوا۟ فِيهِ مِنَ ٱلزَّٰهِدِينَ ﴿٢٠﴾ وَقَالَ ٱلَّذِى ٱشْتَرَىٰهُ مِن مِّصْرَ لِٱمْرَأَتِهِۦٓ أَكْرِمِى مَثْوَىٰهُ عَسَىٰٓ أَن
يَنفَعَنَآ أَوْ نَتَّخِذَهُۥ وَلَدًا ۚ وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِى ٱلْأَرْضِ وَلِنُعَلِّمَهُۥ مِن تَأْوِيلِ ٱلْأَحَادِيثِ ۚ وَٱللَّهُ غَالِبٌ عَلَىٰٓ
أَمْرِهِۦ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢١﴾ وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهُۥٓ ءَاتَيْنَٰهُ حُكْمًا وَعِلْمًا ۚ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِى ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾

يوسف: ١ - ٢٢

## لغتونه:

(المبين) څرګنده ښکاره (القصص) کیسې په لغت کي (قصة) پرله پسې اوپه اصطلاح کي په خبره پسي بله خبره چي کیسه ترې جوړه شي اوپه آیت کي راځي: (وقالت لاخته قصیه) یعني دهغه پل پسي واخله اومراددلته له (قصص) څخه هغه اخباردي چي الله پاک موږ ته پخپل عزیزکتاب کي کیسه کړیده (الرؤیا) دخوب لیدلوته وایي اوپه ویښه اوبیداري لیدلوته رؤیت وایي. الوسي لیکي: چي د (رای) حکمي مصدر رؤیا اودسترګولیدلو (بصري) مصدرته رؤیت وایي ښکه نومتنبي وایي: ( ورؤیاک أحلی فی العیون من الغمض ) (١) یعني ستالیدل په رڼوسترګو ترپټوسترګو خوندوردي (یجتبیک) اجتباء غوره کول او اصل یې له (جبیت الیشئ) څخه اخیستل شوی چي حصول او موندلوته وایي (عصبة) تولی ته وایي. فرآء وایي: چي معنایې ترلسوکسانو زیات کسان اوعصابة هم دغه شمېرته وایي اویاتردې زیاتوکسانوته (أطرحوه) ویې غورځوئ (غیابة الجب) دکوهي تل او ښکه یې غیابة بولي چي له سترګوڅخه پناه دی (یرتع) پرېمانه خواړه (خوندور) خواړه خوړل. راغب وایي: چي رتع په حقیقت چي دچارپایانوخوړلوته وایي اوهله دانسانانو لپاره استعاره راوړل کېږي کله چي دډېرخوراک ښیني مقصد وي.

(١) روح المعاني ١٢ / ١٧٩.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



خنساء ویلي دي: ترتع مارتعت حتی اذاذکرت * فانماهی اقبال وادبار(۱) (السیارة) مسافرین ( سولت) ښایسته کړي دي (واردهم) هغه چي اوبه لټوي ترڅو خلک ورباندي اوبه کړي.

دنزول سبب:

روایت کېږي چي یهودانو له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه وپوښتل چي دیوسف علیه السلام اودهغه دوروڼو ترمینځ چي څه پېښ شوي په دې هکله دي ورته کیسه وکړي نو الله جل جلاله داآیتونه نازل کړل چي دغه سورتورباندي مشتمل دی.

تفسیر:

﴿الٓر﴾ دغه دقرآنکریم اعجاز ته اشاره ده څکه له دغو توروڅخه دقرآنکریم آیتونه جوړشوي خوبیاهم معجزدي بل څوک دداسي کلام دجوړولو توان نلري ﴿تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْكِتَٰبِ ٱلْمُبِينِ﴾ (داآیتونه دي دڅرګند کتاب) یعني دغه آیتونه چي پرتانازل شوي اې محمده! دادمعجز کتاب آیتونه دي هغه چي دلائل اوحجج یې څرګند، معناګاني یې خورا روښانه، حقائق یې له ورایه ښکاره اودقائق یې نه پټېدونکي دي ﴿إِنَّآ أَنزَلْنَٰهُ قُرْءَٰنًا عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ﴾ بېشکه موږ نازل کړی دی داکتاب پداسي حال کي چي قرآن عربي دی دپاره ددې چي تاسي پوه شئ (چي دغه معجز کتاب دبشر له لوري نه بلکه دمقتدر الله کلام دی چي دهغه رب العالمین له خوا دوحی په توګه رانازلېږي ﴿نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ أَحْسَنَ ٱلْقَصَصِ﴾ (موږ لولوپرتا باندي ډېره ښه کیسه ) یعني اې محمده! موږتاته دتېرو امتونو اخبار په رښتوني کلام کي در اوروو چي نهایت أحسن بیان دی ﴿بِمَآ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانَ﴾ په سبب دوحی زموږ تاته دغه قرآن (معجز) ﴿وَإِن كُنتَ مِن قَبْلِهِۦ لَمِنَ ٱلْغَٰفِلِينَ﴾ اوبېشکه شان دادی چي وې ته پخوا( له نزوله ) ددې قرآن خامخاله ناخبرانو(ندی اورېدلی وو اوندی لوستلی څکه چي ستالیک اولوست نه وو) ﴿إِذْ قَالَ يُوسُفُ لِأَبِيهِ يَٰٓأَبَتِ إِنِّي رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا وَٱلشَّمْسَ وَٱلْقَمَرَ رَأَيْتُهُمْ لِي سَٰجِدِينَ﴾ (یادکړه هغه وخت چي وویل: یوسف خپل پلار(یعقوب) ته اې پلاره زما ابېشکه ماولیدل(په خوب) کي یوولس ستوري اولمر اوسپوږمۍ چي ماته سجده کونکي وو ) له همدې خایه کیسه پیلېدونکي ده. ابن عباس رضی الله عنهما وایي: چي په دوی کي دخوب لیدل دوحی په ډول وو(۲) مفسرین کرام وایي: چي یوولس ستوري یې یوولس ورونه اولمر، سپوږمۍ یې مور اوپلار وو اوپدې وخت کي دحضرت یوسف علیه السلام عمر دوولس کاله وو اوددې خوب اوهغه ملګرتوب ترمینځ چي بیاله خپل پلار او وروڼو سره په مصر کي یوځای شو څلوېښت کاله موده وه(۳) ﴿قَالَ يَٰبُنَيَّ لَا تَقْصُصْ رُءْيَاكَ عَلَىٰٓ إِخْوَتِكَ﴾ وویل: (یعقوب) اې زویکیه زمامه بیانوه خوب خپل وروڼو خپلوته ﴿فَيَكِيدُوا۟ لَكَ كَيْدًا﴾ نو(ستره) حیله به وکړي دوی (دهلاک)

(۱)خنساء دهغي غواپه هکله وایي چي زوی (خوسی) یې ورک وي کله چي هغه یې هېروي نوخوراک زیات په خوند کوي او چي وریې یادشي مخ اوشاته لاړه شي دامثال هغې دخپل وروږصخر دبېلتون په وخت کي راوړی دی.

(۲)الطبري ۱۵۱/۱۲

(۳)الصاوي علی الجلالین ۲۳۴/۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تاته په حیله کولو سره (چي ته به يې مخنيوى نشې کولاى ) ﴿إِنَّ ٱلشَّيۡطَٰنَ لِلۡإِنسَٰنِ عَدُوّٞ مُّبِينٞ﴾ بېشکه چي شیطان انسان ته ښکاره دښمن دى ؛ ابوحيان وايي: چي يعقوب عليه السلام ديوسف عليه السلام له خوب څخه پدې ويوهېدو چي الله پاک به يوسف عليه السلام ته نبوت ورکړي په حکمت به يې ونازوي اوددارينو شرافت به ورپه برخه کړي نو دهغه دورونو له حسداو کينې څخه ورباندي ووېرېدو اوبيايې هغه دخوب له ځرګندولو څخه منع کړ(۱) ﴿وَكَذَٰلِكَ يَجۡتَبِيكَ رَبُّكَ﴾ اوهمداسي (چي دغه خوب يې درولید ) غوره به کړي تارب ستا ﴿وَيُعَلِّمُكَ مِن تَأۡوِيلِ ٱلۡأَحَادِيثِ﴾ وبه ښيي تاته له تعبيرونو څخه ﴿وَيُتِمُّ نِعۡمَتَهُۥ عَلَيۡكَ وَعَلَىٰٓ ءَالِ يَعۡقُوبَ﴾ اوپوره به کړي نعمت خپل پرتااوپر(نوري ) کورنۍ ديعقوب ﴿كَمَآ أَتَمَّهَا عَلَىٰٓ أَبَوَيۡكَ مِن قَبۡلُ إِبۡرَٰهِيمَ وَإِسۡحَٰقَ﴾ لکه چي پوره کړى يې دى دانعمت پر دوو پلرونو ستا(نيکه او ورنيکه) پخوا له تانه چي ابراهيم دى اواسحاق دى ﴿إِنَّ رَبَّكَ عَلِيمٌ حَكِيمٞ﴾ بېشکه چي رب ستاښه عالم دى (په هغه چاچي دفضل ورکړى ) ښه حکمت والادى (دخلګو داموروپه تدبير سره ) ﴿لَّقَدۡ كَانَ فِي يُوسُفَ وَإِخۡوَتِهِۦٓ ءَايَٰتٞ لِّلسَّآئِلِينَ﴾ خامخاپه تحقيق چي ووپه (کيسې د ) يوسف او دده په (۱۱) ورونوکي دلائل د(قدرت دالله) لپاره دپوښتونکو ﴿إِذۡ قَالُواْ لَيُوسُفُ وَأَخُوهُ أَحَبُّ إِلَىٰٓ أَبِينَا مِنَّا﴾ يادکړه هغه وخت چي وويل: دغو (ورونو يوبل ته) خامخايوسف او وروريې (بنيامين ) دېرګران دي پلار زموږ ته له موږنه) دغه لومړنى محنت دى چي يوسف عليه السلام ته پېښېږي ورونويې داسي وپتېيله چي دپلار مينه له دوى دواړوسره ښېخي حقيقت دى اوچي وروريې هم ورسره يادکړځکه چي ددوى دواړو مور يوه وه هسي خودوى تول دپلار له خوا سره ورونه وو ﴿وَنَحۡنُ عُصۡبَةٌ﴾ حال داچي موږقوتناکه ډله يو(په کټه اوتاوان بريو نودمينې مستحق خو موږيو، نه داماشومان) ﴿إِنَّ أَبَانَا لَفِي ضَلَٰلٖ مُّبِينٍ﴾ بېشکه پلار زموږ خامخاپه ښکاره خطاکي دى (چي يوسف او ورور يې ترموږ پرخان باندي ګران کړي دي. قرطبي وايي: چي ددوى دااراده نه وه چي پلاريې په دين کي ګمراه ګڼه ځکه که يې دغه اراده واى نوبه کافران شوي وو خوددوى مقصد داوو چي پلار يې پدې کي خطادى چي دوه واړه ماشومان ترلسو تنو غوره ګڼي(۲) ﴿ٱقۡتُلُواْ يُوسُفَ أَوِ ٱطۡرَحُوهُ أَرۡضٗا﴾ (پردې خبره يې سره ترون وکړچي: ) ووژنئ يوسف ، ياوغورځوئ هغه په کومي ځمکي (ليري ) کي ﴿يَخۡلُ لَكُمۡ وَجۡهُ أَبِيكُمۡ﴾ چي ورګارشي تاسي ته مخ دپلار ستاسي يعني تاسوته يې توجه شي. امام رازي فرمايي: چي معنايې داده چي يوسف هغه له موږ څخه مشغول کړى اودپلار توجه يې جلبه کړي ده که چېري هغه ورک شي نوبه يې موږته ... نه . ميلان پيداشي(۳) ﴿وَتَكُونُواْ مِنۢ بَعۡدِهِۦ قَوۡمٗا صَٰلِحِينَ﴾ (اوشئ به تاسي وروسته له دې(کاره) يوقوم صالحان) يعني وروسته له دې ګناه به توبه ګارشئ اوبيابه نېکان شئ ﴿قَالَ قَآئِلٞ مِّنۡهُمۡ لَا تَقۡتُلُواْ يُوسُفَ وَأَلۡقُوهُ فِي غَيَٰبَتِ ٱلۡجُبِّ﴾ (وويل يوه ويونکي له دوى څخه چي مه وژنئ يوسف (بلکه) وغورځوئ هغه په ښخ د(کوهي کي) دوى ته ددوى

(۱) البحر ۵ / ۲۸۰
(۲) القرطبي ۹ / ۱۳۱
(۳) الرازي ۱۸ / ۹۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

ورور يهودا (١) وويل هغه چي ديعقوب عليه السلام دزامنو مشروو ﴿ يَلْتَقِطْهُ بَعْضُ ٱلسَّيَّارَةِ إِن كُنتُمْ فَٰعِلِينَ ﴾ چي وايې خلي خيني تېرېدونكي دلاري (مسافرين) كه يې تاسي كونكي ددې كارچي دهغه بېلتون دى دده رايه نرتولو رايه آسانه وه ﴿ قَالُوا۟ يَٰٓأَبَانَا مَا لَكَ لَا تَأْمَ۬نَّا عَلَىٰ يُوسُفَ ﴾ نو وويل دوى: اې زموږ پلاره ! تالره څه باعث دى چي موږ پريوسف باندي امين نه گرزوې (چي موږ تول ستازامن يو؟) ﴿ وَإِنَّا لَهُۥ لَنَٰصِحُونَ ﴾ (حال داچي بېشكه موږ ده ته خامخانصيحت كونكي يو) يعني موږ پرده شفقت كونكي دده خير خواهان يو. مفسرين وايې: كله چي يې ټينګ عزم اوتكل وكړ نوبيايې دغه خبري وكړې پلارته يې داسي څرګندونه كوله چي ګواكي دوى له يوسف سره خورامينه لري او وړباندي شفقت كونكي دي ترڅو هغه له خپلي رايې څخه رامات كړي لكه چي دوى هسي ويل چي ته ولي له موږ څخه وېرېږې ؟موږ له يوسف سره محبت لرو او ورته خير غواړو !! ﴿ أَرْسِلْهُ مَعَنَا غَدًا يَرْتَعْ وَيَلْعَبْ ﴾ ولېږه دى سباله موږسره (صحراته) چي وخوري ډېري مېوې اولوبي وكړي (په سيالي سره) ﴿ وَإِنَّا لَهُۥ لَحَٰفِظُونَ ﴾ اوبېشكه موږ ده لره خامخا ساتونكي يو (له هره تكليفه اوزيانه دوى خپله وينا په (انّ) او(لام) باندي مؤكده كړه خودوى پدې كي دروغجنان وو) ﴿ قَالَ إِنِّى لَيَحْزُنُنِىٓ أَن تَذْهَبُوا۟ بِهِۦ وَأَخَافُ أَن يَأْكُلَهُ ٱلذِّئْبُ وَأَنتُمْ عَنْهُ غَٰفِلُونَ ﴾ وويل: (يعقوب دوى ته) بېشكه زه يم چي خامخا غمجن كوي مي داچي بوزئ تاسي يوسف (زه صبرنلرم) اوپدې وېرېږم چي يوسف به لېوه وخوري اوتاسي به له ده نه غافلان ياست داسي معلومېږي لكه چي دوى ته يې دليل ور وښود. زمخشري وايې: چي دوى ته يې دوه څېزونه په عذركي ورلاندي كړل يو داچي دهغه دبېلتون توان نلري كه څه هم ديوې شېبې لپاره وي، بل داچي په هغه باندي وېرېږي چي تاسو به په لوبو اومالونو خرولو لګياياست، هغه به لېوه وخوري (٢) ﴿ قَالُوا۟ لَئِنْ أَكَلَهُ ٱلذِّئْبُ وَنَحْنُ عُصْبَةٌ إِنَّآ إِذًا لَّخَٰسِرُونَ ﴾ وويل: دوى قسم دى كه وخوري يوسف لره لېوه حال داچي موږ ډله قوتناكه (مېړني) يو نو بېشكه موږ پدغه وخت كي له زيانكارانو څخه يو يعني بيادې وړيو چي موږ ته دخسران اوهلاكت ښېرا وكړل شي ﴿ فَلَمَّا ذَهَبُوا۟ بِهِۦ وَأَجْمَعُوٓا۟ أَن يَجْعَلُوهُ فِى غَيَٰبَتِ ٱلْجُبِّ ﴾ (په كلام كي محذوف شته يعني هغه يې ورسره واستاوو) نو كله چي بوتلو دوى يوسف لره (ليري له پلاره) اواتفاق يې وكړپدې چي وغورځوي دى په ژور بېخ دكوهي كي ﴿ وَأَوْحَيْنَآ إِلَيْهِ لَتُنَبِّئَنَّهُم بِأَمْرِهِمْ هَٰذَا وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴾ او وحى وكړه موږ يوسف ته چي ته به خامخا خبروركړې دوى ته په دې كارددوى حال داچي دوى به نه پوهېږي (چي ته يوسف يې. امام رازي وايې: چي ددغي وحى فائده داده چي ديوسف عليه السلام داډينه وشي اوآرام وموومي غم اووحشت يې له زړه څخه ليري شي چي هغه به له دې محنته ژر وژغورل شي (٣) ﴿ وَجَآءُوٓ أَبَاهُمْ عِشَآءً يَبْكُونَ ﴾ اوراغلل دوى پلارخپل ته بېګاه (دشپې) چي ژړل يې؛ روايت كېږي كله چي حضرت يعقوب عليه السلام ددوى ژړا واورېده نو وويرېدو او دوى

---

(١) دغه دابن عباس رضى الله عنهما وينا ده اوقتادة وايي چې هغه روبيل وو.

(٢) الكشاف ٢/٤٤٨

(٣) الفخر الرازي ١٨-١١٥

Bawar.net



ته يې ويل: چې اې زامنو! څه در وشول او يوسف چېرې دی؟ ﴿ قَالُوا يَٰأَبَانَا إِنَّا ذَهَبْنَا نَسْتَبِقُ وَتَرَكْنَا يُوسُفَ عِندَ مَتَٰعِنَا فَأَكَلَهُ ٱلذِّئْبُ ﴾ وويل: دوی چې (اې پلاره زموږ بېشکه چې موږ لاړو مسابقه (سيالي) موسره کوله (يو له بله په منډه سره تېرېدو يا موغشي ويشتل) او پرېښود موږ يوسف په نزد د اسباب (جامو) خپلو (چې ويې ساتي) نو وخوړه ده لره لېوه ﴿ وَمَآ أَنتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا وَلَوْ كُنَّا صَٰدِقِينَ ﴾ او نه يې ته باور کونکی موږ لره (پدې خبرې کې) او اګر که موږ رښتوني يو (په واقعه کې نو څرنګه ته موږ تورنوې او په خبره مو باور نکوې؟ د دوی دغه وينا د دوی په شکمن کېدلو دلالت کوي او لکه چې ويل کېږي (يکاد المريب يقول خذوني) ځيني خلګ بيا دغه متل هسې کوي چې (خائن خائف وی). ﴿ وَجَآءُو عَلَىٰ قَمِيصِهِۦ بِدَمٍ كَذِبٍ ﴾ او راوړه دوی برسېره په کميس د يوسف باندې وينه د دروغه) دويني صفت يې په مصدر و فرمايه چې مبالغه افاده کړي لکه چې هغه پخپله عيني دروغ وي. ابن عباس رضی الله عنهما وايې: چې دوی پسه حلال کړ او د يوسف کميس يې دهغه په وينو ولړل او کله چې يعقوب عليه السلام ته راغلل نو هغه ورته وويل: دروغ وايا ست که په رښتيا هغه ښرمښ (لېوه) خوړلی وای نو به يې کميس څېرلی وو(۱) او روايت کېږي چې حضرت يعقوب عليه السلام وفرمايل: دا څومره هوښيار لېوه هوښيار لېوه دی چې زما زوی يې خوړلی او کميس يې نه دی ور بزه کړی (څېرلی) ﴿ قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ أَنفُسُكُمْ أَمْرًا ﴾ نو ويل: «(يعقوب عليه السلام چې دا دروغ دي) بلکه ښايسته کړی دی تاسو ته نفسونو ستاسو يو کار (د يوسف په هکله) ﴿ فَصَبْرٌ جَمِيلٌ وَٱللَّهُ ٱلْمُسْتَعَانُ عَلَىٰ مَا تَصِفُونَ ﴾ نو کار زما صبر جميل دی (شکايت نه کوم) او له الله څخه مدد غوښتلی شي په (تحمل د) هغي (خبري) چې تاسي يې بيانوئ (له دروغو په هلاکت د يوسف کې) ﴿ وَجَآءَتْ سَيَّارَةٌ ﴾ او راغله قافله يعني مسافران پدې لاره راغلل ابن عباس رضی الله عنهما وايې چې يو قوم راغلل چې له مدين څخه د مصر په لوري تلل لاره ځني ورکه شوه او په هغه لوري را برابر شول چې هلته يوسف عليه السلام په کوهي کې غورځول شوی وو هغه کوهی چې له آبادي او عمران څخه لېرې په شاړه ځمکه کې واقع وو (۲) ﴿ فَأَرْسَلُوا۟ وَارِدَهُمْ فَأَدْلَىٰ دَلْوَهُۥ ﴾ نو ولېږه دوی اوبه راوړونکی خپل نو څوشي يې کړه سلواغه خپله (په کوهي کې؛ مفسرين کرام وايې: کله چې اوبه راوړونکي بوکه په کوهي کې وځړوله او يوسف عليه السلام په يو کونج کې ناست وو نو په رسۍ پسې ونښت او له کوهي را بهر شو کله چې دوی دهغه ښايست او جمال وليد بيا ﴿ قَالَ يَٰبُشْرَىٰ هَٰذَا غُلَٰمٌ ﴾ نو ويې ويل: اې خوشحاليه زما! (يعني ځان او خپل ټولګي ته يې زېری ورکړ چې:) دا يو هلک دی د ډېر ښايسته. ابو السعود وايې چې: ګواکې هغه زېري ته ور ناري کړې چې راحاضر شه خوشحالی زما دغه دي وخت دی ځکه چې په دې ستر نعمت باندې بريالی شو(۳) ﴿ وَأَسَرُّوهُ بِضَٰعَةً ﴾ (او پټ کړ دوی هغه د تجارت د مال په توګه) يعني د هغه څرنګوالی او چاره يې له خلګو پټه کړه چې په مصر کې يې لکه د سوداګري سامان غونډي وپلوري او د پټوونکو ضمير دلته د اوبه راوړونکي او دهغه د ټولګي لپاره راجع دی ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمٌۢ

(۱) الطبري ۱۲ / ۱۷۰
(۲) الرازي ۱۸ / ۱۰۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿بِمَا يَعْمَلُونَ﴾ ( اوالله ښه عالم په هغه کارونو دی چي دوی کول ) يعني الله ته ددوی رازونه ښه معلوم دي اوداچي دوی ديوسف عليه السلام په هکله څه تصميم لاره ؟ ﴿وَشَرَوْهُ بِثَمَنٍ بَخْسٍ دَرَٰهِمَ مَعْدُودَةٍ﴾ (او وپلوره دوی هغه (يوسف ) په پيسوناکارو چي يو څورويي، شمېرلي شوي وې ) دغه دوهم محنت دی چي دغلامۍ او مريتوب نيمه خواږوند يې په برخه شو يعني دغه کسانوچي دی يې له کوهي راوکيښ په لږو ناکاره پيسو يې وپلوره چي شل درهمه وو لکه چي ابن عباس ﷺ وايي : ﴿وَكَانُوا۟ فِيهِ مِنَ ٱلزَّٰهِدِينَ﴾ اووودوی په شان د(يوسف کي له بې رغبتيانو ؛ ځکه دوی هغه موندلی وو او ورباندي وېرېدل چي دغه به تښتېدونکی بنده وي اوکېدايشي باداريې ددوی له لاسه بيرته واخلي نوځکه يې په ډېرولږو ناکاره پيسوخرڅ کړ ﴿وَقَالَ ٱلَّذِى ٱشْتَرَىٰهُ مِن مِّصْرَ لِٱمْرَأَتِهِۦٓ أَكْرِمِى مَثْوَىٰهُ﴾ او وويل : هغه سړي چي اخيستی يې وو يوسف او وو له (اهله ) دمصره خپلي ښځي ته چي په عزت لره ځای ددغه (يوسف اوقدريې کوه ) يعني دمصريانو څخه هغه سړي چي دی يې رانيولی خپلي مېرمني ته يې وويل : ددې سړي عزت اوقدرکوه چي له موږ سره اوسي . ابن عباس رضی الله عنه وايي : دنوموړي سړي نوم قطفيروو اوهغه دمصر( عزيز ) وو چي په خزانوګمارل شوی وو(١) ﴿عَسَىٰٓ أَن يَنفَعَنَآ أَوْ نَتَّخِذَهُۥ وَلَدًا﴾ ښايي چي موږته ګټه ورسوي اويابه يې موږ په زويتوب ونيسو ( دوی دواړولره اولادنه کېدو ) ﴿وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِى ٱلْأَرْضِ﴾ اوهمداسي (لکه چي له کوهي څخه مونجات ورکړ يوسف ته ) ځای اوقدرت مو ورکړپه ځمکه (دمصر ) کي (چي واوسي په عزت اوامان کي ) ﴿وَلِنُعَلِّمَهُۥ مِن تَأْوِيلِ ٱلْأَحَادِيثِ ۚ وَٱللَّهُ غَالِبٌ عَلَىٰٓ أَمْرِهِۦ﴾ او وښيوموږ يوسف ته له (تعبيرونود ) ځينو خوبونو اوالله ښه غالب دی په کارونو خپلو (چي هيڅوک يې عاجز کولای نشي ) ﴿وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ﴾ (وليکن زيات خلک پدې نه پوهېږي ) يعني دالله دمصنوعاتو په لطائفو اودفضل اومرحمت په رازونو دېرخلک هدونه پوهېږي ﴿وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهُۥٓ ءَاتَيْنَٰهُ حُكْمًا وَعِلْمًا ۚ﴾ او کله چي ورسېدو يوسف قوت خپل ته (چي دېرش کلن شو ) نو موږ ده ته علم اوحکم ورکړ يعني ديني پوهه اوحکمت مو ورباندي ولوراوو ﴿وَكَذَٰلِكَ نَجْزِى ٱلْمُحْسِنِينَ﴾ همداسي جزا ورکوو نيکوکارانو ته.

بلاغت :

١ - ﴿تِلْكَ ءَايَٰتُ﴾ دلته په بعيد سره اشاره ددې لپاره شوي چي دشان لوړتيااو دمرتبې دکمال په توګه ليري والی وښيي.

٢ - پدې کلام کي چي فرمايي : ﴿كَمَآ أَتَمَّهَا عَلَىٰٓ أَبَوَيْكَ﴾ دلته مجمله مرسله تشبيه ده .

---

(١) الطبري ١٢/ ١٧٥

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۳ - ﴿ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا وَٱلشَّمْسَ وَٱلْقَمَرَ ﴾ شريف رضي ددې كلام په هكله ليكي چې دا استعاره ده څكه چې ستوري ، لمر، سپوږمۍ خو(لايعقل) دي قاعده خو دا وه چې (ساجدة) يې راوړې واى خو كله چې دوى ته يې دعاقلانو فعل او كړه وړه ثابت كړل نو ددوى لپاره دعاقلانو صفت هم رواشو څكه سجده خو دعاقلانو كار دى

۴ - دلته چې فرمايي: ﴿ بِدَمٍ كَذِبٍ ﴾ دوينو صفت خو په كذب سره نه كيږي مراد ځني (دم مكذوب) دي او يا (دم ذي كذب) خو په مصدر سره راوړل يې دمبالغې لپاره دي.

## لطيفه:

وايي چې يوې ښځې شريح قاضي ته دعوى وړاندې كړه او ژړل يې نو شعبي شريح ته وويل: اې دا ميه پلاره نه وينې چې هغه ژاړي ؟! شريح وويل: چې ديوسف ورونه راغلل چې په سرو سترګويې ژړل خو دوى دروغجنان ظالمان وو نه ښايي چې انسان پرته له حق څخه په بل څه فيصله وكړي.

## تنبيه:

ځيني مفسرينو ويلي: چې ديوسف عليه السلام ورونه نبيان او پدې يې دليل نيولى چې دوى اسباط دي چې دالله تعالى پدې قول كې راغلي: ﴿ قُلْ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ وَمَآ أُنزِلَ عَلَيْنَا وَمَآ أُنزِلَ عَلَىٰٓ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْمَٰعِيلَ وَإِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ وَٱلْأَسْبَاطِ وَمَآ أُوتِيَ مُوسَىٰ وَعِيسَىٰ وَٱلنَّبِيُّونَ مِن رَّبِّهِمْ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ وَنَحْنُ لَهُۥ مُسْلِمُونَ ﴾ [آل عمران ۸۴ ] خو سمه خبره داده چې اسباط ديعقوب عليه السلام اولاده نه وو بلكه هغوى قبائل او ديعقوب عليه السلام له ذوذات څخه وو دادمحققينو وينا ده ، او كه چيرې ديوسف عليه السلام ورونه نبيان واى نو داسې ناكاره كارونه به يې نه كول لكه كينه ، فساد ، شرارت ، دقتل او وژلو تكل ، دروغ ويل ، خپل ورور يوسف په كوهي كې غورځول دا ټول هغه كبيره ګناوې دي چې دانبياوو له عصمت او پاكۍ سره منافي دي نو څوك چې دوى له هسې كارونو سره سره بيا هم انبياء ګڼي دغه دعقل غوښتل او منل نه دي پدې هكله دعلامه ابن كثير وينا چې باريكه او ګټوره ده ولوله.

***

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَرَٰوَدَتْهُ ٱلَّتِي هُوَ فِي بَيْتِهَا عَن نَّفْسِهِۦ وَغَلَّقَتِ ٱلْأَبْوَٰبَ وَقَالَتْ هَيْتَ لَكَ ۚ قَالَ مَعَاذَ ٱللَّهِ ۖ إِنَّهُۥ رَبِّيٓ أَحْسَنَ مَثْوَايَ ۖ إِنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٢٣﴾ وَلَقَدْ هَمَّتْ بِهِۦ ۖ وَهَمَّ بِهَا لَوْلَآ أَن رَّءَا بُرْهَٰنَ رَبِّهِۦ ۚ كَذَٰلِكَ لِنَصْرِفَ عَنْهُ ٱلسُّوٓءَ وَٱلْفَحْشَآءَ ۚ إِنَّهُۥ مِنْ عِبَادِنَا ٱلْمُخْلَصِينَ ﴿٢٤﴾ وَٱسْتَبَقَا ٱلْبَابَ وَقَدَّتْ قَمِيصَهُۥ مِن دُبُرٍ وَأَلْفَيَا سَيِّدَهَا لَدَا ٱلْبَابِ ۚ قَالَتْ مَا جَزَآءُ مَنْ أَرَادَ بِأَهْلِكَ سُوٓءًا إِلَّآ أَن يُسْجَنَ أَوْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٢٥﴾ قَالَ هِيَ رَٰوَدَتْنِي عَن نَّفْسِي ۚ وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّنْ أَهْلِهَآ إِن كَانَ قَمِيصُهُۥ قُدَّ مِن قُبُلٍ فَصَدَقَتْ وَهُوَ مِنَ ٱلْكَٰذِبِينَ ﴿٢٦﴾ وَإِن كَانَ قَمِيصُهُۥ قُدَّ مِن دُبُرٍ فَكَذَبَتْ وَهُوَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴿٢٧﴾ فَلَمَّا رَءَا قَمِيصَهُۥ قُدَّ مِن دُبُرٍ قَالَ إِنَّهُۥ مِن كَيْدِكُنَّ ۖ إِنَّ كَيْدَكُنَّ عَظِيمٌ ﴿٢٨﴾ يُوسُفُ أَعْرِضْ عَنْ هَٰذَا ۚ وَٱسْتَغْفِرِي لِذَنۢبِكِ ۖ إِنَّكِ كُنتِ مِنَ ٱلْخَاطِـِٔينَ ﴿٢٩﴾ ۞ وَقَالَ نِسْوَةٌ فِي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

الْمَدِينَةِ امْرَأَتُ الْعَزِيزِ تُرَاوِدُ فَتَاهَا عَن نَّفْسِهِ قَدْ شَغَفَهَا حُبًّا إِنَّا لَنَرَاهَا فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ (٣٠) فَلَمَّا سَمِعَتْ بِمَكْرِهِنَّ
أَرْسَلَتْ إِلَيْهِنَّ وَأَعْتَدَتْ لَهُنَّ مُتَّكَأً وَآتَتْ كُلَّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُنَّ سِكِّينًا وَقَالَتِ اخْرُجْ عَلَيْهِنَّ فَلَمَّا رَأَيْنَهُ أَكْبَرْنَهُ وَقَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ
وَقُلْنَ حَاشَ لِلَّهِ مَا هَٰذَا بَشَرًا إِنْ هَٰذَا إِلَّا مَلَكٌ كَرِيمٌ (٣١) قَالَتْ فَذَٰلِكُنَّ الَّذِي لُمْتُنَّنِي فِيهِ وَلَقَدْ رَاوَدتُّهُ عَن نَّفْسِهِ
فَاسْتَعْصَمَ وَلَئِن لَّمْ يَفْعَلْ مَا آمُرُهُ لَيُسْجَنَنَّ وَلَيَكُونًا مِّنَ الصَّاغِرِينَ (٣٢) قَالَ رَبِّ السِّجْنُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِمَّا يَدْعُونَنِي إِلَيْهِ
وَإِلَّا تَصْرِفْ عَنِّي كَيْدَهُنَّ أَصْبُ إِلَيْهِنَّ وَأَكُن مِّنَ الْجَاهِلِينَ (٣٣) فَاسْتَجَابَ لَهُ رَبُّهُ فَصَرَفَ عَنْهُ كَيْدَهُنَّ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ
الْعَلِيمُ (٣٤) ثُمَّ بَدَا لَهُم مِّن بَعْدِ مَا رَأَوُا الْآيَاتِ لَيَسْجُنُنَّهُ حَتَّىٰ حِينٍ (٣٥) وَدَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ فَتَيَانِ قَالَ أَحَدُهُمَا
إِنِّي أَرَانِي أَعْصِرُ خَمْرًا وَقَالَ الْآخَرُ إِنِّي أَرَانِي أَحْمِلُ فَوْقَ رَأْسِي خُبْزًا تَأْكُلُ الطَّيْرُ مِنْهُ نَبِّئْنَا بِتَأْوِيلِهِ إِنَّا نَرَاكَ مِنَ
الْمُحْسِنِينَ (٣٦) قَالَ لَا يَأْتِيكُمَا طَعَامٌ تُرْزَقَانِهِ إِلَّا نَبَّأْتُكُمَا بِتَأْوِيلِهِ قَبْلَ أَن يَأْتِيَكُمَا ذَٰلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِي رَبِّي إِنِّي تَرَكْتُ
مِلَّةَ قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَهُم بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ (٣٧) وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ آبَائِي إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ مَا كَانَ
لَنَا أَن نُّشْرِكَ بِاللَّهِ مِن شَيْءٍ ذَٰلِكَ مِن فَضْلِ اللَّهِ عَلَيْنَا وَعَلَى النَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ (٣٨) يَا صَاحِبَيِ
السِّجْنِ أَأَرْبَابٌ مُّتَفَرِّقُونَ خَيْرٌ أَمِ اللَّهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ (٣٩) مَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِهِ إِلَّا أَسْمَاءً سَمَّيْتُمُوهَا أَنتُمْ
وَآبَاؤُكُم مَّا أَنزَلَ اللَّهُ بِهَا مِن سُلْطَانٍ إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ
النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ (٤٠) يَا صَاحِبَيِ السِّجْنِ أَمَّا أَحَدُكُمَا فَيَسْقِي رَبَّهُ خَمْرًا وَأَمَّا الْآخَرُ فَيُصْلَبُ فَتَأْكُلُ الطَّيْرُ
مِن رَّأْسِهِ قُضِيَ الْأَمْرُ الَّذِي فِيهِ تَسْتَفْتِيَانِ (٤١) وَقَالَ لِلَّذِي ظَنَّ أَنَّهُ نَاجٍ مِّنْهُمَا اذْكُرْنِي عِندَ رَبِّكَ فَأَنسَاهُ
الشَّيْطَانُ ذِكْرَ رَبِّهِ فَلَبِثَ فِي السِّجْنِ بِضْعَ سِنِينَ (٤٢) ﴾ يوسف: ٢٣ – ٤٢

## مناسبت او تړاو:

کله چي الله تبارک وتعالی دحضرت یوسف علیه السلام هغه ناز ېدایاده کړه کومه چي په قصرکي یې ورباندي لورولي وه نودلته یې دهغه علیه السلام د محنت او ازموېښت کیسه راوړه کوم چي دعزیز مېرمنې ورباندي راوستی وو همداسي دیوسف علیه السلام ټینګار، پوخ ایمان، سپېڅلی عفت اوپاک لمني چي دداسي ازموېښت په وړاندي یې خپل کړی ترڅو هغه دځېلخانې منل ترداسي ستړې ګناه کولو غوره وبلل او همدا دهغه دسپېڅلتیا ستر دلیل او دپاکي لپاره یې بس او کافي ده.

## لغتونه:

(راودته) هغې خاښته وغوښت مراودة په کراره غوښتنې ته وایې له (راد) (یرود) څخه اخیستل شوی کله چي راشي ولاړشي اوله دې څخه (رائد) هم راغلی چي څرځای معلومونکي ته وایې دسړي په باب ویل کېږي (راودها عن نفسها). اودښځي په باب (راودته عن نفسه) ویل کېږي یعني یوځای ورسره څملاستل یې څني وغوښتل (هیت) اسم فعل اومعنایې داده ژر راشه ا ( مثوای) مقام او داستقرار ځای زما(همت) (هم) دقصد په معنا راځي لکه چي: (وهمت کل امة برسولهم لیأخذوه ) (غافر۵ ) اودسوچ اوخیال په معناهم راځي چي عزم ورسره

Bawar.net



وي نو دعزيز دمېرمني (هم) دعزم اوتصميم خبره وه او ديوسف عليه السلام (هم) يوازي سوچ اوفكروو (السوء) منكر اوفجورته وايي ( الفحشآء) هغه چي په بدي كي منتهاته رسېدلى وي مراد ورڅخه زناده (قدت) (قد) څيري والي ته وايي دېرخله هغه په طول (اوږدوالي ) څيرلو كي راځي او(قط) بيادپسور څيري والي ته وايي (الفيا) ويې موندل (كيدكن) مكراوحيله ستاسي ( الخاطئين) په قصدسره گناه كونكي أصمعي وايي : خطئ الرجل فهوخاطئ كله چي په قصد سره گناه وكړي اوأخطأ يخطئ كله چي په سهوه اوغلطي سره څني گناه صادره شي اوقصدېې نه وي (¹) (شغفهاحبا) مينه يې زړه ته لوېدلي زجاج وايي: چي شغاف دزړه (نرى) پردې (سويدآء القلب) ته وايي (أصب) زه به ميلان وكړم ويل كېږي (صباالى اللهو ) كله چي لهوي ته ميلان وكړي.

## تفسير:

﴿ وَرَٰوَدَتْهُ ٱلَّتِي هُوَ فِي بَيْتِهَا عَن نَّفْسِهِۦ ﴾ (اوطلب وكړده لره هغې ښځي چي دغه يوسف دهغې په كوركي وو دده له نفسه ) دغه دريم محنت اومشقت دازمويني دى چي يوسف عليه السلام وروسته دكوهي له غورځولو او مريتوب څخه ورسره مخامخ كېږي ؛ مراوده هغه په نرمه اوپسته لهجه لكه چي څوک تېرايستونكى په غوږه مالي سره يوڅوک غولوي مقصد داچي دعزيز ارتيني له هغه څخه وغوښتل څو ورسره يوځاى څملي اوكور والى وكړي اوتولي حيلې يې په كار واچولې ﴿ وَغَلَّقَتِ ٱلْأَبْوَٰبَ ﴾ اوكلكي يې پوري كړې تولي دروازې. قرطبي وايي: چي اوه دروازې وې تولي يې وتړلې اوبيايې ځان ته راوغوښت (²)﴿ وَقَالَتْ هَيْتَ لَكَ ﴾ (اوبياوويل: دغي ښځي هله ته ژر راشه زه تالره يم ) يعني هله ژر پالنگ ته راشه دوېري كومه خبره نشته. په البحر المحيط كي وايي: چي ده ته يې امر وكړچي ژرځان ورته راورسوي (³)﴿ قَالَ مَعَاذَ ٱللَّهِ ﴾ وويل: يوسف پناه نيسم په الله پوري ( له بده كاره ) ابوالسعودوايي: چي دغه دې ته اشاره ده چي دغه خورابدكار دى لازمه ده چي له دې كاره څخه الله تعالى ته پناه يوړل شي څوبې وژغوري كله چي الله پاک هغه ته ددې كار دزيات بدوالى څرگندبرهان اودليل ور وښود (⁴)﴿ إِنَّهُۥ رَبِّيٓ أَحْسَنَ مَثْوَايَ ﴾ چي بېشكه عزيز مالک زمادى چي ښه يې كړي ده ساتنه زما(عزت يې راكړى نوزه به ولي دهغه په اهل كي خيانت كوم ؟)﴿ إِنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴾ بېشكه شان دادى چي برى نه مومي ظالمان (چي خپل مطلب ته ورسي اوظالمان هغه خائنان دي چي داحسان بدله په بدي وركوي بيا الله تعالى فرمايي چي : دعزيز مېرمني وغوښتل هغه پخپله لومه كي ونښلوي نو دتېرايستلو او اغراء تولي وسيلې يې په كار واچولې كه الله پاک حضرت يوسف عليه السلام ددې له چلونو څخه ژغورلى نه واى هلاک شوى به وو نويې وفرمايل: ﴿ وَلَقَدْ هَمَّتْ بِهِۦ ﴾ اوخامخا په تحقيق دې قصد كړى وودغه (يوسف ) ته دجماع (هسي ټينگ تكل چي هيڅ څيز راگرزولاى نشواى غوښتل يې يوسف عليه السلام په زور دې ته اړباسي وروسته له هغه چي دروازې يې وتړلې اوپه تلواره يې ځان ته راوبالو اوهغه مجبورشو چي تېښته غوره كړي ﴿ وَهَمَّ بِهَا ﴾

(¹) غريب القرآن لابن قتيبة
(²) القرطبي ۹/ ۱۷۳
(³) البحر ۵/ ۱۹۳
(⁴) ابو السعود ۲/ ۷۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اويوسف به قصد کړی وای دې ښځي ته (دبشري طبيعت دغوښتني له مخي يعني په زړه کي به يې ورګرزېدلي وي چي ددې ښځي رغبت ته غاړه کېږدي دايوازي طبيعي ميلان چي قصد اوعزم ورسره نه وو نو ددوارو (همونو) ترمينځ ستر توپير موجود دی (۱) امام رازي وايې چي (هم) په زړه کي ديوڅه راګرزېدل اوياطبعي ميلان ته وايه شي لکه چي صائم (روژتي) ددوبي په تکنده غرمه چي يخي اوبه ووينې زړه يې غواړي هغه وڅښي خودين ورته دڅښلو اجازه نه ورکوي (۲) ﴿ لَوْلَآ أَن رَّءَا بُرْهَـٰنَ رَبِّهِۦ ﴾ که نه وای ليدلی (يوسف عليه السلام ) قاطع دليل درب خپل ) د(لو)ځواب محذوف دی اوهغه داچي که دالله عصمت اوساتنه نه وای نوبه يې هغه دزړه سوچ دعمل په ډګرکي پلی کړی وای خوالله جل جلاله وژغوره اوهيڅ ګناه هم ځني صادره نشوه. په البحر المحيط کي وايي: چي ځينو يوسف عليه السلام ته داسي نسبتونه کړي چي دفساقو لپاره هم دغسي نسبت کول نه ښايي هغه چي زماپه نزد غوره دي هغه داچي له يوسف عليه السلام څخه د(هم) نفی هم شوي ده ځکه چي برهان يې ليدلی اودغه وېناهسي مثال لري لکه چي ته يوچاته وايې: په ګناه کي به لوېدلی وای که الله پاک ژغورلی نه وای اولکه چي عرب وايي: ته ظالم يې که دي هسي وکړل نودلته هم دغسي تقدير کېږي که چېري يې دالله برهان ليدلی نه وای نوبه يې قصد کړی وو ولېکن برهان يې وليد او(هم) ځيني نفی شو هغه چي سلفو ځيني اقوال ليکلي نوموړ پدې باور يو چي له هيچاڅخه دداسي ويناوو سم والی اوصحت نشته ځکه داد يوبل تکذيب کونکي اقوال دي اود ځيني ملتونو دفاسقانو په باب دغسي ګمان کول صحيح نه دی څه خولادمعصوم پيغمبر په هکله (۳) ابوالسعودوايي: چي ديوسف عليه السلام (هم) دبشري طبيعت دميل په معناوو نه داچي په خپل اختيار يې قصدته وويل شي آيانه وينئ چي دهغه استعصام ددې ګواهي ورکوي چي هغه له داسي ګناه څخه ځومره کرکه اونفرت لري چي حکم کوي ظالمان به هيڅکله هم بری ونه مومي او آياداپرته له دې چي دده په باب دغه ګناه مستحيل وګڼي بل څه کېدای شي ؟اوهغه ځوک چي وايي: يوسف عليه السلام همياني پرانسته اومخ په مخ هغې ته دکوروالي په توګه کېناست دغه چتي ويناوي دي چي عقل اوزړه يې نه مني (۴) ﴿ كَذَٰلِكَ لِنَصْرِفَ عَنْهُ ٱلسُّوٓءَ ﴾ هم داسي (موږ يوسف ساتلی دی په عصمت دپاره ددې چي موږ له ده ځني بداوناكاره فعل وګرځوو) يعني همداسي موږ يوسف عليه السلام ته په پاکي اوعفت باندي ثبات ورکړی چي دفتنې اواغراء په وړاندي ټينګاروليږ ترڅوچي له ده څخه بداوناکاره کارونه وګرزوو اوهمدغه آيت پدې قاطع دليل دی چي هغه عليه السلام دګناه قصدلاهم نه دی کړی اوکه چېري داسي وای لکه چي خلکوګمان کړی نوبه الله تعالی داسي فرمايلي ووچي: لنصرفه عن السوء والفحشاء) يعني ځوموږ دی له ګناه څخه وګرزوو او ﴿ لِنَصْرِفَ عَنْهُ ﴾ پدې دلالت کوي چي داهغه ځېزدی چي له ارادې څخه وتلی ،بهرنۍ الله له ده څخه وګرزاوو اودعصمت اوعفت موجبات يې ورته برابرکړل ﴿ وَٱلْفَحْشَآءَ ﴾ اوچي وګرزوو له ده ځني زناهغه چي په بدي کي خوراقبيح دی ﴿ إِنَّهُۥ مِنْ عِبَادِنَا ٱلْمُخْلَصِينَ ﴾ (بېشکه دغه (يوسف) زموږ له مخلصو بندګانو څخه وو) يعني دهغوبندګانو څخه کوم چي الله

---

(۱) دغه دمشاکلې له ډوله دی يعني په لفظ يوشان خوپه معناکي سره ګوښي دي دهغې هم قصد اوعزم اودده يوازي طبعي ميلان اوچورت وو.
(۲) الفخر الرازي ۱۸ / ۱۱۹
(۳) البحر ۵ / ۲۹۷
(۴) ابوالسعود ۲ / ۷۳

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



جل جلاله دخپل طاعت لپاره خالص گرزولي اودوحی اورسالت لپاره يې غوره اوچاڼ کړي وو نوشيطان نشي کولای هغه وښويوي ... بيا الله جل جلاله دهغه نابېره پېښې يادونه کوي چي ناڅاپه پداسي حال کي چي دوی دواړو يوله بله په سيالي سره دروازې ته منډي وهلې دهغې مېړه هم راغی اودايې په شهواني لېونتوب کي وليده ﴿ وَٱسۡتَبَقَا ٱلۡبَابَ ﴾ اوسره منډي وهلې دواړو دروازې ته (هغه عليه السلام دتېښتي لپاره اودي دغوښتني لپاره ) ﴿ وَقَدَّتۡ قَمِيصَهُۥ مِن دُبُرٖ ﴾ (اوڅېري کړ (ښځي) کميس ددغه (يوسف) دشاله خوا ) څکه هغې ورپسي هڅه کوله دشاله خوايې ترکميس ونيو اوهغه وشلېدو ﴿ وَأَلۡفَيَا سَيِّدَهَا لَدَا ٱلۡبَابِۚ ﴾ (اومخامخ شول دوی دواړه دزليخا له مېړه عزيز سره په دروازه کي ) يعني دوی عزيز دقصر په دروازه کي ناڅاپه وليدو چي بې له خپله وخته راغلی وو اودا ښځي په پوره مهارت چي دابليس مهارت ته ورته وويو داسي اوښتون راغی چي ظالم دمظلوم او برئ (بې گناه ) دمتهم (تورن) په بڼه راڅرگند شول ﴿ قَالَتۡ مَا جَزَآءُ مَنۡ أَرَادَ بِأَهۡلِكَ سُوٓءًا إِلَّآ أَن يُسۡجَنَ أَوۡ عَذَابٌ أَلِيمٞ ﴾ ووېل: (زليخاعزيزته ) چي نه ده جزادهغه چاچي ستاپه اهل يې دبدي اراده کړي مگرچي بندي کړی شي، ياعذاب دردناک دی ) يعني نه شته جزايايې جزابنديخانه اوياسخت ټکول دي ﴿ قَالَ هِيَ رَٰوَدَتۡنِي عَن نَّفۡسِيۚ ﴾ ووېل (يوسف ) همدې غوښتنه وکړه) اوويې ويل: چي همدې زه دزنالپاره غوښتلم نه داچي مابه دبدکاري اراده کړي وي ﴿ وَشَهِدَ شَاهِدٞ مِّنۡ أَهۡلِهَآ ﴾ اوشاهدي ورکړه ( يوه تی رودونکي ) شاهد له اهله ددې. ابن عباس رضی الله عنهماوايي: چي دغه دهغې دمامازوی دزانگوماشوم وو په البحرکي وايي چي داصفت چي شاهد ددې له خپله کوره وو ديوسف لپاره دبرائت دېرښه دليل اوله تور اوتهمت څخه ښه پاکونکی دی (۱) ﴿ إِن كَانَ قَمِيصُهُۥ قُدَّ مِن قُبُلٖ فَصَدَقَتۡ وَهُوَ مِنَ ٱلۡكَٰذِبِينَ ﴾ (داسي شاهدي ) چي که وو کميس دده (يوسف ) څېري کړی شوی دمخي له خوانو زليخا رښتياوايې اودغه (يوسف ) له دروغجنانو څخه دی ﴿ وَإِن كَانَ قَمِيصُهُۥ قُدَّ مِن دُبُرٖ فَكَذَبَتۡ وَهُوَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴾ اوکه کميس ددغه ( يوسف ) څيري کړی شوی دشاله لوري نوزليخادروغ وايي اودغه (يوسف) له رښتياويونکوڅخه دی، څکه چي دعقل او منطق هم دغه رايه ده چي که چېري (زليخا) غوښتونکي وي نودشاله لوري به پسي منډي وهي اوکميس به يې ورڅېري کړی هغه به ځيني تښتي ﴿ فَلَمَّا رَءَا قَمِيصَهُۥ قُدَّ مِن دُبُرٖ قَالَ إِنَّهُۥ مِن كَيۡدِكُنَّۖ إِنَّ كَيۡدَكُنَّ عَظِيمٞ ﴾ نوکله چي وليد (عزيز ) کميس ددغه (يوسف) چي څيري شوی دی دشاله لوري نوووېل: ( عزيز) چي بېشکه دغه يوفريب ستاسوښځو دی بېشکه ستاسوفريب دېرلوی دی، دغه وروستی ځل د(کيدکن) تکرار دتاکيدلپاره راغلی يعني ستاسو له فريب څخه خلاصون سترڅيزدی ﴿ يُوسُفُ أَعۡرِضۡ عَنۡ هَٰذَاۚ ﴾ اې يوسفه ! واوړه له دې کاره، يعني دغه خبره پټه کړه دزليخاپټ وساته اوهيچاته مه وايه ! سيدقطب رحمه الله وايي: چي همدلته دجاهليت د مترقي دموکراتيکي اومدني ټولني څخه پرده پورته کېږي چي دجنسي فضيحتونوپه وړاندي څرنگه نرم اوپوست دريز غوره کوي اوغواړي چي له نورو خلگو څخه يې پټه کړي نوعزيز يوسف عليه السلام ته مخ را گرزوي، ورته وايي: چي دغه دشرم خبره پټه

(۱) البحر ۵ / ۲۹۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کړه او هيڅاته يې مه څرګندوه او بيا خپلي خائني مېرمني ته ددا سي کار په کولو چې دسړي درګووينه ايشوي داسي کرار وايې چې: (۱)﴿ وَٱسۡتَغۡفِرِي لِذَنۢبِكِۖ إِنَّكِ كُنتِ مِنَ ٱلۡخَاطِـِٔينَ ﴾او مغفرت غواړه ګناه خپلي ته بېشکه چې ته يې له زيانکارانو ښځه اولکه چې همدا ددوى لپاره داهميت وړ وه چې په ظاهري توګه رسوانشي پدې کي دې ته هم اشاره ده چې عزيز چندان غيرت نه درلود چې دهغې ښځه يې دخيانت دکسات اخيستلو هڅه ونکړه او نه يې په دې باندې څه پرواوکړه چې څرنګه هغې غوښتل دده پالنګ ته بل څوک دزنا اوفحشاء لپاره ورو بولي. ابن کثيروايې: چې د زليخا خاوند ډېر نرم اوپستکی سړی وو اويادا چې هغه يې معذوره وګڼله چې هغې داسي ښايست وليد چې زغم اوصبرتوان يې څني نه کېدو(۲)﴿ وَقَالَ نِسۡوَةٞ فِي ٱلۡمَدِينَةِ ﴾ او وويل يو څوښځو په ښار (دمصر) کي، چې داپنځه ښځي وې يوه دعزيز دساقي، بله دحاجب، بله دخباز، څلورمه دآسونو اومالونو د پالونکي اوپنځمه دپاچا دجېلخانو يعني دمحبسونو درئيس مېرمن. ابن عباس رضی الله عنهما اونور مفسرين وايې: څرګنده داچي په ټول ښارکي دغه پېښه رسوا شوه اوښځي پکي وغږېدې چې: ﴿ ٱمۡرَأَتُ ٱلۡعَزِيزِ تُرَٰوِدُ فَتَىٰهَا عَن نَّفۡسِهِۦۖ ﴾ ښځه د عزيز طلب کوي مريي خپل له نفسه دده (مرادخپل) يعني زليخاله خپل مريي څخه غواړي چې ورسره څملي هغه ته زاري کوي چې مرادېې ور ترسره کړي او هغه تېرباسي ابوحيان وايې: چې دوی پدې تصريح وکړه چې دعزيز ښځه، يعني اضافت يې عزيز ته وکړ داپه بدنامي اورسوايې کي مبالغه ده څکه خلګ دمرتبې دخاوندانو خبرونه څاري اوچې دمضارع په صيغه يې ﴿ تُرَٰوِدُ ﴾ وويل دغه داستمرار اوتجدد معنا ورکوي ګواکي دغه يې خوي او همېشه دغه غوښتنه څيني کوي(۳)﴿ قَدۡ شَغَفَهَا حُبًّاۖ ﴾ په تحقيق څيري کړي ده پرده دزړه ددې له جهته دمحبته (ديوسف) يعني ننوتلی دی محبت ديوسف په پرده دزړه دزليخاآن تردې چې زړه ته يې ور رسېدلی ﴿ إِنَّا لَنَرَىٰهَا فِي ضَلَٰلٖ مُّبِينٖ ﴾ بېشکه موږ خامخا وينو زليخا په ګمراهي ښکاره کي (چې دې دمريي مينه غوره کړي ده) ﴿ فَلَمَّا سَمِعَتۡ بِمَكۡرِهِنَّ أَرۡسَلَتۡ إِلَيۡهِنَّ ﴾ (نوکله چې واورېدو (زليخاغيبت) فريب ددوی نو ولېږه (دې څوک) دغو ښځوته) مکر يې څکه وبالو چې دوی په پټه دغه پېغور خپراوو لکه چې فريبګر په پټه جال غوړوي خپل فريب پټوي هغه وو چې دوی يې خپل قصرته راوبللې څو مېلمستياورکړي. مفسرين کرام وايې چې څلويښت ښځی يی راوبللی چې دغه دمرتبې دخاوندانو (صاحب منصبانو) ښځي وې چې هغه پنځه هم پکې وې چې پخوايادې شوې ﴿ وَأَعۡتَدَتۡ لَهُنَّ مُتَّكَـٔٗا ﴾ اوتيارېې کړل (کښيښېنو دل يې) ددوی لپاره بالښتونه(۴) (چې

---

(۱) في ظلال القرآن ۱۲/۲۳۲

(۲) مختصرابن کثير ۲/۲۴۷

(۳) البحر ۵/۳۰۱

(۴) شهيد سيد قطب رحمه الله وايې: چې دوی ته يې پخپل قصرکي مېلمستيا تياره کړه اوله دې څخه موږپوهېږو چې دوی دلوړې پوړۍ (طبقې) مېرمني دي هغه چې په مانيوکي مېلمستياته رابلل کېږي اودوی هغه دي چې له داډول نعمتونو څخه برخورداري دي اوداسي ښکاري چې دوی پداسي حال کي خوراک، څښاک کاووچې ددې يې لګولي اوهريوې ته خانله چاړوکی ورکړل شوي وه چې دمېوو په غوڅولو کي يې په کارشي له دې ګردوڅخه داسي دعياشي اوسوکالي انځور څرګندېږي چې دمانيو درلودونکي يې لري پداسي حال کي چې دوی دغوښو په غوڅولو، يادمېووپه پوچولو لګياوې

Bawar.net



ددي پرې واچوي ) ﴿ وَءَاتَتْ كُلَّ وَٰحِدَةٍ مِّنْهُنَّ سِكِّينًا ﴾ په کلام کی محذوف شته يعنی دوی ته يې خواږه اوميوې
ورانده کړی (او وريې کړی هري يوې ښځي ته له دوی نه چړوکی (چي مېوې وربانديي غوڅي (ياوګروي) ﴿ وَقَالَتِ
ٱخْرُجْ عَلَيْهِنَّ ﴾ (او وويل : (زليخا يوسف ته) راووزه په دوی) يعني پداسي حال چي دوی دمېو. په تراشلو او
غوڅولو بوختي وې چرې يې په لاسونو کي وې چي يوسف عليه السلام ته يې دراوتلو غږ وکړ ددوي په بی خبری
کی هغه راووت او ددوی په مينځ کي تېرشو ﴿ فَلَمَّا رَأَيْنَهُۥٓ أَكْبَرْنَهُۥ ﴾ نوکله چي وليد دوی دغه (يوسف) نو ډېر
لوی ښايسته يې وموند (اوحيراني شوې ) ﴿ وَقَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ ﴾ اوغوڅ يې کړل لاسونه خپل (ناڅاپه له ډېري
حيرانتياڅخه) ﴿ وَقُلْنَ حَٰشَ لِلَّهِ مَا هَٰذَا بَشَرًا ﴾ وويل : دوی پاکي ده الله ته ( له عجز اونقصانه چي داسي بشريې
پيداکړی دی ) ندی دغه (زلمی) انسان ﴿ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا مَلَكٌ كَرِيمٌ ﴾ ندی دغه زلمی مګرپرښته ده لويه ( له
پرښتوڅخه) يعني دغه هيښونکی اوحيرانونکی جمال اوښايست خوپه انسانانوکي نه وي ﴿ قَالَتْ فَذَٰلِكُنَّ ٱلَّذِى
لُمْتُنَّنِى فِيهِ ﴾ (نووويل : (زليخادغوښځوته) داهمغه زلمی دی چي تاسوزه دده (دميني ) په هکله ملامته کړي
وم) پدې وخت کي هغې دغه خبره په ډانګ پېيلي وکړه چي دې وانګېرله چي اوس پردوی باندي بريالی شوه
اودبرياليتوب په لهجه يې دوی ته وويل : چي دغه چي تاسو وليد اوله حيراني څخه هيښي شوی هغه کنعاني
مريي دی چي ماته مودده په هکله پېغور راکاوونووګورئ څرنګه دده له ليدلوحيرانی لالهاندی شوئ ﴿ وَلَقَدْ
رَٰوَدتُّهُۥ عَن نَّفْسِهِۦ فَٱسْتَعْصَمَ ﴾ اوپه تحقيق سره خامخاطلب کړی وو ماله ده نه نفس دده (مدعاخپله ) نوځان يې
وساته (زمامطلب يې سرته ونه رساوو ) اوسخت ممانعت يې وکړ زمخشري وايې : چي داستعصام معناپه امتناع
کي مبالغه کول دي اوپه ټينګارسره دځان ژغورلوته وايې (۱)﴿ وَلَئِن لَّمْ يَفْعَلْ مَآ ءَامُرُهُۥ لَيُسْجَنَنَّ وَلَيَكُونًا مِّنَ
ٱلصَّٰغِرِينَ ﴾ اوقسم دی خامخاکه ونکړي هغه څه چي زه امرکوم ده ته نوخامخابه بندي کړی شي او هرومروبه شي
له ذليلانو (په بنديخانه کي) قرطبي وايې : چي ددوی په وړاندي يې خپله غوښتنه ورته وړاندي کړه اودحياپرونی
يې څېري لتارکړ هغه ته يې اخطار ورکړکه چېري ددې مطلب پرځای نکړي نوبه يې بنديخانې ته واستوي هغې
دهيڅادملامتيااو پېغور پرواونکړه اودپخوانی غوښتني په خلاف چي په پټه اوددې اويوسف عليه السلام
ترمينځ ترسره شوي وه داځل يې برآلا په سپينه ورغ داخبري وکړې (۲) ﴿ قَالَ رَبِّ ٱلسِّجْنُ أَحَبُّ إِلَىَّ مِمَّا يَدْعُونَنِىٓ
إِلَيْهِ ﴾ نووويل : (يوسف ) اې ربه زما ! بنديخانه مي ترهغه کارچي دوی مي هغه ته ټوربولي ډېره خوښه ده ) يعني
يوسف عليه السلام الله جل جلاله ته پناه يوړه اوپه زاری جګی. يې له الله سره مناجات کاوو چي اې پرودګاره !
تردغه ناولي کارچي دغه ښځي مي وربولي ماته بنديخانه غوره ده دلته يې دوی ټولوته ددغه فعل ددعوت نسبت

---

نابيره يې يوسف عليه السلام وليد اوهک پک حيراني شوې خپل لاسونه يې په چړوکيو غوڅ اوزخمي کړل. فی ظلال القرآن ۲۳۲/۱۲
(۱) الکشاف ۴۲۷/۲
(۲) القرطبي ۱۹۲/۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وكړ خكه چي دوى گردو ښځو ديوسف عليه السلام په پوهولو ژبي پرانستي وې اوياېي په اشارو اشارو كي ده ته نصيحت كړى وو چي ددغي مُحسِني غوښتني دي ومنه او خان ځپلخانې ته مه وركوه ﴿ وَإِلَّا تَصْرِفْ عَنِّي كَيْدَهُنَّ أَصْبُ إِلَيْهِنَّ ﴾ اوكه ته ونه گرځوې له مانه فريب ددوى نوزه به دوى ته ميلان وكړم) په بشري مقتضاسره ﴿ وَأَكُن مِّنَ الْجَاهِلِينَ ﴾ (اوبه شم له جاهلانو (په سبب ددې ميلان) له جاهلانو څخه) دغه ټولي خبرې يې دتضرع اوعاجزي په توگه الله ته استغاثه پورته كوله لكه چي دانبياوو اوصالحانو دود اوعادت همداسي وې ﴿ فَاسْتَجَابَ لَهُ رَبُّهُ فَصَرَفَ عَنْهُ كَيْدَهُنَّ ﴾ (نو قبوله كړه ده ته رب دده (دادعا) نو ويې گرځاوو له ده څخه فريب ددوى يعني الله جل جلاله يې دعا ومنله اودښځوله فريب څخه يې وژغوره عصمت اوعفت يې ور وساتو﴿ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴾ بيشكه الله ښه اوريدونكى ښه عالم دى. الله دالتجاكونكودعا اوري اوپه نيتونو ، احوالو يې ښه خبردارد‌ى همداسي يوسف عليه السلام دغه دريمه مرحله دمحنت هم تېره كړه چي دالله لطف اوساتني يې ملگرتياكوله ﴿ ثُمَّ بَدَا لَهُم مِّن بَعْدِ مَا رَأَوُا الْآيَاتِ لَيَسْجُنُنَّهُ حَتَّىٰ حِينٍ ﴾ نوبيا ښكاره شو دوى (عزيز او دهغه تابعانو ته ) وروسته له هغه چي دوى وليدل دلائل (دپاكي ديوسف) چي خامخا په بنديخانه كي به واچوي هرو مرو دى ترېو وخته پورې (څوچي دخلكو خبري غلي شي ) دغه څلورمه او وروستۍ مرحله دمحنت ده چي ديوسف عليه السلام په ژوندانه كي راغي چي دځپلخانې موده ده هرڅه چي له دې په وروسته راغي هغه دخوښۍ اوسوكالۍ دي يعني كله چي عزيز اوخپلوانوته يې په كوټلي دلائلو داڅرگنده شوه چي يوسف عليه السلام برئ دى نو يې داسي مصلحت وكړ چي ترېوې نامعلومي مودې پورې يوسف عليه السلام په ځپلخانه كي بندي كړي. روايت كېږي چي كله يوسف عليه السلام دعزيز دښځي غوښتنه ونه منله اوهغه ېېخي ځني ناهيلي شوه نويې په بله پلمه داسي فريب وراندي كړ اوخپل خاوند ته يې وويل : چي دغه عبراني مريي زه په خلكو كي رسوا كړم خلگوته وايې : چي ماهغه خپل خان ته رابللى وي اوزه دخپل عذر په وړاندي كولو توان نلرم ياداچي ته ماته اجازه راكړه چي بهر راووزم اوخلگوته خپل عذر اوپاكي وړاندي كړم ، ياهغه بندي كړه نودلته عزيزته ديوسف عليه السلام بندي كېدل مصلحت ښكاره شو. ابن عباس رضىَ الله عنه وايې : چي يوسف عليه السلام يې په خره سپوركړ اوددول نغارې يې وهلې دمصرپه كوڅوكي يې داسي جاروا هو چي يوسف عبراني مريي دخپلي باداري دحرمت نه ساتلو اراده كړي وه نو دهغه جزاداده چي بندي شي. ابوصالح وايې: چي كله به هم ابن عباس رضى الله عنهما دغه حديث بياناوو ورسره به يې ژړل ﴿ وَدَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ فَتَيَانِ ﴾ اوننه وتل له ده سره په زندان كي دوه زلميان يعني ناڅاپه دوه تنه نور چي يو دباچاساقي اوبل خباز (ډوډۍ پخوونكى) وو هم پدې تور چي دوى دواړو غوښتل دباچا په خوړو اوبو كي زهر واچوي بنديخانې ته راوستل شول ﴿ قَالَ أَحَدُهُمَا إِنِّي أَرَانِي أَعْصِرُ خَمْرًا ﴾ وويل يوه له دوى دواړو (ساقي ) بېشكه زه وينم (خان خپل ) په خوب كي چي انگور نچوړم دشرابو لپاره (اوباچاته يې وركښم ) ﴿ وَقَالَ الْآخَرُ إِنِّي أَرَانِي أَحْمِلُ فَوْقَ رَأْسِي خُبْزًا تَأْكُلُ الطَّيْرُ مِنْهُ ﴾ اوو ويل بل (خباز ) (بېشكه زه وينم (خان خپل) په خوب كي چي په سرمي ډوډۍ باركړي وي اوخوري مرغان له هغې (ډوډۍ) څخه ) يعني په سر مي ډوډۍ پټنوس ايښى او مرغان هغه په مښوكو خوري ﴿ نَبِّئْنَا بِتَأْوِيلِهِ إِنَّا نَرَاكَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ ﴾ خبر كړه ته موږ په تعبير ددې بېشكه موږ ، نو تا له نيكو كارانو (ښو عالمانو د تعبير د خوبونو ) كله چي دوى ته څرگنده شوه چي دى

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دخوبونو ښه تعبیرګوی دی نوبې خپل خوبونه ورته وویل ﴿ قَالَ لَا يَأْتِيكُمَا طَعَامٌ تُرْزَقَانِهِۦٓ إِلَّا نَبَّأْتُكُمَا بِتَأْوِيلِهِۦ قَبْلَ أَن يَأْتِيَكُمَا ﴾ وویل: (یوسف) چي لانه به وي راغلي تاسي ته ډوډۍ چي روزي درکولی شي هغه تاسي ته مګرچي خبربه کړم تاسي په (حقیقت ، ماهیت اوکیفیت یې ) پخواله راتلو (ددې طعام) تاسي ته) دوی ته بې دخپلو معجزاتو په هکله خبرورکړ چي هغه په ناڅرګندوهم پوهېږي ترڅوبې ایمان ته درابللولپاره توطئه اوتمهید اینبی وی. بیضاوي وايي: چي ويې غوښتل دوی توحید ته راوبولي او سم دین ته دعوت ورکړي ترپخواله دې چي ددوی دخوبونو تعبیر وروښيې لکه چي دانبیاوو دود ، اودبلني اولارښووني اسلوب همداسي دی نوځکه یې اخباربالغیب معجزه ورته وړاندي کړه چي په دعوت اوتعبیرکي دده رښتنولي وښيې (١) ﴿ ذَٰلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِي رَبِّيٓ ﴾ دا(اخباربالغیب) له هغه علم نه دی چي ماته زمارب ښودلی دی (کهانت اوتنجیم نه دی بلکه الهي وحی اوالهام دی ﴿ إِنِّي تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ ﴾ (بېشکه ماپرې اینبی دی دین دهغو خلګوچي پرالله ایمان نه راوړي ) یعني ددغه علم انعام ځکه زمارب راکړی چي زه دنبوت له کورنۍ سره تعلق لرم اودمشرکانو هغوی چي په الله ایمان نلري دین مي پرې اینبی دی ﴿ وَهُم بِٱلْءَاخِرَةِ هُمْ كَٰفِرُونَ ﴾ اوحال داچي دوی په آخرت هم کافران کېدونکي دي. په دوو سترو اصولو يې دوی ته تنبیه ورکړه یو ایمان په الله اوبل دآخرت په ورځي ځکه دغه دواړه ترټولو ستردایمان ارکان دي د ﴿ هُمْ ﴾ لفظ يې دتاکید لپاره مکرر راوړی دی ﴿ وَٱتَّبَعْتُ مِلَّةَ ءَابَآءِيٓ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ ﴾ (اومامتابعت کړی دی د خپلوپلرونو ددین چي ابراهیم ، اسحاق اویعقوب دی ) یعني مادنبیانو ددین پیروي کړي دمشرکانواوګمراهانو لاره مي نه ده غوره کړي مقصدله دې څخه دادی چي هغه دنبوت له خاندان څخه دی ترڅوددوی دواړو رغبت دده دخبرو اورېدلو اوپه هغه باندي باورکولو ته رامات کړي ﴿ مَا كَانَ لَنَآ أَن نُّشْرِكَ بِٱللَّهِ مِن شَيْءٍ ﴾ نه ښائېږي موږ ته چي شریک ونیسو په الله پوري هيڅ شی یعني موږ انبیاوو ته نه ښايې چي له الله سره شریک ونیسو پداسي حال کي چي په موږ يې دغوراوي انعام پېرزوینه کړي ده ﴿ ذَٰلِكَ مِن فَضْلِ ٱللَّهِ عَلَيْنَا وَعَلَى ٱلنَّاسِ ﴾ (دغه ایمان اوتوحید ) دالله له فضل څخه دی پرموږباندي اوپرنوروخلګو ) یعني دغه دالله توحید اوپه هغه ایمان راوړل دالله فضل پرموږباندي دی چي موږيې په رسالت نازولي یو اوپه خلګو دا فضل شوی چي ددوی دلارښووني اوهدایت لپاره يې ورته انبیاء علیهم السلام رااستولي دي ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ ﴾ اولیکن زیات له خلګو شکرنه کاږي (دالله دفضل نو ورسره شریکان نیسي اوکله چي علیه السلام دخپل سپېڅلي اوحنیف دین یادونه وکړه هغه چي دانبیاوو دین دی نوبې دحسن استدلال په ډول ددې زلمیانو ددین غندنه وکړه چي دبتانو عبادت کوي ويې ویل: ﴿ يَٰصَٰحِبَيِ ٱلسِّجْنِ ءَأَرْبَابٌ مُّتَفَرِّقُونَ خَيْرٌ أَمِ ٱللَّهُ ٱلْوَٰحِدُ ٱلْقَهَّارُ ﴾ ( اې دواړو زماد زندان ملګرو آیاتارپه تارخدایان غوره دي ، که هغه الله غوره دی ) چي یودی ډېرقوي ، غالب دی ) یعني اې زماد ځېلخانې دوو ملګرو ! آیاهغه بې شمېره خدایا ن (بتان ) چي نه ګټه رسوي اونه زیان دفع کوي غوره دي که هغه واحد ذوالجلال دعظمت

---

(١) البیضاوي ٣٢۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



خاوندپرودګار؟ ﴿ مَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِهِۦٓ إِلَّآ أَسْمَآءً سَمَّيْتُمُوهَآ أَنتُمْ وَءَابَآؤُكُم ﴾ عبادت نکوئ تاسي غيرله الله مګردڅونومونه چې نومونه مو ايښي پرهغوتاسي او ستاسي پلرونو، دخدايانواوهغوی دهيڅ څېزتوان نلري څکه جمادات دي ﴿ مَّآ أَنزَلَ ٱللَّهُ بِهَا مِن سُلْطَٰنٍ ﴾ ندی الله نازل کړی په (عبادت د ) هغوی کوم برهان حجت سند ﴿ إِنِ ٱلْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ﴾ ندی حکومت د (هيچا ) مګرخاص دالله دی يعني دعبادت اودين په هکله له الله پرته دهيچاحکم نه چلېږي ﴿ أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوٓاْ إِلَّآ إِيَّاهُ ﴾ امربې کړی دی پدې چې عبادت مکوئ تاسي مګر دهم ده (څکه چې الله دعبادت ور دی دعظمت اوجلال خاونددی ﴿ ذَٰلِكَ ٱلدِّينُ ٱلْقَيِّمُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ دا(عبادت دده) دين دی سم (چې هيڅ کږوالی پکي نشته) يعني داهغه دالله لپاره په عبادت کی اخلاص او سم دين دی کوم چې زه تاسو ورته رابولم وليکن زياتره دخلګونه پوهېږي (په عظمت دالله نودهغه چاعبادت کوي چې نه ضرر دفع کوي اونه هم ګټه رسوي ،په تدريجي توګه عليه السلام پردوی باندي دليل راوړچي لومړی يې دتوحيد ښېګړي وربه ګوته کړې اوبيايې دا دليل ورته ووايو چې هغه چې دوی يې دخدايانو په نامه پيژنی او عبادت يې کوي دالوهيت اوعبادت مستحق نه دي اوبيا يې ورته صراحتا وويل: چې دغه دين چې حق اوسم دي د واحد الاحداو فردالصمد ذات عبادت دی چې دالهي دعوت دغه ډول ته اسلوب حکيم ويلی شوچي لومړی يې هدايت اوارشاد ورپسې يې پند اونصيحت وړاندي کړ اوله دې وروسته يې دخوبونو دتعبيرپه هکله ورته داسي وويل: ﴿ يَٰصَٰحِبَيِ ٱلسِّجْنِ أَمَّآ أَحَدُكُمَا فَيَسْقِى رَبَّهُۥ خَمْرًا ﴾ اې زمادبنديخانې دواړو ملګرو ! هرڅه يوله تاسي دواړو (چې دباچاساقي دی ) نووبه څښوي بادارخپل ته شراب (لکه دپخوا په شان) ﴿ وَأَمَّا ٱلْءَاخَرُ فَيُصْلَبُ فَتَأْكُلُ ٱلطَّيْرُ مِن رَّأْسِهِۦ ﴾ اوهرچې دابل (دباچادوډۍ پخونکی دی ) نوپه داربه شي نوبه مرغان خوري غوښي له سره دده ) روايت کېږي کله چې يې دوی دواړوته دغه خبر وړ واورول نو دواړه منکرشول چې هيڅ مو په خوب نه دي ليدلي نو عليه السلام ورته وفرمايل: ﴿ قُضِىَ ٱلْأَمْرُ ٱلَّذِى فِيهِ تَسْتَفْتِيَانِ ﴾ (فيصله شوی دی هغه کارچې دهغه (په هکله) تاسي فتواغوښتله له ماڅخه) يعني که رښتيا واياست ، که دروغ همداسي ارو مروکېدونکي دي ﴿ وَقَالَ لِلَّذِى ظَنَّ أَنَّهُۥ نَاجٍ مِّنْهُمَا ٱذْكُرْنِى عِندَ رَبِّكَ ﴾ نو وويل: يوسف هغه يوه ته چې يقين درلودچې ببشکه دی خلاصېدونکی دی (چې ساقي وو ) يادکړه (مظلوميت زما ) په نزد دمالک ستا(ښايې چې زمادخلاصون امر وفرمايي زمادمظلوميت په سبب ﴿ فَأَنسَىٰهُ ٱلشَّيْطَٰنُ ذِكْرَ رَبِّهِۦ ﴾ نوهېرکړل ترې شيطان يادول ديوسف هغه بادار خپل ته ﴿ فَلَبِثَ فِى ٱلسِّجْنِ بِضْعَ سِنِينَ ﴾ (نوپاتي شويوسف په بنديخانه کي څوکاله ) يعني اوه کاله مفسرين کرام وايې : چې يوسف عليه السلام په بنديخانه کي دپاتي کېدلو سبب داوو چې هغه په مخلوق باندي اعتماد وکړ او دايې هېرکړل چې خالق تعالی ته خپل حاجت وړاندي کړي . قرطبي وايې : چې وهب بن منبه وايې : چې حضرت ايوب عليه السلام هم اوه کاله درنځ په ازموينښت کي راغلی اويوسف عليه السلام هم اوه کاله بندي وو.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



بلاغت:

۱-د ﴿ فَصَدَقَتْ ﴾ او ﴿ فَكَذَبَتْ ﴾ او ﴿ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴾ او ﴿ ٱلْكَٰذِبِينَ ﴾ ترمينځ دطباق صنعت دی اوهغه له بديعي محسناتوڅخه ګڼل کېږي.

۲-پدې کلام کي چي فرمايي: ﴿ مِنَ ٱلْخَاطِـِٔينَ ﴾ دلته يې ذکورپه أناثوباندي غالب ګڼلي دي.

۳-﴿ سَمِعَتْ بِمَكْرِهِنَّ ﴾ مکريې دغيبت لپاره څکه استعاره کړی چي دواړه په پټهدلوکي سره مشابه دي.

۴-کله چي فرمايي: ﴿ وَقَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ ﴾ پدې کي هم استعاره ده اوغوڅول دلاسونو يې له پرهارونوڅخه استعاره کړي دي.

۵-د ﴿ أَعْصِرُ خَمْرًا ﴾ په کلام کي مجازمرسل صنعت دی اودمايؤل په اعتبارسره چي زه نچوړم انګور چي شراب ترې جوړشي راغلی دی.

فائده:

روايت کېږي چي حضرت جبريل عليه السلام حضرت يوسف عليه السلام ته بنديخانې ته حاضرشو (دعتاب په توګه ) يې ورته وويل: چي اې يوسفه ! د ورونولـه قتل څخه چا وژغورلې ؟ويل يې( الله تعالى ) ويل يې چاله کوهي څخه راوايستلې ؟ ويل يې الله (تبارک وتعالى ) ورته ويل يې چا له فحش کاره وژغورلې ؟ويل يې الله تعالى ): ورته ويل يې دښځوفريب چا درڅخه ليري کړ؟ ويل يې الله (سبحانه وتعالى ) نو ورته ويل يې څرنګه دي له الله څخه دخلاصون غوښتنه ونکړه اوپه مخلوق دي اعتباروکړ !؟نويوسف عليه السلام وويل: اې پرورد‌ګاره ! دايوه خبره دښوئېدلو راڅخه صادره شوه له تاڅخه اې دابراهيم عليه السلام اوشيخ يعقوب عليه السلام پروردګاره اومعبوده ! سوال کوم چي په ماورحم‌ېږي ! نوجبريل عليه السلام ورته وويل: ستاسزاداده چي څوکاله په بنديخانه کي تېرکړې[1]

تنبيه:

علماء کرام دالله جل جلاله ددې وينا په باب چي فرمايي: ﴿ وَٱسْتَبَقَا ٱلْبَابَ ﴾ کي داسي وايي: چي دغه دقرآنکريم دمعجز اختصارڅخه ګڼل کېږي چي ډېري معناګاني په لږو الفاظوکي راغونډي کړي اوداپدې چي کله هغې ورڅخه دځپل مراد غوښتنه وکړه اوهغه انکار وکړنو ددروازې په لوري دواړو منډه واخيسته دې ددې لپاره چي هغه راوګرزوي اوهغه دخلاصون اوتېښتي هڅه ډغه ټول قرآنکريم پدې بليغ عبارت سره چي (واستبقا الباب) دی اداکړل.

## د(همّ) دتفسيرپه باب دځينو مفسرينو تېروتني او (شطحات)

دځينومفسرينو قلمونه کاږه شوي ، پښې يې ښوئېدلي چي ليکلي يې دي: يوسف عليه السلام هغې ته دناولي کار(هم) قصدوکړ اوډېرو تفسيرکتابونه په اسرائيلي رواياتوډک شوي دي هغه چي باطل اوناکاره روايات

---

[1] القرطبي ۹ / ۱۹۲

Bawar.net



بې د(برهان) او(هم )په باب راغوندکړي دي آن تردې چې ځينوګمان کړی چې يوسف عليه السلام دپرتوګ وانښ پرانيستلی اوهغې ته مخامخ کښېنستلی دی اوبيايې دخپل پلار انځور ليدلی چې دقهر ګوته يې په غاښ چيچله نوبيايې هغه خوشي کړي اوله شرمه راپاڅېدلی دی اوداسي نور ناسم روايات چې بند اوسربندلري ، زه نه پوهېږم چې دغه روايتونو څرنګه دتفسير کتابونو ته لاره موندلې ده اوځينو هغه دښې خبري په توګه منلي خو دغه ټول لکه چې علامة ابو السعود خرافات اوأباطيل بللی دي چې عقل يې نه مني اوغوږونه يې نه اوري بيا څرنګه له دغومفسرينو څخه داورکه شوي چې يوسف عليه السلام صديق، کريم نبي اودبل کريم نبي زوی دی اوداچې عصمت دانبياوو عليهم السلام له صفاتوڅخه وي . اې خلګو ! سوچ وکړئ ، عقل دروراندي کړئ دغه کتابونه له داسي چټي اوناکاره رواياتوڅخه ومينځئ ؛ زناخوترټولوګناهونو بدتره ګناه ده څرنګه به يوپيغمبر چې له مکرمينوانبياووڅخه دی زناته زړه ښه کړي ؟اودادی چې زه يوازي له کتاب الله څخه لس دلائل ددې عليه السلام په عصمت کي وړاندي کوم:

لومړی: داچې سخت ممانعت يې کړی اوپخپل ټول توان سره يې په وړاندي دړېدلی چې الله تعالی فرمايي:

﴿ قَالَ مَعَاذَ ٱللَّهِ إِنَّهُۥ رَبِّىٓ أَحْسَنَ مَثْوَاىَ ﴾ ..

دوهم: دهغه تېښته وروسته له دې چې هغې ټولي دروازې کلکي پوري کړې اولاري يې وربندي وترلې الله تعالی فرمايي: ﴿ وَٱسْتَبَقَا ٱلْبَابَ وَقَدَّتْ قَمِيصَهُۥ مِن دُبُرٍ ﴾.

دريم: داچې بنديخانه يې ترزناغوره کړه چې: ﴿ قَالَ رَبِّ ٱلسِّجْنُ أَحَبُّ إِلَىَّ مِمَّا يَدْعُونَنِىٓ إِلَيْهِ ﴾.

څلورم: دالله تعالی ثنا اوستاينه چې دهغه څخه يې په ډېروځايونو کي راوړي لکه: ﴿ إِنَّهُۥ مِنْ عِبَادِنَا ٱلْمُخْلَصِينَ ﴾ ﴿ ءَاتَيْنَٰهُ حُكْمًا وَعِلْمًا ﴾ نوآياهغه الله جل جلاله ته مخلص به چېري هم دزنا قصدوکړي ؟!

پنځم: دوړکوټي ماشوم شاهدي چې دده په پاکي يې وويله کوټلی دليل دی چې ﴿ وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّنْ أَهْلِهَآ ﴾ دآيت ترپايه.

شپږم: دعزيز دارتينې اعتراف چې حضرت يوسف پاک اوعفيف دی چې وايي: ﴿ وَلَقَدْ رَٰوَدتُّهُۥ عَن نَّفْسِهِۦ فَٱسْتَعْصَمَ ﴾.

اوم: خپل پروردګارته پناه وروړل اومناجات وړاندي کول ترڅويې دښځو له فريب څخه وساتي چې الله فرمايي: ﴿ فَٱسْتَجَابَ لَهُۥ رَبُّهُۥ فَصَرَفَ عَنْهُ كَيْدَهُنَّ ﴾.

اتم: دڅرګندو دلائلو اوښکاره علامو اونښوچې دده برائت ښکاره کوي دادی چې خپلخانې ته يې واچاوو چې دخلګوخبري ورکي شي ﴿ ثُمَّ بَدَا لَهُم مِّنۢ بَعْدِ مَا رَأَوُا۟ ٱلْءَايَٰتِ لَيَسْجُنُنَّهُۥ حَتَّىٰ حِينٍ ﴾.

نهم: ترهغوپوري له بنديخانې څخه نه راوتل ترڅوچې برائت يې تثبيت شوی نه وي لکه چې فرمايي: ﴿ ٱرْجِعْ إِلَىٰ رَبِّكَ فَسْـَٔلْهُ مَا بَالُ ٱلنِّسْوَةِ ٱلَّٰتِى قَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ ﴾.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



لسم: دعزيز دمېرمني او نورونښځو بربندا اعتراف چې يوسف عليه السلام برئ دی ﴿ قَالَتِ ٱمْرَأَتُ ٱلْعَزِيزِ
ٱلْـَٔـٰنَ حَصْحَصَ ٱلْحَقُّ أَنَا۠ رَٰوَدتُّهُۥ عَن نَّفْسِهِۦ وَإِنَّهُۥ لَمِنَ ٱلصَّـٰدِقِينَ ﴾ اوپدې کې دهغه په عفت اوسپېڅلتيا باندې
بېشکه دليل اوبرهان موجوددی. والله يقول الحق وهو يهدی السبيل.

## الله تعالی فرمايي:

﴿ وَقَالَ ٱلْمَلِكُ إِنِّىٓ أَرَىٰ سَبْعَ بَقَرَٰتٍ سِمَانٍ يَأْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ وَسَبْعَ سُنۢبُلَـٰتٍ خُضْرٍ وَأُخَرَ
يَابِسَـٰتٍ ۖ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلْمَلَأُ أَفْتُونِى فِى رُءْيَـٰىَ إِن كُنتُمْ لِلرُّءْيَا تَعْبُرُونَ ﴿٤٣﴾ قَالُوٓا۟ أَضْغَـٰثُ أَحْلَـٰمٍ ۖ وَمَا نَحْنُ بِتَأْوِيلِ ٱلْأَحْلَـٰمِ
بِعَـٰلِمِينَ ﴿٤٤﴾ وَقَالَ ٱلَّذِى نَجَا مِنْهُمَا وَٱدَّكَرَ بَعْدَ أُمَّةٍ أَنَا۠ أُنَبِّئُكُم بِتَأْوِيلِهِۦ فَأَرْسِلُونِ ﴿٤٥﴾ يُوسُفُ أَيُّهَا ٱلصِّدِّيقُ أَفْتِنَا فِى
سَبْعِ بَقَرَٰتٍ سِمَانٍ يَأْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ وَسَبْعِ سُنۢبُلَـٰتٍ خُضْرٍ وَأُخَرَ يَابِسَـٰتٍ لَّعَلِّىٓ أَرْجِعُ إِلَى ٱلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ
يَعْلَمُونَ ﴿٤٦﴾ قَالَ تَزْرَعُونَ سَبْعَ سِنِينَ دَأَبًا فَمَا حَصَدتُّمْ فَذَرُوهُ فِى سُنۢبُلِهِۦٓ إِلَّا قَلِيلًا مِّمَّا تَأْكُلُونَ ﴿٤٧﴾ ثُمَّ يَأْتِى مِنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ
سَبْعٌ شِدَادٌ يَأْكُلْنَ مَا قَدَّمْتُمْ لَهُنَّ إِلَّا قَلِيلًا مِّمَّا تُحْصِنُونَ ﴿٤٨﴾ ثُمَّ يَأْتِى مِنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ عَامٌ فِيهِ يُغَاثُ ٱلنَّاسُ وَفِيهِ يَعْصِرُونَ ﴿٤٩﴾
وَقَالَ ٱلْمَلِكُ ٱئْتُونِى بِهِۦ ۖ فَلَمَّا جَآءَهُ ٱلرَّسُولُ قَالَ ٱرْجِعْ إِلَىٰ رَبِّكَ فَسْـَٔلْهُ مَا بَالُ ٱلنِّسْوَةِ ٱلَّـٰتِى قَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ ۚ إِنَّ رَبِّى
بِكَيْدِهِنَّ عَلِيمٌ ﴿٥٠﴾ قَالَ مَا خَطْبُكُنَّ إِذْ رَٰوَدتُّنَّ يُوسُفَ عَن نَّفْسِهِۦ ۚ قُلْنَ حَـٰشَ لِلَّهِ مَا عَلِمْنَا عَلَيْهِ مِن سُوٓءٍ ۚ قَالَتِ
ٱمْرَأَتُ ٱلْعَزِيزِ ٱلْـَٔـٰنَ حَصْحَصَ ٱلْحَقُّ أَنَا۠ رَٰوَدتُّهُۥ عَن نَّفْسِهِۦ وَإِنَّهُۥ لَمِنَ ٱلصَّـٰدِقِينَ ﴿٥١﴾ ذَٰلِكَ لِيَعْلَمَ أَنِّى لَمْ أَخُنْهُ بِٱلْغَيْبِ وَأَنَّ
ٱللَّهَ لَا يَهْدِى كَيْدَ ٱلْخَآئِنِينَ ﴿٥٢﴾ ۞ وَمَآ أُبَرِّئُ نَفْسِىٓ ۚ إِنَّ ٱلنَّفْسَ لَأَمَّارَةٌۢ بِٱلسُّوٓءِ إِلَّا مَا رَحِمَ رَبِّىٓ ۚ إِنَّ رَبِّى غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٥٣﴾
وَقَالَ ٱلْمَلِكُ ٱئْتُونِى بِهِۦٓ أَسْتَخْلِصْهُ لِنَفْسِى ۖ فَلَمَّا كَلَّمَهُۥ قَالَ إِنَّكَ ٱلْيَوْمَ لَدَيْنَا مَكِينٌ أَمِينٌ ﴿٥٤﴾ قَالَ ٱجْعَلْنِى عَلَىٰ خَزَآئِنِ
ٱلْأَرْضِ ۖ إِنِّى حَفِيظٌ عَلِيمٌ ﴿٥٥﴾ وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِى ٱلْأَرْضِ يَتَبَوَّأُ مِنْهَا حَيْثُ يَشَآءُ ۚ نُصِيبُ بِرَحْمَتِنَا مَن نَّشَآءُ ۖ
وَلَا نُضِيعُ أَجْرَ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴿٥٦﴾ وَلَأَجْرُ ٱلْـَٔاخِرَةِ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَكَانُوا۟ يَتَّقُونَ ﴿٥٧﴾ وَجَآءَ إِخْوَةُ يُوسُفَ فَدَخَلُوا۟
عَلَيْهِ فَعَرَفَهُمْ وَهُمْ لَهُۥ مُنكِرُونَ ﴿٥٨﴾ وَلَمَّا جَهَّزَهُم بِجَهَازِهِمْ قَالَ ٱئْتُونِى بِأَخٍ لَّكُم مِّنْ أَبِيكُمْ ۚ أَلَا تَرَوْنَ أَنِّىٓ أُوفِى ٱلْكَيْلَ
وَأَنَا۠ خَيْرُ ٱلْمُنزِلِينَ ﴿٥٩﴾ فَإِن لَّمْ تَأْتُونِى بِهِۦ فَلَا كَيْلَ لَكُمْ عِندِى وَلَا تَقْرَبُونِ ﴿٦٠﴾ قَالُوا۟ سَنُرَٰوِدُ عَنْهُ أَبَاهُ وَإِنَّا لَفَـٰعِلُونَ
﴿٦١﴾ وَقَالَ لِفِتْيَـٰنِهِ ٱجْعَلُوا۟ بِضَـٰعَتَهُمْ فِى رِحَالِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَعْرِفُونَهَآ إِذَا ٱنقَلَبُوٓا۟ إِلَىٰٓ أَهْلِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿٦٢﴾ فَلَمَّا
رَجَعُوٓا۟ إِلَىٰٓ أَبِيهِمْ قَالُوا۟ يَـٰٓأَبَانَا مُنِعَ مِنَّا ٱلْكَيْلُ فَأَرْسِلْ مَعَنَآ أَخَانَا نَكْتَلْ وَإِنَّا لَهُۥ لَحَـٰفِظُونَ ﴿٦٣﴾ قَالَ هَلْ
ءَامَنُكُمْ عَلَيْهِ إِلَّا كَمَآ أَمِنتُكُمْ عَلَىٰٓ أَخِيهِ مِن قَبْلُ ۖ فَٱللَّهُ خَيْرٌ حَـٰفِظًا ۖ وَهُوَ أَرْحَمُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴿٦٤﴾ وَلَمَّا فَتَحُوا۟
مَتَـٰعَهُمْ وَجَدُوا۟ بِضَـٰعَتَهُمْ رُدَّتْ إِلَيْهِمْ ۖ قَالُوا۟ يَـٰٓأَبَانَا مَا نَبْغِى ۖ هَـٰذِهِۦ بِضَـٰعَتُنَا رُدَّتْ إِلَيْنَا ۖ وَنَمِيرُ أَهْلَنَا وَنَحْفَظُ
أَخَانَا وَنَزْدَادُ كَيْلَ بَعِيرٍ ۖ ذَٰلِكَ كَيْلٌ يَسِيرٌ ﴿٦٥﴾

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


أَن يُحَاطَ بِكُمْ فَلَمَّآ ءَاتَوْهُ مَوْثِقَهُمْ قَالَ ٱللَّهُ عَلَىٰ مَا نَقُولُ وَكِيلٌ ﴿٦٦﴾ وَقَالَ يَٰبَنِيَّ لَا تَدْخُلُوا۟ مِنۢ بَابٍ وَٰحِدٍ وَٱدْخُلُوا۟ مِنْ أَبْوَٰبٍ
مُّتَفَرِّقَةٍ وَمَآ أُغْنِى عَنكُم مِّنَ ٱللَّهِ مِن شَىْءٍ إِنِ ٱلْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَعَلَيْهِ فَلْيَتَوَكَّلِ ٱلْمُتَوَكِّلُونَ ﴿٦٧﴾ وَلَمَّا
دَخَلُوا۟ مِنْ حَيْثُ أَمَرَهُمْ أَبُوهُم مَّا كَانَ يُغْنِى عَنْهُم مِّنَ ٱللَّهِ مِن شَىْءٍ إِلَّا حَاجَةً فِى نَفْسِ يَعْقُوبَ قَضَىٰهَا وَإِنَّهُۥ
لَذُو عِلْمٍ لِّمَا عَلَّمْنَٰهُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٦٨﴾ ﴾ یوسف: ۴۳ ــ ۶۸

## مناسبت اوتړاو:

کله چي الله تبارک وتعالی وغوښتل چي یوسف علیه السلام له بندیخانې څخه آزادکړي نو دمصرباچا عجیبه غوندي خوبونه ولیدل چي هغه یې ووېراوو نوېې کاهنان اومنجمان راوغوښتل، خپل خوبونه یې ورته وراندي کړل چي تعبیریې وکړئ خو الله ﷻ دوی ټول عاجزکړل اوپه تعبیرکولو یې ونه توانېدل ترڅو دیوسف علیه السلام دخلاصون سبب شي.

## لغتونه:

(عجاف) ډنګر اوکمزوي ښځینه عجفاء راځي (تعبرون) دخوبونو تعبیرونه (تاسو کوئ) (أضغاث) دضغث جمع هغه یوه ګېډۍ وابنه بولي چي وچ اولامده سره ګډوي (أحلام) هغه خوبونه چي ویده سړی یېویني اومعنایې داچي حق اوباطل پکي خلط ملط شوي وي (ادّکر) له هېري وروسته ورپه یادېدل (دأبا) په یوشي باندي تل ترتله پاتي کېدل ویل کېږي: (دأب علی علمه) یعني پخپل علم یې استمرارکړی دی (تحصنون) تاسوساتئ اوذخیره کوئ یې (حصحص) څرګندشو (مکین) دستري مرتبې خاوند (رحالهم) د (رحل) جمع اوهغه دمرکب په شاپېټي ته وایې (نمیر) یعني موږبه ورته خوراک راوړو (یحاط بکم) یعني چي ټول هلاک شئ تاسې.

## تفسیر:

﴿ وَقَالَ ٱلْمَلِكُ إِنِّىٓ أَرَىٰ سَبْعَ بَقَرَٰتٍ سِمَانٍ يَأْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ ﴾ وویل (دمصر) باچا (ریان) بېشکه ماولیدلې په خوب کي اوه څربي غواوي (چي له وچي ویالې رابهرشوې) چي خوري داڅربي اوو نورو خوارو غواوو لره) یعني کله چي داڅربي غواوي رابهرشوې ورپسې اوه نوري ډنګري خواري غواوي چي زښته کمزوري وې راغلې نو دغو څربو چاغو غواوو هغه ډنګري ترستوني تېري کړې ﴿ وَسَبْعَ سُنۢبُلَٰتٍ خُضْرٍ وَأُخَرَ يَابِسَٰتٍ ﴾ (او (بیامي ولیدل) اوه شنه وږي اونور اوه وچ وږي) یعني همداسي پاتي خوب مي اوه زرغونه وږي چي داني یې پخې شوي وې ولیدل چي اوه نور رېبل شوي وږي وچ کلک په همدې زرغونو باندي را تاو شول اوهغه یې وخوړل ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمَلَأُ أَفْتُونِى فِى رُءْيَٰىَ إِن كُنتُمْ لِلرُّءْيَا تَعْبُرُونَ ﴾ اې ډلي دمشرانو! تعبیر راکړئ تاسي ټول ماته پدې خوب زماکي که یې تاسي چي دخوب (ښه) تعبیرکولای شئ (اوپه معنایې پوهېږئ)؟ ﴿ قَالُوٓا۟ أَضْغَٰثُ أَحْلَٰمٍ ﴾ نو وویل: دغواشرافو (دولتي درباریانو) داګډ وډ خوبونه دي (چي حقیقت نلري) ضحاک وایې: چي معنایې دروغجن خوبونه ﴿ وَمَا نَحْنُ بِتَأْوِيلِ ٱلْأَحْلَٰمِ بِعَٰلِمِينَ ﴾ اونه یو موږ پوهېدونکي په

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

تعبير دخوشي (دروغجنو) خوبونو باندي(١) ﴿ وَقَالَ ٱلَّذِى نَجَا مِنْهُمَا وَٱدَّكَرَ بَعْدَ أُمَّةٍ ﴾ او وويل: هغه سړي چي
خلاص شوی وو له هغو دوارو (چي ساقي وو) اوپه يادېې شو يوسف وروسته له ډېري مودې ﴿ أَنَا أُنَبِّئُكُم
بِتَأْوِيلِهِۦ فَأَرْسِلُونِ ﴾ چي زه به تاسي ددې په تعبير خبر کړم نو تاسي ماولېږئ: دغه يې باچاته دتعظيم په توګه وويل
. ابن عباس رضی الله عنهما وايې: چي څېلخانه په ښارکي دننه نه وه ځکه يې وويل چي ما واستوئ(٢) ﴿ يُوسُفُ
أَيُّهَا ٱلصِّدِّيقُ ﴾ اې يوسفه ! اې ډېره رښتوني ! په کلام کي محذوف راغلی اوپه هغه باندي دکلام سياق دلالت
کوي هغه داچي ساقي يې يوسف عليه السلام ته ورولېږه اوچي و رورسېدو نوېې ورته ؤويل: اې يوسفه اې ډېره
رښتونيه ! ځکه يې رښتونی وبالو چي ده له پخوالا هغه رښتنولي دخوبونو په هکله ازمويلي وه صديق په صدق
کي مبالغه ده ﴿ أَفْتِنَا فِى سَبْعِ بَقَرَٰتٍ سِمَانٍ يَأْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ وَسَبْعِ سُنۢبُلَٰتٍ خُضْرٍ وَأُخَرَ يَابِسَٰتٍ ﴾
فتواراکړه موږ ته په اوو څربو غواووکي چي وخوري دې څربولره اوه خواري غواوي اوپه اوو ودړو شنو اوو
وچو کي (چي له شنو چاپېروي) يعني ددغه عجيبه خوب تعبير راکړه ﴿ لَّعَلِّىٓ أَرْجِعُ إِلَى ٱلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَعْلَمُونَ ﴾
ښايې چي زه بېرته لاړشم خلګوته (چي پاچا اودرباريان دی) دپاره ددې چي دوی پوه شي (ستافضل اوعلم ورته
څرګند شي اوله دې څېلخانې دې خلاص کړي. امام فخر رازي وايې: چي دغه جمله چي ويې ويل: ﴿ لَّعَلِّىٓ أَرْجِعُ إِلَى
ٱلنَّاسِ ﴾ ځکه يې زياته کړه چي هغه وپوهېدو چي ټول خلګ ددې خوب له تعبير څخه عاجزشوي نو ېې
ويرېدو چي مبادا (يوسف عليه السلام) به هم ترې عاجزه وي(٣) ﴿ قَالَ تَزْرَعُونَ سَبْعَ سِنِينَ دَأَبًا ﴾ وويل: (يوسف)
چي کرئ به تاسي اوه کاله پرله پسې په ډېر زياراو کوښښ ﴿ فَمَا حَصَدتُّمْ فَذَرُوهُ فِى سُنۢبُلِهِۦٓ ﴾ نو هرهغه چي
ورېبل تاسي نوپرېږدئ هغه غله په وږي خپل کي (چي چينجي ياخوګی يې ونکړي) ﴿ إِلَّا قَلِيلًا مِّمَّا تَأْكُلُونَ ﴾
مګرلږشاني له هغه چي تاسي يې خورئ (نوهغه ترې پاک اوميده کړئ اونور په وږو کي پرېږدئ ﴿ ثُمَّ يَأْتِى مِنۢ بَعْدِ
ذَٰلِكَ سَبْعٌ شِدَادٌ ﴾ بيابه راشي وروسته له دغو (اووکلونو ودانو) اوه نور کلونه سخت (دکاختي) ﴿ يَأْكُلْنَ مَا
قَدَّمْتُمْ لَهُنَّ ﴾ چي وبه خورئ تاسی هغه غلی چي ذخيره کړی مو وی ددی کلونو لپاره (په ودانو کلونو کی) ﴿ إِلَّا
قَلِيلًا مِّمَّا تُحْصِنُونَ ﴾ مګرلږشاني هغه چي تاسي يې (تخم ته) ساتئ ﴿ ثُمَّ يَأْتِى مِنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ عَامٌ فِيهِ يُغَاثُ ٱلنَّاسُ
وَفِيهِ يَعْصِرُونَ ﴾ بيابه راشي وروسته له دې (کلونو دکاختي) يوکال چي په هغه کې به ډېرباران نه وي خلګو ته
اوپدې کي به ونښتبخي خلګ (مېوې اوغوړي دانې) زمخشري وايې چي عليه السلام
دڅربوغواواوشنووږو تعبيرپه ودانو کلونو اودخوارو غواوو وچو وږوتعبيريې په کاختي کالونو وفرمايه

(١) چاپياويلي چي معناداچي موږ له سره دخوبونو په تعبيرنه پوهېږو .
(٢) الطبري ١٢ / ٢٢٩
(٣) الرازي ١٨ / ١٤٩

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اوبیایې ددې زېرې ورکړچې له دې وروسته اتم کال به بیامبارک اوودان وي پرېمانه نعمتونه به پکې را واوري دغه خبره هغه ته په وحی معلومه شوي وه (۱) ﴿ وَقَالَ ٱلْمَلِكُ ٱئْتُونِي بِهِۦ ﴾ (او وویل: باچاتاسي ماته دغه (یوسف) راولئ) یعني کله چې ساقي باچاته راستون شو اودیوسف علیه السلام تعبیرېې ور واوراوو نو دباچابېخي خوښ شو او وېې ویل: هغه ماته راولئ چې زه يې پخپله خني واورم اوهغه ووینم ﴿ فَلَمَّا جَآءَهُ ٱلرَّسُولُ قَالَ ٱرْجِعْ إِلَىٰ رَبِّكَ فَسْـَٔلْهُ مَا بَالُ ٱلنِّسْوَةِ ٱلَّٰتِي قَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ ﴾ نوکله چې راغی دغه (یوسف ته) استازی (دباچا) وویل: (یوسف) چې بیرته لاړ شه ! بادارخپل ته نوپوښتنه وکړه ته له ده نه چې دهغوښځو چې غوځ کړي يې وو لاسونه خپل څه حال وو ؟ یعني دهغوښځو له کیسې څخه يې وپوښته چې آیا دهغوی حال ورته معلوم دی ؟ آیاپوهېږي چې زه ولي بندي شوی یم اوپرمادوی په سبب ظلم شوی دی ؟ یوسف علیه السلام له بندیخانې څخه ترځوېې له دغه ناولي تهمت څخه لمن پاکه شوي نه وي دراوتلو اعتصاب وکړ اوداچې ټول خلک وپوهېږي هغه بېګناه بندي شوی دی ﴿ إِنَّ رَبِّي بِكَيْدِهِنَّ عَلِيمٌ ﴾ بېشکه رب زما په فریبونو ددوی ښه خبردار دی (هغه په ټولو پټو امورو اوددوی په مکرونو ښه خبردی) ﴿ قَالَ مَا خَطْبُكُنَّ إِذْ رَٰوَدتُّنَّ يُوسُفَ عَن نَّفْسِهِۦ ﴾ وویل: باچا (هغوښځوته) چې ستاسوحال څه وو چې تاسي طلب کړ یوسف له نفس دده څخه (مرادخپل) یعني ستاسو هغه ستره پېښه څرنګه وه کله چې یوسف مو ناولي کار(زنا) ته راوبالو(۲)؟ (دعزیز مېرمن هم ورسره ملګري راوستل شوه). دوی وویل: ﴿ قُلْنَ حَٰشَ لِلَّهِ مَا عَلِمْنَا عَلَيْهِ مِن سُوٓءٍ ﴾ وویل: ټولوښځو پاکي ده الله ته نه یو پوهېدلي موږ په دغه یوسف باندي له هیڅ بدي نه) یعني معاذالله چې یوسف دي چاته په بده سترګه کتلي وي دغه دیوسف علیه السلام له تنزیه اوپاکي سره جوخت دهغه په پاکي باندي تعجب کول هم دی ﴿ قَالَتِ ٱمْرَأَتُ ٱلْعَزِيزِ ٱلْـَٰٔنَ حَصْحَصَ ٱلْحَقُّ ﴾ وویل: دعزیز ښځي (زلیخا) چې اوس حق ظاهرشو (وروسته له پټېدلوېې) ﴿ أَنَا۠ رَٰوَدتُّهُۥ عَن نَّفْسِهِۦ ﴾ ماطلب کړی وو په فریب لپاره دتېرایستلو دنفس دده (چې خپل مرادخني لاس ته کړم) ﴿ وَإِنَّهُۥ لَمِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴾ اوبېشکه چې یوسف خامخا له رښتنیو څخه دی (چې وایي: ﴿ هِيَ رَٰوَدَتْنِي عَن نَّفْسِي ﴾ هودغه دخلګوپه وړاندي څرګند اعتراف دی چې یوسف علیه السلام بېخي بریٔ دی ﴿ ذَٰلِكَ لِيَعْلَمَ أَنِّي لَمْ أَخُنْهُ بِٱلْغَيْبِ ﴾ دغه (ددې لپاره) چې پوه شي (عزیز) چې ماخیانت ندی کړی له ده سره په پسي شا هم. أظهر خودادی چې دغه خبره دیوسف علیه السلام وي، هغه وخت يې کړي وي کله چې ښځوده برائت بیان کړ نو ده وویل: چې دغه داستازي بیرته راخواب

---

(۱) کشاف-۲-۴۷۷

(۲) شهید سید قطب رحمه الله وایي: چې استازی راغبرګ شو اوباچاته يې وویل: هغه هم سمدستي ښځي راوبللې اودستري پېښي پوښتنه يې خني وکړه چې: ﴿ مَا خَطْبُكُنَّ إِذْ رَٰوَدتُّنَّ يُوسُفَ عَن نَّفْسِهِۦ ﴾ اوله دي څخه موږپوهېږو چې دعزیز په قصرکي دمېلمستیاپه وخت کي څه تېرېدل؟ چې ښځو ترهغوپوري یوسف علیه السلام ته مارېینه کوله چې دزناد غوښتني سرحد ته ورسېده اوله دې څخه موږ اټکېږو چې دغو خلګواو دمېرمنوېې په دغه تاریخي موده کي څنګه ژوند وو؟ جاهلیت خوټل هماغه جاهلیت اوناپوهي ده هغه چې دعیاشي ژوند تېروي هلته چې ماڼۍ او قصرونه دي چېرې چې نوکران اوچاکران وي هلته یومخ ایزه تحلل، اوآزادي اوبې بندو باري وي چېرې چې نرم اوپستکي غوندي خلګ وي هلته فجور اوفسق موجود وي هغه خلک چې ددوی به ارستوقراطي جامې په خان کي وي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کول مي ددې لپاره وکړل ترڅو عزيز پدې پوه شي چي ما دده دمېرمني په باب دده سره په غياب کي هم خيانت نده کړی بلکه په عفت کي اوسېدلی يم ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ لَا يَهۡدِي كَيۡدَ ٱلۡخَآئِنِينَ ﴾ اوبېشکه چي الله په لاره نه برابروي مکر دخيانت کونکو (مقصد ته يې نه رسوي) ﴿ وَمَآ أُبَرِّئُ نَفۡسِيٓۚ إِنَّ ٱلنَّفۡسَ لَأَمَّارَةُۢ بِٱلسُّوٓءِ ﴾ اوزه نه پاکوم نفس خپل بېشکه نفس خامخا ډېر امر کونکی دی په بدي سره ؛ زمخشري وايي : ويې غوښتل چي الله جل جلاله ته تواضع وړاندي کړي دنفس دما تولو لپاره يې داوېناوکړه ترڅوله کبر او غرور څخه ځان وژغوري[١] ﴿ إِلَّا مَا رَحِمَ رَبِّيٓۚ ﴾ مګر هغه چي زما رب پرې رحم وکړي (په عصمت سره) ﴿ إِنَّ رَبِّي غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴾ بېشکه رب زما ښه مغفرت کونکی (دګناهونو) ډېر رحم والادی په انعام ورکولو) ﴿ وَقَالَ ٱلۡمَلِكُ ٱئۡتُونِي بِهِۦٓ أَسۡتَخۡلِصۡهُ لِنَفۡسِيۖ ﴾ او وويل : باچاچي راولئ ماته دغه (يوسف) چي خالص کړم دی لپاره (دکارونو) دځان خپل) دغه ورته معلومه شوه نويې هغه دخپل (ځانګړي مشير) دخاصانو او مخلصانو په ډله کي عوره کېدل وغوښتل ﴿ فَلَمَّا كَلَّمَهُۥ قَالَ إِنَّكَ ٱلۡيَوۡمَ لَدَيۡنَا مَكِينٌ أَمِينٞ ﴾ (نوکله چي باچا ورسره خبري وکړې وويل : (باچايوسف ته) چي بېشکه ته نن ورځ موږ ته خاوند دمرتبې امانتګرېې ) يعني کله چي يې يوسف عليه السلام ورته راحاضر کړ اويوسف عليه السلام ورسره خبري اترې وکړې اوباچا دهغه پرېمانه عقل اوفضيلت له نژدې وليد ، دهغه خوندوره وېنايې واورېده نويې وويل : چي ته زموږ په نزد نن ورځ دلوړي مرتبې خاوند په هر څه کي امانتکاريې ﴿ قَالَ ٱجۡعَلۡنِي عَلَىٰ خَزَآئِنِ ٱلۡأَرۡضِۖ ﴾ وويل : (يوسف عليه السلام ) باچاته) چي مقرر کړه ما پر خزانود ځمکي (ستا) ﴿ إِنِّي حَفِيظٌ عَلِيمٞ ﴾ بېشکه زه ښه ساتونکی ، ښه پوه يم ) يعني امين يم اوپه ښو تصرفاتو کولو ښه پوهېږم اوچي ولايت يې ځني وغوښت څکه دعدل دخپرولو اودحق او احسان دپرځای کولو رغبت يې لاره ،دايې دځان دسپيناوي اوتزکيې لپاره نه ويل بلکه دماليې وزارت ترلاسه کولو لپاره يې دالهي ورکړې پوهي اظهاروکړ ﴿ وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي ٱلۡأَرۡضِ ﴾ اوپه مثل ددغه (نعمت ) ځای د(قدرت) ورکړموږ يوسف ته په ځمکه (دمصر) کي يعني هغه ته موعزت اوسلطان وروسته له بنديخانې اوربرونوورکړ ﴿ يَتَبَوَّأُ مِنۡهَا حَيۡثُ يَشَآءُۚ ﴾ چي اوسېدو به له دغي ځمکي (دمصر) څخه هرچېري چي به يې خوښه شوه ﴿ نُصِيبُ بِرَحۡمَتِنَا مَن نَّشَآءُۖ ﴾ (رسوو موږ رحمت خپل هرچاته چي موږ اراده وفرمايو ) يعني موږ هغه څوک له خپلو بندګانو چي ورته دانعام اوفضل اراده وکړو نازوو ﴿ وَلَا نُضِيعُ أَجۡرَ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴾ اونه ضائع کوو موږ اجر دنېکو کارانو بلکه ورزياتوو يې ﴿ وَلَأَجۡرُ ٱلۡأٓخِرَةِ خَيۡرٞ لِّلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَكَانُواْ يَتَّقُونَ ﴾ اوخامخا اجر دآخرت ډېرغوره دی ( له دنيايي نه) هغو کسانو ته چي ايمان يې راوړی او وو دوی چي پرهېزګاري يې کوله ) پدي کي دې پلوته اشاره ده چي سترمطلب دآخرت اجر اوثواب دی اوهغه څه چي ددغو محسنانو لپاره ذخيره کېږي هغه تردغه دنيوي نعمتونو خورا ستراولوی دي ﴿ وَجَآءَ إِخۡوَةُ يُوسُفَ فَدَخَلُواْ عَلَيۡهِ فَعَرَفَهُمۡ وَهُمۡ لَهُۥ مُنكِرُونَ ﴾ او راغلل د يوسف عليه السلام وروڼه نو راننوتل په دغه (يوسف) باندي پس

(١) الكشاف ٢/ ٤٨٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



(یوسف) دوی وپېژندل اودوی دغه (یوسف) لره ناپېژندونکي و؛ ځکه دباچهي هیبت وو زمانه اوږده تېره شوي وه اودځېرې بدلون راغلی وو. ابن عباس رضی الله عنهما وايي: چي دهغه دکوهي دغورځولو اودغه راتګ ترمنځ دوه ویشت کاله موده تېره شوي وه نوځکه دوی هغه ونه پېژاند(۱) اودوی دراتګ لامل داووچي ددوی په ټاټوبي کي سخته لوږه وه چي کاختي په ټولو ملکونو راغلي وه نو دوی مصرته راغلل چي دیوسف علیه السلام له هغو زېرمه کړي غلودانو څخه څه وپېري (رانیسي) اوکله چي دوی یوسف علیه السلام ته ورننوتل هغه لکه چي نابلده خلګ وي ورته وویل: دڅه لپاره زماپاچهي ته راغلی؟ دوی وویل: دغلې دپېرلو لپاره راغلي یو نویوسف علیه السلام ورته وویل: ښایي تاسو به زموږ جاسوسي کوئ؟ دوی ویل: معاذ الله نویوسف علیه السلام څني پوښتنه وکړه چي تاسو څوک یاست؟ له کومه راغلی دوی ویل: موږ له کنعان څخه راغلي اوپلار مودالله نبي یعقوب علیه السلام دی نویوسف علیه السلام څني پوښتنه وکړه چي آیاله تاسو پرته دهغه نور زامن هم شته؟ دوی ویل: هو موږ دوولس تنه ورونه وو زموږ کشری ورور له کوره بهر وتلی اوپه بېدیاکي هلاک شوی دی هغه ترموږ ګردوپه پلار ګران وو، دهغه سکنی ورور پاتي دی اوهغه یې اوس راسره ندی پرې اینبی چي زړه یې ورباندي داډه وي موږ لس تنه راغلي یو نویوسف علیه السلام دښکته کېدلو امر ورکړاو ددوی داکرام اوعزت کولوفرمان یې صادرکړ(۲) ﴿ وَلَمَّا جَهَّزَهُم بِجَهَازِهِمْ ﴾ اوکله چي تیارکړ(یوسف) دوی ته اسباب دسفر ددوی یعني کله چي خوراک اوغله یې ورکړه اودسفر نور ضروریات یې ورپوره کړل ﴿ قَالَ ٱئْتُونِى بِأَخٍ لَّكُم مِّنْ أَبِيكُمْ ﴾ نو وویل: (یوسف ورونوته) چي راولئ تاسي ماته هغه ستاسي له پلاره ورور ستاسي (بنیامین) چي زه ستاسي رښتیامعلوم کړم ﴿ أَلَا تَرَوْنَ أَنِّىٓ أُوفِى ٱلْكَيْلَ وَأَنَا۠ خَيْرُ ٱلْمُنزِلِينَ ﴾ آیانه وینئ تاسي چي ښېشکه زه پوره درکومه پیمانه اوزه غوره دمېلمستیا ورکونکویم (چي ددوی یې خوراښه اکرام اومېلمه پالنه کړي وه) ﴿ فَإِن لَّمْ تَأْتُونِى بِهِۦ فَلَا كَيْلَ لَكُمْ عِندِى وَلَا تَقْرَبُونِ ﴾ نوکه نه راووست تاسي ماته دغه (ستاسي ورور) نوله سره نشته پیمانه (دغلې) زماپه نزد تاسي ته اوتاسي بیا (زمانبارته) مه رانژدې کېږئ (دوهم ځلي) یو واریې رغبت اوهڅونه ورکړه اوبیایې اخطار ورکړ په البحر کي وایي چي: ظاهر دادی هرڅه چي یوسف علیه السلام ترسره کړي دغه دالهي وحی سره سم وو دنېکي غوښتنه خوداده چي ژرترژره خپل بزګوار والد پلار راوغواړي مګر دالله جل جلاله اراده داسي وه چي دیعقوب علیه السلام اجر اومحنت بشپړکړي اوهغه رومبني خوب تعبیرشي(۳) ﴿ قَالُوا۟ سَنُرَٰوِدُ عَنْهُ أَبَاهُ وَإِنَّا لَفَٰعِلُونَ ﴾ وویل: دوی ژربه دی په کوښښ سره له پلاره غواړو اوبېشکه موږ خامخاکونکي یو (ددې کارچی دهغه دملګرتیا لپاره به هره بهانه، چل اوپلمه لټوو) ﴿ وَقَالَ لِفِتْيَٰنِهِ ٱجْعَلُوا۟ بِضَٰعَتَهُمْ فِى رِحَالِهِمْ ﴾ او وویل: یوسف ځوانانو(مریو) (پیمانه کونکو) خپلوته چي کېږدئ هغه پانګه ددوی په بارونو ددوی کي په پټه سره ﴿ لَعَلَّهُمْ يَعْرِفُونَهَآ إِذَا ٱنقَلَبُوٓا۟ إِلَىٰٓ أَهْلِهِمْ ﴾ ښایې چي دوی وپېژني داپانګه خپله کله چي بیرته لاړشي خپل اهل ددوی ته (اوبارونه وسپړي) ﴿ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴾ ښایې چي دوی به بیابیرته راشي (ځکه چي ددوی

(۱) حاشیة الصاوي ۲ / ۲۴۹
(۲) تفسیرالجلالین ۲ / ۲۴۹
(۳) البحرالمحیط ۵ /۳۲۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دین دروپو ورکولو امرکوي اودوی حرام نه خوري نودغه به پردوی باعث شي چي بيابيرته راشي ﴿ فَلَمَّا رَجَعُوٓا إِلَىٰٓ أَبِيهِمْ قَالُوا۟ يَـٰٓأَبَانَا مُنِعَ مِنَّا ٱلْكَيْلُ ﴾ نوکله چي بيرته وگرزېدل دوی خپل پلارته نو وويل: دوی اې پلاره زموږ! منع کړه شوي ده له موږ څخه پېمانه (که بنيامين راسره لاړنشي په راتلونکي پېره کي څکه دمصرباچا داگومان کاوو چي موږ جاسوسان يو اوموږ ورته خپله کيسه واوروله، بيايې له موږ څخه ورور وغوښتل چي زموږ رښتنولي ورته ثابته شي ﴿ فَأَرْسِلْ مَعَنَآ أَخَانَا نَكْتَلْ ﴾ نو ولېږه له موږ سره ورور زموږ (بنيامين) چي پېمانه واخلو (هغه چي موږ يې له غلودانو څخه مستحق يو) ﴿ وَإِنَّا لَهُۥ لَحَـٰفِظُونَ ﴾ اوبېشکه موږ ده لره خامخاساتونکي يو (له زيانونوکړاوونو) ﴿ قَالَ هَلْ ءَامَنُكُمْ عَلَيْهِ إِلَّا كَمَآ أَمِنتُكُمْ عَلَىٰٓ أَخِيهِ مِن قَبْلُ ﴾ (وويل: (يعقوب) آياامينان کړم تاسي په بنيامين مگرلکه چي امينان کړي مي وی تاسي په ورور دده (يوسف پخوالدې نه) يعني څرنگه مو زه پرده امينان وگرزوم تاسوهغه خلک ياست چي په يوسف موڅه وکړل؟ وروسته له هغه چي ماته موودده دساتني ضمانت کړی وو اوبيامو په عهدکي خيانت وکړ نوپدې وېرېږم چي له ده سره به هم دغسي فرېب وچلوئ لکه چي له يوسف سره موکړی وو زه نه پرتاسوباورلرم اونه ستاسي په ساتنه بلکه په لوی الله جل جلاله مي اعتماد اوباوردی. ﴿ فَٱللَّهُ خَيْرٌ حَـٰفِظًا ۖ وَهُوَ أَرْحَمُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴾ نو الله ډېرغوره دی له جهته دساتني اوهم دی دی ډېرمهربان دټولو مهربانانو) يعني دالله ساتنه ستاسي تر هغې غوره ده اوالله ډېرمهربان ترمور اوپلار او ورونوبې دی نوله الله څخه هيله من يم چي دهغه دساتني پېرزوينه (احسان) به راباندي وکړي اودوه مصيبتونه به يوځای نه راپېښوي ﴿ وَلَمَّا فَتَحُوا۟ مَتَـٰعَهُمْ وَجَدُوا۟ بِضَـٰعَتَهُمْ رُدَّتْ إِلَيْهِمْ ۖ ﴾ اوکله چي پرانيستل دوی بارونه خپل وموندل دوی پنگه خپله چي بيرته دوی ته راليږلي شوي وه ﴿ قَالُوا۟ يَـٰٓأَبَانَا مَا نَبْغِى ۖ هَـٰذِهِۦ بِضَـٰعَتُنَا رُدَّتْ إِلَيْنَا ۖ ﴾ وويل: دوی اې پلاره! څه به (لازيات اکرام دباچا) غواړو موږ داده هغه پانگه زموږ چي بيرته رده کړی شوي ده موږته؛ موږ ورباندي خبرهم نه وو آياتردې پورته نور احسان هم شته؟! بشپړي پېمانې يې راکړي اوبيه يې هم بيرته راکړي ده پدې باندي دوی غوښتل چي خپل پلار له خپلي رايې څخه راواړوي ﴿ وَنَمِيرُ أَهْلَنَا ﴾ (او بياځو) چي غله راوړو اهل خپل ته ﴿ وَنَحْفَظُ أَخَانَا ﴾ اوساتوبه ورور خپل (له کړاوونوڅخه د ورورساتنه يې څکه مکرر وويله چي استولوته يې پلار وهڅوي ﴿ وَنَزْدَادُ كَيْلَ بَعِيرٍ ۖ ﴾ اوزيات به راوړو باردآوبښ (دبنيامين برخه) روايت کېږي چي يوسف عليه السلام به هرتن ته داوښ يوبارغلې ورکاوو نودوی ته يې دلسو اوښانو بارونه پخوا ورکړي وو او يويې څني گرزولی وو ترڅوخپل ورور هم راولي ﴿ ذَٰلِكَ كَيْلٌ يَسِيرٌ ﴾ دغه پېمانه ده آسانه (پدې سخي باچاباندي) ﴿ قَالَ لَنْ أُرْسِلَهُۥ مَعَكُمْ حَتَّىٰ تُؤْتُونِ مَوْثِقًا مِّنَ ٱللَّهِ لَتَأْتُنَّنِى بِهِۦٓ ﴾ وويل: (يعقوب زامنوته) له سره به ونه لېږم هغه (بنيامين) له تاسي سره ترهغه پوري چي راکړئ تاسي ماته عهدمحکم د الله (پدې خبره) چي هغه به خامخابيرته ماته راولئ (تاسي به سوگندکوئ) ﴿ إِلَّآ أَن يُحَاطَ بِكُمْ ۖ ﴾ مگرکه چاپېروالی په تاسي وکړای شي (اودخلاصون توان ونلرئ چي هغه راخلاص کړئ ټولي لاري درباندي وتړل شي. مجاهدوايې: چي ددې کلام معناداده چي مگرکه تاسوټول ووژل شئ مړه شئ نو دغه به

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ستاسو عذروي زما په وړاندي ﴿ فَلَمَّآ ءَاتَوْهُ مَوْثِقَهُمْ ﴾ نو كله چي دوى وركړه دغه (پلار ته) وعده محكمه خپله
نو ﴿ قَالَ ٱللَّهُ عَلَىٰ مَا نَقُولُ وَكِيلٌ ﴾ وويل: (يعقوب عليه السلام زامنو ته) چي الله په هغه چي موږ يې وايو وكيل
(شاهد) دى ﴿ وَقَالَ يَٰبَنِىَّ لَا تَدْخُلُوا۟ مِنۢ بَابٍ وَٰحِدٍ وَٱدْخُلُوا۟ مِنْ أَبْوَٰبٍ مُّتَفَرِّقَةٍ ﴾ او وويل (يعقوب) له شفقته اې
زما زامنو! مه ننوزئ تاسي (مصرته) له يوې دروازې (چي نظرنشئ) اوننوزئ له دروازو بېلوبېلوڅخه)
مفسرينو ويلي دي چي يعقوب عليه السلام پردوى له نظركېدلو وېرېدوڅكه دوى دجمال اوهيبت
خاوندان وو؛ اوله نظره كېدل حق دي ځيني خلگ له بدو سترگوڅخه هډېرې ته تللي دي (مړه شوي دي)
(والعين حق تدخل الرجل القبر) لكه چي په حديث شريف كي راغلي دي ﴿ وَمَآ أُغْنِى عَنكُم مِّنَ ٱللَّهِ مِن شَىْءٍ ﴾
اوزه نشم دفع كولاى دالله له قضانه هيڅ شى (يخپل تدبيرسره) فان الحذر لايدفع القدر ﴿ إِنِ ٱلْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ﴾
نه دى حكم مگرالله جل جلاله لره دى (هيڅوك ورسره شريک نشته اونه يې څوک فيصله ماتولاى شي) ﴿ عَلَيْهِ
تَوَكَّلْتُ وَعَلَيْهِ فَلْيَتَوَكَّلِ ٱلْمُتَوَكِّلُونَ ﴾ خاص پرهمده ماتوكل كړى دى اوپرده باندي نوتوكل دي وكړي توكل
كونكي (اوايمان لرونكي خپلي تولي چاري دي هغه ته وسپاري) ﴿ وَلَمَّا دَخَلُوا۟ مِنْ حَيْثُ أَمَرَهُمْ أَبُوهُم ﴾ اوكله
چي دوى (مصرته) ننوتل له هغه ځايه چي پلار ورته امركړى وو دوى ته (له بېلابېلو دروازوڅخه ﴿ مَّا كَانَ
يُغْنِى عَنْهُم مِّنَ ٱللَّهِ مِن شَىْءٍ ﴾ اونه وو دغه ننوتل ددوى له مختلفو دروازوڅخه چي دفع كړي له دوى نه دالله له
قضاڅخه هيڅ شى ﴿ إِلَّا حَاجَةً فِى نَفْسِ يَعْقُوبَ قَضَىٰهَا ﴾ ليكن يوحاجت چي په نفس ديعقوب كي وو (هغه
يې) اداكړ يعني وېرېدل ديعقوب عليه السلام پردوى باندي (له نظر كېدلوڅخه) ﴿ وَإِنَّهُۥ لَذُو عِلْمٍ لِّمَا عَلَّمْنَٰهُ ﴾
اوبېشكه دغه يعقوب خامخا خاوند دپوهي وو په سبب ددې چي موږدى خبرداركړى وو (په وحى سره اودغه دالله
جل جلاله له لوري ديعقوب عليه السلام ستاينه ده چي هغه دنبوت په نورباندي ليدل كوي پوهېږي چي
تدبيرتقديرنشي بدلولاى ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ (ليكن زيات دخلگو پدې نه پوهېږي) يعني
دوى په هغو علومونه پوهېږي په كوموچي الله خپل نبيان اواستازي خانگړي كړي اوپه دارينوكي ورته گټه
رسوي.

بلاغت:

۱- ﴿ إِنِّىٓ أَرَىٰ سَبْعَ بَقَرَٰتٍ سِمَانٍ ﴾ دمضارع صيغه يې دماضي دحكايت لپاره غوره كړي ده.

۲- پدې كلام كي چي ﴿ سِمَانٍ ﴾ او ﴿ عِجَافٌ ﴾ او ﴿ خُضْرٍ ﴾ او ﴿ يَابِسَٰتٍ ﴾ راغلي پدې كي
دطباق صنعت كارول شويدى.

۳- ﴿ قَالُوٓا۟ أَضْغَٰثُ أَحْلَٰمٍ ﴾ دغه ترټولو استعاراتو أبلغ اوباريكه ده ځكه چي اضغاث هغه گډوډ وابنه
بولي چي سره يوله بله اوډل شوي وي نودغه خوبونه چي ښه اوبدخيراوشر يوله بله پكي نغښتل شوي له
هغووښوسره يې تشبيه كړل.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۴ - کله چي الله فرمايي: ﴿ يُوسُفُ أَيُّهَا ٱلصِّدِّيقُ ﴾ دغه ته براعت استهلال وايي ځکه دوی لومړی دستايني پيل وکړ هيله من وو چي غوښتنه يې ومني.

۵ - ﴿ يَأْكُلْنَ مَا قَدَّمْتُمْ لَهُنَّ ﴾ دلته عقلي مجاز په کاروړل شوی دی ځکه کالونه خونه خوري بلکه هغه اوسېدونکي خلګ هغه څه خوري چي پدې کالونوکي يې ذخيره کړي وي دغه زمانې ته نسبت کول دي لکه چي فصحاء وايي: نهار الزاهد صائم وليله قائم. يعني دزاهد ورځ روژه نيونکی او شپه يې لمونځ کونکی وي.

۶ - ﴿ إِنَّ ٱلنَّفْسَ لَأَمَّارَةٌۢ بِٱلسُّوٓءِ ﴾ دلته مبالغه راغلي ځکه چي نفس تل دهلاکت کندوته دغورځېدلو اوسرغړوني لورته دتللو په هڅه کي وي ځکه يې د(أمرة) پرځای امارة کلمة استعمال کړه

۷ - ﴿ فَعَرَفَهُمْ وَهُمْ لَهُۥ مُنكِرُونَ ﴾ د﴿ عَرَفَ ﴾ او﴿ أنكر ﴾ ترمينځ طباق دی.

۸ - کله چي الله فرمايي: ﴿ لَا تَدْخُلُوا۟ مِنۢ بَابٍ وَٰحِدٍ وَٱدْخُلُوا۟ مِنْ أَبْوَٰبٍ مُّتَفَرِّقَةٍ ﴾ پدې کي اطناب صنعت راغلی دی هغه چي زياتوالی دلفظ په معناوي اوګټه يې داده چي په نفس باندي دمعنی تمکين کوي اوبل دلته دبديعي محسناتو څخه طباق سلب هم پکي راغلی دی.

فائده:

رسول الله صلی الله عليه وسلم حضرت يوسف عليه السلام دهغه دکرم، صبر اوحلم په صفتونو وستايل اوداسي يې وفرمايل: (لولبثت فی السجن مالبث يوسف لأجبت الداعی) يعني که ديوسف پرځای زه دومره موده په بنديخانه کي پاتي شوی وای نوخامخابه مي دبلونکي خبره منلي وای (کله چي ده ته دباچا استازی راغی او ورته ويل يې: باچادي غواړي) اوهمدغه ديوسف عليه السلام دعفت اوپاکوالي په باب سترشاهددی (چي ده ورته وويل: ﴿ ٱرْجِعْ إِلَىٰ رَبِّكَ فَسْـَٔلْهُ مَا بَالُ ٱلنِّسْوَةِ .... ﴾.

تنبيه:

ډيني علماء کرامو ويلي دي چي ترهغوپوري به تل ښځو ديوسف عليه السلام سره دشهواني ميني ميل درلود خوکله چي الله جل جلاله هغه په پيغمبري وټاکه نودنبوت هيبت ورباندي ولوېدو اوبيابښځو اوهرچاچي به دی وليد نودنبوت هيبت به يې دوی له حسن اوجمال څخه بې پرواکړل.

***

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَلَمَّا دَخَلُوا۟ عَلَىٰ يُوسُفَ ءَاوَىٰٓ إِلَيْهِ أَخَاهُ ۖ قَالَ إِنِّىٓ أَنَا۠ أَخُوكَ فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ
(٦٩) فَلَمَّا جَهَّزَهُم بِجَهَازِهِمْ جَعَلَ ٱلسِّقَايَةَ فِى رَحْلِ أَخِيهِ ثُمَّ أَذَّنَ مُؤَذِّنٌ أَيَّتُهَا ٱلْعِيرُ إِنَّكُمْ لَسَٰرِقُونَ (٧٠) قَالُوا۟
وَأَقْبَلُوا۟ عَلَيْهِم مَّاذَا تَفْقِدُونَ (٧١) قَالُوا۟ نَفْقِدُ صُوَاعَ ٱلْمَلِكِ وَلِمَن جَآءَ بِهِۦ حِمْلُ بَعِيرٍ وَأَنَا۠ بِهِۦ زَعِيمٌ (٧٢)

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



قَالُوا تَاللَّهِ لَقَدْ عَلِمْتُم مَّا جِئْنَا لِنُفْسِدَ فِي الْأَرْضِ وَمَا كُنَّا سَارِقِينَ ﴿٧٣﴾ قَالُوا فَمَا جَزَاؤُهُ إِن كُنتُمْ كَاذِبِينَ
﴿٧٤﴾ قَالُوا جَزَاؤُهُ مَن وُجِدَ فِي رَحْلِهِ فَهُوَ جَزَاؤُهُ كَذَٰلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ ﴿٧٥﴾ فَبَدَأَ بِأَوْعِيَتِهِمْ قَبْلَ وِعَاءِ أَخِيهِ
ثُمَّ اسْتَخْرَجَهَا مِن وِعَاءِ أَخِيهِ كَذَٰلِكَ كِدْنَا لِيُوسُفَ مَا كَانَ لِيَأْخُذَ أَخَاهُ فِي دِينِ الْمَلِكِ إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ
نَرْفَعُ دَرَجَاتٍ مَّن نَّشَاءُ وَفَوْقَ كُلِّ ذِي عِلْمٍ عَلِيمٌ ﴿٧٦﴾ ۞ قَالُوا إِن يَسْرِقْ فَقَدْ سَرَقَ أَخٌ لَّهُ مِن قَبْلُ
فَأَسَرَّهَا يُوسُفُ فِي نَفْسِهِ وَلَمْ يُبْدِهَا لَهُمْ قَالَ أَنتُمْ شَرٌّ مَّكَانًا وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا تَصِفُونَ ﴿٧٧﴾ قَالُوا
يَا أَيُّهَا الْعَزِيزُ إِنَّ لَهُ أَبًا شَيْخًا كَبِيرًا فَخُذْ أَحَدَنَا مَكَانَهُ إِنَّا نَرَاكَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٧٨﴾ قَالَ مَعَاذَ اللَّهِ أَن
نَّأْخُذَ إِلَّا مَن وَجَدْنَا مَتَاعَنَا عِندَهُ إِنَّا إِذًا لَّظَالِمُونَ ﴿٧٩﴾ فَلَمَّا اسْتَيْأَسُوا مِنْهُ خَلَصُوا نَجِيًّا قَالَ كَبِيرُهُمْ
أَلَمْ تَعْلَمُوا أَنَّ أَبَاكُمْ قَدْ أَخَذَ عَلَيْكُم مَّوْثِقًا مِّنَ اللَّهِ وَمِن قَبْلُ مَا فَرَّطتُمْ فِي يُوسُفَ فَلَنْ أَبْرَحَ الْأَرْضَ حَتَّىٰ
يَأْذَنَ لِي أَبِي أَوْ يَحْكُمَ اللَّهُ لِي وَهُوَ خَيْرُ الْحَاكِمِينَ ﴿٨٠﴾ ارْجِعُوا إِلَىٰ أَبِيكُمْ فَقُولُوا يَا أَبَانَا إِنَّ ابْنَكَ سَرَقَ وَمَا
شَهِدْنَا إِلَّا بِمَا عَلِمْنَا وَمَا كُنَّا لِلْغَيْبِ حَافِظِينَ ﴿٨١﴾ وَاسْأَلِ الْقَرْيَةَ الَّتِي كُنَّا فِيهَا وَالْعِيرَ الَّتِي أَقْبَلْنَا فِيهَا وَإِنَّا
لَصَادِقُونَ ﴿٨٢﴾ قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ أَنفُسُكُمْ أَمْرًا فَصَبْرٌ جَمِيلٌ عَسَى اللَّهُ أَن يَأْتِيَنِي بِهِمْ جَمِيعًا إِنَّهُ هُوَ
الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ ﴿٨٣﴾ وَتَوَلَّىٰ عَنْهُمْ وَقَالَ يَا أَسَفَىٰ عَلَىٰ يُوسُفَ وَابْيَضَّتْ عَيْنَاهُ مِنَ الْحُزْنِ فَهُوَ كَظِيمٌ ﴿٨٤﴾
قَالُوا تَاللَّهِ تَفْتَأُ تَذْكُرُ يُوسُفَ حَتَّىٰ تَكُونَ حَرَضًا أَوْ تَكُونَ مِنَ الْهَالِكِينَ ﴿٨٥﴾ قَالَ إِنَّمَا أَشْكُو بَثِّي
وَحُزْنِي إِلَى اللَّهِ وَأَعْلَمُ مِنَ اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٨٦﴾ يَا بَنِيَّ اذْهَبُوا فَتَحَسَّسُوا مِن يُوسُفَ وَأَخِيهِ وَلَا تَيْأَسُوا
مِن رَّوْحِ اللَّهِ إِنَّهُ لَا يَيْأَسُ مِن رَّوْحِ اللَّهِ إِلَّا الْقَوْمُ الْكَافِرُونَ ﴿٨٧﴾ فَلَمَّا دَخَلُوا عَلَيْهِ قَالُوا يَا أَيُّهَا الْعَزِيزُ مَسَّنَا وَأَهْلَنَا
الضُّرُّ وَجِئْنَا بِبِضَاعَةٍ مُّزْجَاةٍ فَأَوْفِ لَنَا الْكَيْلَ وَتَصَدَّقْ عَلَيْنَا إِنَّ اللَّهَ يَجْزِي الْمُتَصَدِّقِينَ ﴿٨٨﴾ قَالَ هَلْ عَلِمْتُم مَّا
فَعَلْتُم بِيُوسُفَ وَأَخِيهِ إِذْ أَنتُمْ جَاهِلُونَ ﴿٨٩﴾ قَالُوا أَإِنَّكَ لَأَنتَ يُوسُفُ قَالَ أَنَا يُوسُفُ وَهَٰذَا أَخِي قَدْ
مَنَّ اللَّهُ عَلَيْنَا إِنَّهُ مَن يَتَّقِ وَيَصْبِرْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٩٠﴾ قَالُوا تَاللَّهِ لَقَدْ آثَرَكَ
اللَّهُ عَلَيْنَا وَإِن كُنَّا لَخَاطِئِينَ ﴿٩١﴾ قَالَ لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ يَغْفِرُ اللَّهُ لَكُمْ وَهُوَ أَرْحَمُ
الرَّاحِمِينَ ﴿٩٢﴾ اذْهَبُوا بِقَمِيصِي هَٰذَا فَأَلْقُوهُ عَلَىٰ وَجْهِ أَبِي يَأْتِ بَصِيرًا وَأْتُونِي بِأَهْلِكُمْ أَجْمَعِينَ
﴿٩٣﴾

**﴿ يوسف: ٦٩ ـ ٩٣ ﴾**

## مناسبت او تړاو:

آيتونه ددوهم ځل لپاره ديوسف عليه السلام دورونو دراتگ بيان کوم چي له دوی سره داپلا (بنيامين) ديوسف عليه السلام سکنی ورور هم ملگری دی کوي او بيا دا بيان چي څرنگه پيمانه دهغه په بارکي پيدا او هغه

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



یې دیعقوب علیه السلام له شریعت سره سم په بدل کي بندي پاتي شو؟ اوبیاهغه څه یادوي چي یعقوب علیه السلام ته ددواړو زامنو دبېلتون سختي شېبې وې اوخواشیني یې تورلېمه ورڅخه یووړل (ړوندشو).

## لغتونه:

(تبتئس) غمګین کېږه ته (العیر) هغه اوښ چي ورباندي باروي اوبیا وروسته دهری قافلې لپاره نوم شو (صواع) پېمانه چي مذکر اومؤنث دواړه راځي اوهغه (صاع) چي دشپانوډپېمانې کولو لپاره وي هغه (سقایة) (جام) دی (زعیم) کفیل (سولت) ښایسته کړي اوآسانه کړی (کظیم) له غمه ډک چي اظهاریې نه کوي (تفتؤا) دتل ترتله په معنااود(کان) ناقصه له خوندکیانوڅخه دی (حرضًا) دوژونکي ناروغي په معنارا غلي (حَرَضَ) په اصل کي دجسم اوعقل خرابولوته وایې (بث) هغه سخته پرېمانه غم اوماتم زړه. (فتحسسوا) تحسس دیوڅېز پلټل دحواسوپه ذریعه چي خوراپه باریکه ترسره کېږي اوداپه خیراوشر دواړو کي راځي مګرتجسس په جیم سره په شرکي استعمالېږي څوک بیاوایې: چي په خیراوشر دواړو کي راځي (لاتثریب) نشته تثریب او تثریب ترټنې اوتوبیخ ته وایې.

## تفسیر:

﴿ وَلَمَّا دَخَلُوا۟ عَلَىٰ يُوسُفَ ءَاوَىٰٓ إِلَيْهِ أَخَاهُ ﴾ اوکله چي پریوسف علیه السلام باندي (دغه ورونه) ورننوتل نوخپل ورور یې خان ته رانژدې کړ (په غیږ کي یې خپل سکنی ورور بنیامین ونیو ﴿ قَالَ إِنِّىٓ أَنَا۠ أَخُوكَ فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ وویل: یوسف (په پټه) زه چي یم زه ستاورور یم (یوسف) نومه خفه کېږه ته چي وو دوی چي کول یې له موږ سره پخوازمانه کي ځکه چي الله پاک له موږ سره احسان وکړ اوپه خیر یې سره جمع کړلو مفسرین کرام وایې چي: کله دیوسف علیه السلام ورونه هغه ته ورغلل نویې ښه عزت اومېلمستیا وکړه او هرو دووتنوته یې یوه کوټه ځانګړي کړه نوبنیامین یوازي پاتي شو نو یوسف علیه السلام وویل: چي له دې سره بل دوهم نشته دادي له ماسره وي نوبیاله هغه سره غاړه غړۍ شو او ورته ویل یې چي همدازه ستاورور(یوسف) یم ته خوامه بدوه اوبیایې دا ورته وښودله چي هغه به له ځانه سره په یوچم پاتي کوي خوخبره دي پټه وساتي. ﴿ فَلَمَّا جَهَّزَهُم بِجَهَازِهِمْ جَعَلَ ٱلسِّقَايَةَ فِى رَحْلِ أَخِيهِ ﴾ نوکله چي دوی ته یې ددوی دسفراسباب تیارکړل نوکښېښوده جام دابوڅښلود(باچا) په بار دورور خپل کښي) یعني کله چي یې ددوی داوښانو بارونه ورتیارکړل نویوسف علیه السلام امروکړچي دباچاسقایه چي هغه دسروزروپه ملغلرو ښایسته شوي جام (پېمانه) وه دبنیامین په بارکي پټ کښېږدي ﴿ ثُمَّ أَذَّنَ مُؤَذِّنٌ أَيَّتُهَا ٱلْعِيرُ إِنَّكُمْ لَسَٰرِقُونَ ﴾ (نوغږوکړ غږکونکي چي اُوقافلې (ودرېږئ) بېشکه تاسي خامخاغله یاست) یعني اې اوښانو والاسپرومسافرو تاسوخوبېشکه غله یاست اوداچي دوی ته یې دغلانسبت وکړچي پدې کي مصلحت ووچي ورورځني راوګرزوي ﴿ قَالُوا۟ وَأَقْبَلُوا۟ عَلَيْهِم مَّاذَا تَفْقِدُونَ ﴾ وویل (ورونو دیوسف) اومخونه یې پردوی راواړول چي تاسي څه شی ورک کړی دی؟ مفسرین کرام وایې: کله چي غږکونکي دوی ته وروړسېدل نویې (په ملامت کولوکي) ورته وویل: چي آیاموږتاسوته عزت نه دی درکړی؟ ستاسوموښه مېلمستیا نه ده کړي؟ پوره پېمانه مودرنکړه؟ اوتاسوسره موهسي ځانګړي معامله نه ده

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کړي چي ترنوروغوره وي؟ هغوی وویل: هوکړي موده نوڅه پېښه وشوه؟ دوی ورته وویل: زموږ د باچاداوبو څښلو زرين جام ورک دی اوله تاسوپرته بل څوک موږ وربانديې نه تورووهمدادالله ﷻ قول دی چي فرمايي: ﴿ قَالُوا۟ وَأَقْبَلُوا۟ عَلَيْهِم مَّاذَا تَفْقِدُونَ ﴾ اوداچي (ماذاتفقدون) کلمه يې دوی ته وويل دي ته اشاره ده چي حسن ادب او ښه اخلاق دي خپل کړي ببخايه دي بې ګناه خلګ په غلانه توروي چي په اټکل باندي په خلګوغلا تورپوري کوي همداوجه ده چي دوی بيادادب په مراعات کولوپه ځواب کي ورته وويل: ﴿ قَالُوا۟ نَفْقِدُ صُوَاعَ ٱلْمَلِكِ ﴾ وويل: دوی موږ دباچاپېمانه ورکه کړي ده (اولتمويې) هغه په ملغلرونښايسته شوی دپاچهي جام دی چي دپېمانې کاربه څني اخيستل کېدو) ﴿ وَلِمَن جَآءَ بِهِۦ حِمْلُ بَعِيرٍ ﴾ اوچاچي داپېمانه راوړه نوهغه ته ديوه اوښ ختی به وي ) يعني چاچي دغه پېمانه موږته بېرته راوړه نوبه ديوه اوښ باردجائزې اوانعام په توګه ور کوو ﴿ وَأَنَا۠ بِهِۦ زَعِيمٌ ﴾ اوزه په دې (باروركولو) ضامن يم ﴿ قَالُوا۟ تَٱللَّهِ لَقَدْ عَلِمْتُم مَّا جِئْنَا لِنُفْسِدَ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ وويل: دوی په الله ﷻ قسم دی چي په تحقيق تاسي پوهېږئ چي موږ ددې لپاره (مصرته) نه يو راغلي چي په ځمکه کي فسادوکړو. داهغه قسم اولوړه ده چي دتعجب معناپکي شته يعني قسم دی اې خلګو ! تاسوپوهېږئ چي موږدفسادلپاره نه يوراغلي ﴿ وَمَا كُنَّا سَـٰرِقِينَ ﴾ (اوهرګزنه يوموږ ددې جام ) غلاکونکي) يعني موږهغه څوک نه يوچي په غلاباندي تورن کړی شي موږ دنبي اولاده يواوداسي ناکاره اوچټي کارنه کوو. بيضاوي وايي: چي ددوی په علم باندي يې دځان دبرائت شاهدي وبلله چي تاسوولیدل موږڅومره امانت کاره يوچي موږ هغه دغنموبيه بيرته تاسي ته راوړه کومه چي زموږپه بارکي تللي وه اوبل داچي دبوده ګانوپه خولوکي مو وانبي وراچولي څو دچاکښت او مال ونه خوري([1]) ﴿ قَالُوا۟ فَمَا جَزَٰٓؤُهُۥٓ إِن كُنتُمْ كَـٰذِبِينَ ﴾ (نوووويل: بيا(دغونوکرانو) چي څه به وي جزادغله که تاسي دروغجنان (ښکاره ) شوی ) يعني که چېري تاسو دخپل برائت په دعوی کي دروغجن وختلئ بيا ستاسوپه شريعت کي دغله لپاره څه جزاده؟ ﴿ قَالُوا۟ جَزَٰٓؤُهُۥ مَن وُجِدَ فِى رَحْلِهِۦ فَهُوَ جَزَٰٓؤُهُۥ ﴾ نوووويل: (ورونو ديوسف) چي سزاددې غلا (نيول د) دهغه چادي چي وموندل شي دغه پېمانه دده په بارکي نوهمدئ سزادهغه دی ( چي مريي شي دهغه چالپاره چي څني غلايې کړي ده ﴿ كَذَٰلِكَ نَجْزِى ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴾ همداسي سزاورکووموږ ظالمانوته چي دالله حدودوتجاوزوکړي لکه غلا اونور داخبره ددوی هغه ديعقوب عليه السلام دشريعت حکم وو اودغه بيادلاس په غوڅولو باندي منسوخ شو چي د اسلامي شريعت حکم دی ﴿ فَبَدَأَ بِأَوْعِيَتِهِمْ قَبْلَ وِعَآءِ أَخِيهِ ﴾ نوشروع وکړه (يوسف) په لټولو د بارونو ددوی ړومبی له باره دورورده (بينامين) مفسرين وايي: چي دغه دبهانې (پلمې) تکميل دی اود تهمت دفع کول دي چي کله دوی دبرائت دعوی وکړه نودوی هغوی ته وويل: چي اروموبه ستاسي تولوبارونه پلټل کېږي اودوی بې يوسف عليه

(١) البيضاوي ٢٦٧

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



السلام ته راوستل اوتربينامين له مخه يې دنوروختي وشنل. قتاده وايي: چي دوی به دهرچابار(ختی) پرانست اوجام به يې ونه موندل نوبه يې استغفرالله ويل: چي بېخايه موتور دړپوري کړ ترڅوچي کشرورور يې پاتي شو نو يې وويل: گمان نه کوم چي دې دي هيڅ شی اخيستی وي نو دوی ورته وويل په الله سوگند که دي پرېږدو چي ددې باردي هم نه وي کتلی دغه هم ستااوهم زموږلپاره دزړه اطمينان دی کله چي يې بارخلاص کړ نوجام (پېمانه ) يې وموندی اوهم دادالله جل جلاله قول دی چي : ﴿ ثُمَّ اسْتَخْرَجَهَا مِن وِعَاءِ أَخِيهِ ﴾ بيايې راوايستله دغه (پېمانه) له باره د(سکه) وروږخپل چي(بنيامين) اوکله چي يې راوايستله ټولوښکته وکتل اوپه بنيامين يې مخ راواړاووچي اې د(راحيل) زويه ! ودي شرمولو مخ دي راتورکړولي هسي خوځوک نه کوي ؟ ﴿ كَذَٰلِكَ كِدْنَا لِيُوسُفَ ﴾ (همدارنگه تدبيرنيولی وو موږيوسف ته )دابهانه مو ورښودلي وه چي خپل ورور راوگرزوي ﴿ مَا كَانَ لِيَأْخُذَ أَخَاهُ فِي دِينِ الْمَلِكِ ﴾ نه وودغه( يوسف ) چي ونيسي (مربی) خپل وروږ په دين (قانون) دباچا(دمصر) کي ؛ هغه چي دسارق سزادباچا په قانون کي وهل ډبول اوپه دوه گون ناغه جرمانه وه ﴿ إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ ﴾ مگرچي الله اراده وفرمايله (دغه تدبيريې ور وښود آيت شريف پدې دلالت کوي چي دغه پلمه دالله جل جلاله په تعليم اوالهام سره ورښودل شوي وه ﴿ نَرْفَعُ دَرَجَاتٍ مَّن نَّشَاءُ ۗ وَفَوْقَ كُلِّ ذِي عِلْمٍ عَلِيمٌ ﴾ پورته کوو موږ(په علم اوحکمت سره ) مرتبې دهرچاچي اراده وفرمايو موږ اودپاسه دهر خاوند دپوهي بل لوی پوه دی ؛ آن تردې چي الله ته رسېږي هغه چي رب العالمين دی حسن بصري رحمه الله وايي: چي هيڅ عالم نشته مگرترهغه پورته بل عالم وي ترڅوچي دغه لړۍ ا لله تبارک وتعالی ته ورسېږي اوابن عباس رضی الله عنه وايي چي الله خبيراوعالم ذات ترټولوعلماوو پورته دی[1] ﴿ قَالُوا إِن يَسْرِقْ فَقَدْ سَرَقَ أَخٌ لَّهُ مِن قَبْلُ ﴾ وويل: (وروڼو د يوسف) که غلاوکړه دغه (بينامين نوعجيبه نه ده چي) پس په تحقيق سره غلاکړي وه (سکني) ورور دده پخواله دي نه يعني دوی ځان له ملامتياڅخه وژغوره اودغلاتهمت يې له ځانه ليري کړ اويوسف او وروريې ورباندي تورن کړل. ﴿ فَأَسَرَّهَا يُوسُفُ فِي نَفْسِهِ وَلَمْ يُبْدِهَا لَهُمْ ﴾ نوپټه وساتله دغه خبره (يوسف په خپل ځان کي اوښکاره يې نکړه دوی ته د(مهرباني له وجي) ﴿ قَالَ أَنتُمْ شَرٌّ مَّكَانًا ﴾ وويل: يوسف (پټ په زړه کي) چي تاسي ډېربديې له جهته دمرتبې تاسوخپل ورور له پلارڅخه غلاکړ اوبيامو په بریٔ (بې گناه ) ورور باندي تورولگاوو ﴿ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا تَصِفُونَ ﴾ اوالله ښه عالم دی په هغه خبره چي تاسي يې بيانوئ (اوافتراء کوی) ﴿ قَالُوا يَا أَيُّهَا الْعَزِيزُ إِنَّ لَهُ أَبًا شَيْخًا كَبِيرًا ﴾ وويل: دوی اې عزيزه ! ببشکه ده لره يوپلاردی زوږ ډېربوډا(معمر) دغه دمهرباني غوښتلواو استعطاف موندلولپاره زارۍ دي چي ددغه يوبوډاسپين

(1) الطبري ١٣ ٢٧

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ډيرې پلارې دی چې دده د ډېلتون توان نلري ﴿ فَخُذْ أَحَدَنَا مَكَانَهُۥٓ ﴾ نو ونيسه يوزموږ په ځای دده (موږ دده په شان په پلار ګران نه يو) ﴿ إِنَّا نَرَىٰكَ مِنَ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾ بېشکه موږ تا وينو له احسان کونکو خپل احسان پرموږ بشپړکړه تاموږ په احسان کولو روږدي کړي يو ﴿ قَالَ مَعَاذَ ٱللَّهِ أَن نَّأْخُذَ إِلَّا مَن وَجَدْنَا مَتَٰعَنَا عِندَهُۥٓ ﴾ وويل (يوسف) پناه غواړو په الله پورې چې پرته له هغه چا ونيسو چې موندلي مودې اسباب خپل په نزد دده يعني له الله پناه غواړو چې دمجرم پرځای بېګناه راتينګ کړو (ونيسو) ﴿ إِنَّآ إِذًا لَّظَٰلِمُونَ ﴾ (که دهغه پرځای بل څوک ونيسو) نوموږ به په هغه وخت کې اوومرو له ظالمانو څخه اوسو؛ الوسي وايې چې: پدې کلمه سره تعبيرکول چې فرمايي: ﴿ مَن وَجَدْنَا مَتَٰعَنَا عِندَهُۥٓ ﴾ پرځای ددې چې ووايې: (من سرق) چاچې غلاکړې وي ددې لپاره دی ترڅوحق وښيي اوله دروغو څخه وژغوري (۱) ﴿ فَلَمَّا ٱسْتَيْـَٔسُوا۟ مِنْهُ خَلَصُوا۟ نَجِيًّا ﴾ نو کله چې دوی (له دغه يوسفه) نااميده شول نو ګوښه شول دوی پداسې حال کې چې مشوره کونکي وو (پخپلو منځونو کې) يعني کله چې دوی ديوسف عليه السلام څخه دبنيامين په راخلاصولو کې ناهيلي شول او پدې وپوهېدل چې هيڅ ګټه نلري چې نور ورته زاري جګې کوو نو په ګوښه کې يې سره مشورې او دزړه خواله پيل کړل ﴿ قَالَ كَبِيرُهُمْ أَلَمْ تَعْلَمُوٓا۟ أَنَّ أَبَاكُمْ قَدْ أَخَذَ عَلَيْكُم مَّوْثِقًا مِّنَ ٱللَّهِ ﴾ وويل: مشرددوی (په عمرکې چې هغه روبيل وو) آيا نه پوهېږئ چې بېشکه ستاسې پلارپه تحقيق له تاسې اخيستې وه سخته وعده له وعدو د الله (په ساتنه دبينامين کې چې بيرته به يې راولئ) ﴿ وَمِن قَبْلُ مَا فَرَّطتُمْ فِى يُوسُفَ ﴾ (او پخوا له دې نه تاسې ديوسف په هکله تقصير (کوتاهي) کړې وه) يعني آيا ستاسو په يادنه دي چې پخوا له دې نه مو ديوسف په باب څنګه نامناسبه رويه کړې وه څرنګه به اوس له پلار سره مخامخ کېږئ؟ ﴿ فَلَنْ أَبْرَحَ ٱلْأَرْضَ حَتَّىٰ يَأْذَنَ لِىٓ أَبِىٓ ﴾ نو له سره به زه نه خوځېږم له دې ځمکې (مصر) څخه ترڅو چې اجازه راکړي ماته پلار (په ورتلو کنعان ته اوله مصرنه دوتلو) ﴿ أَوْ يَحْكُمَ ٱللَّهُ لِى ﴾ او يا حکم راکړي الله ماته (په خلاصېدلو د وروره ما) ﴿ وَهُوَ خَيْرُ ٱلْحَٰكِمِينَ ﴾ (او هم دغه الله ډېرغوره دحکم کونکو دی) چې دغه پرته له حق او عدل څخه حکم نکوي ﴿ ٱرْجِعُوٓا۟ إِلَىٰٓ أَبِيكُمْ فَقُولُوا۟ يَٰٓأَبَانَآ إِنَّ ٱبْنَكَ سَرَقَ ﴾ بيرته لاړشئ تاسې خپل پلار ته نو ورته ووايئ اې زموږ پلاره! په تحقيق ستازوی (بينامين) غلاوکړه (دپېښې په حقيقت يې خبرکړئ) ﴿ وَمَا شَهِدْنَآ إِلَّا بِمَا عَلِمْنَا ﴾ او موږ نه وو ويلې بل شی مګرهغه مو وويل کوم چې پرې خبروو بېشکه موږ دباچا جام دده په پېټي کې وليد ﴿ وَمَا كُنَّا لِلْغَيْبِ حَٰفِظِينَ ﴾ او نه وو موږ دپټ کار لپاره ساتونکي يعني چې تاته

(۱) روح المعنی ۱۳ / ۳۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



مو دهغه دراوستلو ټینګه وعده درکړه مونږ پدې نه وو خبرچې هغه به غلا کوي ﴿ وَسْـَٔلِ ٱلْقَرْيَةَ ٱلَّتِى كُنَّا فِيهَا ﴾ او پوښتنه وکړه پخپله دهغه کلي نه چې مونږ پکې وو (مصرنه) بيضاوي وايې: معنايې داچې څوک قاصد واستوه او دهغه ښارله او سېدونکو څخه دکيسې پوښتنه وکړه ([1]) ﴿ وَٱلْعِيرَ ٱلَّتِىٓ أَقْبَلْنَا فِيهَا ﴾ (او پوښتنه وکړه) له هغه کاروانه چې مونږ راغلي وو له دوی سره په دغه (قافله) کې (چې هغوی دکنعان خلک او ددوی دسفرملګري وو) ﴿ وَإِنَّا لَصَـٰدِقُونَ ﴾ او بېشکه مونږ خامخا صادقان يو (په هغه څه کې چې تاته وايو) ﴿ قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ أَنفُسُكُمْ أَمْرًا ﴾ وويل: (يعقوب عليه السلام داسې نه ده) بلکه ښايسته کړې دی تاسوته نفسونوستاسې يوکار (دبهانې پلمې چې بيامو ترسره کړ يعني دبينامين په هکله يې په دوکه کولو تورن کړل چې دوی پخواله يوسف عليه السلام سره هم داسې چلند کړی وو ﴿ فَصَبْرٌ جَمِيلٌ ﴾ نو (اوس کارزما) صبردی بهتريعني اوس ماته له صبرڅخه پرته بل هيڅ هم ندی پاتې زه به دخپل صبراجرله الله څخه غوارم ﴿ عَسَى ٱللَّهُ أَن يَأْتِيَنِى بِهِمْ جَمِيعًا ﴾ نژدې دی چې الله ماته دوی ټول راولي (زماسترګې ددوی په ليدلويخې او کورنۍ به موسره يوموټی شي ﴿ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلْعَلِيمُ ٱلْحَكِيمُ ﴾ بېشکه هم دغه الله جل جلاله ښه عالم ښه حکمت والادی (عالم دی زما په حال او حکمت والادی پخپل تدبيراوتصرف کې) ﴿ وَتَوَلَّىٰ عَنْهُمْ وَقَالَ يَـٰٓأَسَفَىٰ عَلَىٰ يُوسُفَ ﴾ او مخ وګرزاوو دغه (يعقوب) له زامنو (په ناخوښي سره چې ددوی خبري يې واورېدې) او وې ويل: اې افسوسه او غم زما پر (بېلتون د) يوسف ﴿ وَٱبْيَضَّتْ عَيْنَاهُ مِنَ ٱلْحُزْنِ فَهُوَ كَظِيمٌ ﴾ ([2]) او تکې سپينې شوې دواړه سترګې ددغه (يعقوب له غمه (اوړندې شوې له ډېرې ژړا په ورکېدو ددووزامنو) او هغه وو له غصې ډک (خو هغه يې زغمل پخپل زړه کې ابوسعود وايې: داچې ديوسف په هکله يې تاسف وکړ سره له دې چې غم د دواړو ورونو پروت وو چې ديوسف ورياد هېدل دهغه په زړه منګولي لګولي وې هېڅکله به يې نه هېرېدو او داچې ده پوخ باوردرلود چې دواړه ژوندي او هيله من وو کله به راشي او ديوازې يوسف په باب يې داسې څه نه موندل چې هيله يې راپاخوې پرته له دې چې دالله فضل او احسان ته يې وسپاري ([3]) امام رازي رحمه الله وايې: چې نوی غم زوړ غم زياتوي کوم چې پخوا پېښ شوی وي او خواشيني يو پر بل پسې غمونه راوېښوي ﴿ قَالُوا۟ تَٱللَّهِ تَفْتَؤُا۟ تَذْكُرُ يُوسُفَ ﴾ وويل: دوی قسم پر الله دی چې ته همېشه

---

([1]) البيضاوي ۲۶۸

([2]) (عشى البصر د سترګو خېرتللوته وايې لکه چې پردې ورباندې راخپرې شوي وي لکه چې شاعروايې: (عشت عيناى من طول البكاء) مفسرين کرام وايې: چې ديعقوب عليه السلام دسترګوليدل (ديد) ديوسف عليه السلام له غمه ورک شوی وو او شپږ کلونه يې هيڅ نه ليدل ترڅو چې الله پاک يې دغه مصيبت ختني ليرې کړاوپدې آيت يې دليل نيولی دی چې: ﴿ أَلْقَـٰهُ عَلَىٰ وَجْهِهِۦ فَٱرْتَدَّ بَصِيرًا ﴾.

([3]) ابو السعود ۳ / ۸۸

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



يادوې يوسف (او په هغه ژاړې) ﴿ حَتَّىٰ تَكُونَ حَرَضًا أَوْ تَكُونَ مِنَ ٱلْهَٰلِكِينَ ﴾ ترهغه پورې چې شې ته قريب الموت (ناروغه) اوياشې ته (په غم) له هلاک شوونه ﴿ قَالَ إِنَّمَآ أَشْكُواْ بَثِّي وَحُزْنِيٓ إِلَى ٱللَّهِ ﴾ وويل: (يعقوب) بېشكه هم داخبره ده چې شكايت كوم دغم اوخفگان خپل الله تعالى ته هغه ذات چې هغه ته دشكايت وړاندې كول سړي ته كټه رسوي تاسوته خپل غم اوناوربن نه ژاړم ﴿ وَأَعْلَمُ مِنَ ٱللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴾ (اوزه پوهېږم له جانبه دالله تعالى په هغه څه چې تاسې پرې نه پوهېږئ) يعني ماته دالله تعالى داسې رحمت اواحسان معلوم دى چې تاسو ته نه دى معلوم زه الله تعالى ته هيله اواميدلرم چې مابه له هغه لورې چې زه يې گمان هم نه كوم پخپل مرحمت اواحسان كې پټ كړې اودبرياليتوب څرک به راته وبربښنوې ﴿ يَٰبَنِيَّ ٱذْهَبُواْ فَتَحَسَّسُواْ مِن يُوسُفَ وَأَخِيهِ ﴾ اې زمازامنو ! لاړشئ نولټون وكړئ له (حاله) ديوسف او ورور دده ) يعني هغه ځاى ته ولاړ شئ چې څيني راغلي ياست اوهلته پخپلو حواسوددوى له احوالونه ځان خبركړئ ﴿ وَلَا تَاْيْـَٔسُواْ مِن رَّوْحِ ٱللَّهِ ﴾ اومه ناهيلي كېږئ دالله له رحمت نه (چې خلاصون به وموميءْ) ﴿ إِنَّهُۥ لَا يَاْيْـَٔسُ مِن رَّوْحِ ٱللَّهِ إِلَّا ٱلْقَوْمُ ٱلْكَٰفِرُونَ ﴾ بېشكه شان دادى چې دالله له فيضه ، رحمته نه ناامېده كېږې مگر كافران خلک (چې دالله له قدرت څخه منكروې ) ﴿ فَلَمَّا دَخَلُواْ عَلَيْهِ قَالُواْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْعَزِيزُ مَسَّنَا وَأَهْلَنَا ٱلضُّرُّ ﴾ (نوكله چې پريوسف (ورونه) ورننوتل نوووېل: دوى چې اې عزيزه ! موږ اوزموږ اهل ته سختي (لوږه) رسېدلې ده ) په كلام كې محذوف راغلى اوهغه دا چې دوى بېرته راووتل اودمصرلاره يې ونيوه نوكله چې هلته ورسېدل اوديوسف عليه السلام دربارته ورننوتل نويې دغه ارتياوړاندې كړه ﴿ وَجِئْنَا بِبِضَٰعَةٍ مُّزْجَىٰةٍ ﴾ اوموږ ناقصه سرمايه (پانگه راوړې ده ) يعني ددوى پانگه هغسې روپۍ وې چې سوداگرانو به سپكې اوبې ارزښته بللې . ابن عباس رضى الله عنه وايي: چې ددوى دراهم اوروپۍ ناكاره اوناچله وې چې دطعام په بدل كې چانه اخيستې (۱)دوى يوسف عليه السلام ته دزاريو اوعجز لمن وغوړوله اودخيرات اوترحم غوښتنه يې وكړه ﴿ فَأَوْفِ لَنَا ٱلْكَيْلَ وَتَصَدَّقْ عَلَيْنَآ ﴾ نوپوره راكړه موږته پېمانه اوخيرات وكړه پرموږ (چې ياخوزموږ وړور راسره ستون كړه (۲) اوياداكوټ پانگه مه مسترد كوه اوهغه واخله ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَجْزِى ٱلْمُتَصَدِّقِينَ ﴾ بېشكه چې الله جزا(ثواب ) وركوي خيرات وركونكو (محسنينو ) ته اوكله چې خبره همدغه ځاى ته ورسېده چې دومره زياتې زارې جگې يې وكړې نوحضرت يوسف عليه السلام ددغه حال له اورېدلوڅخه بې اختياره دمهربانۍ له مخې دوى ته هغه څه ښكاره كړل چې پخوايې ځنې پټ كړي وو هغه داچې: ﴿ قَالَ هَلْ عَلِمْتُم

(۱) الرازي ۱۸ / ۱۹۳

(۲) دغه دابن جريج وينا ده اوطبري بيا داغوره كړې چې معنايې داده زموږ دغه پانگه مه مستردوه راسره بنه وكړه .

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



مَّا فَعَلْتُم بِيُوسُفَ وَأَخِيهِ إِذْ أَنتُمْ جَٰهِلُونَ ﴾ وویل: (یوسف علیه السلام ورونوته) آیاپوهېږئ تاسي چي تاسي له یوسف اوده ده له وروړ سره څه فعل کړی وو؟ کله چي تاسي ناپوهان وئ یعني آیاتاسوته دخوانی په لېونتوب چي له یوسف اودهغه له ورور سره څه ناخوالي کردي کړي وي اوغرض له دي څخه دپښې لویوالی دی لکه چي ورته وایي څومره ستره ګناه موکړي چي یوسف اودده ورور مورتلی وو(۱) ابوالسعودوایي: چي دغه خبره یې ددي لپاره ورته وکړه چي زړه یې وربانديي وسوځېدو اونصیحت یې ورته وکړچي توبې ایستلوته یې وهڅوي(۲)﴿ قَالُوٓاْ أَءِنَّكَ لَأَنتَ يُوسُفُۖ ﴾ وویل: (ورونودیوسف) آیابېشکه ته چي یې خامخاداته یوسف یې؟ دوی تعجب اواستغراب وکړ﴿ قَالَ أَنَا۠ يُوسُفُ وَهَٰذَآ أَخِيۖ قَدْ مَنَّ ٱللَّهُ عَلَيْنَآۖ ﴾ وویل: (یوسف هو) هم دازه یوسف یم اودا زماسکه وروړ بینامین) دی په تحقیق الله پرموږ احسان فرمایلی دی (چي له بلاوو اوازمېینبتونوڅخه یې ژغورلي، وروسته له بېلتون څخه یې یوځای کړي اوله ذلت څخه یې راته عزت ببښلی دی﴿ إِنَّهُۥ مَن يَتَّقِ وَيَصْبِرْ فَإِنَّ ٱللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾ بېشکه شان دادی هرڅوک چي وېرېږي له الله اوصبروکړي نوبېشکه الله دنېکوکارانو اجرنه ضائع کوي) یعني څوک چي له الله ووېرېږي اوپه محنتونوربړونو اوازمېینبتونوصبروکړي نوالله ددوی نېکي اواحسان نه ضائع کوي بلکه بشپړه جزا ورکوي. بیضاوي وایې چي (محسنین) یې دضمیرپرځای ظاهر یادکړي له دي کبله چي محسن وښیي هغه چاته وایې چي تقوی اوصبرېې خپل کړی وي(۳)﴿ قَالُواْ تَٱللَّهِ لَقَدْ ءَاثَرَكَ ٱللَّهُ عَلَيْنَا ﴾ وویل: (ورونودیوسف ده ته) په الله قسم چي خامخاپه تحقیق الله ته پرموږ غوره کړی یې) یعني دوی پخپله ګناه اعتراف وکړاوقسم یې وخوړچي یوسف علیه السلام الله پاک پردوی باندي دتقوی، صبر، علم اوحلم په سبب غوره او بهتر ګرزولی دی﴿ وَإِن كُنَّا لَخَٰطِـِٔينَ ﴾ اوبېشکه چي موږ ووخامخاله ګناهګارانو (خطاکونکو) یعني اوزموږ حال اوشان داووچي موږ په هغوکړوچي وموکړل ګناهګاروونو الله پاک تاته عزت درکړ اوموږ یې سپک کړو ته یې بسیا اوموږ یې خوارکړو﴿ قَالَ لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمُ ٱلْيَوْمَۖ ﴾ وویل: (یوسف علیه السلام) خپلو ورونوته) نشته هیڅ ملامتي پرتاسونن ورځ (اونه عذاب اوترټنه بلکه زه درته ببښنه کوم﴿ يَغْفِرُ ٱللَّهُ لَكُمْۖ وَهُوَ أَرْحَمُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴾ الله دي تاسي ته مغفرت وکړي (دغه دعا ددوی لپاره ده اوزیات مکرمت یې کوي) اوهم دی (الله) ښه غوره مهربان دټولو مهرباني کونکو یعني الله تبارک وتعالی په توبه کونکي باندي ښه مغفرت اورحمت کونکی دی چي دده په شان بل هیڅوک غوره رحمت کونکی نشته﴿ ٱذْهَبُواْ

(۱) ابوالسعود ۳/۹۰

(۲) البیضاوي ۳۲۹

(۳) البیضاوي نفس المرجع

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿بِقَمِيصِي هَٰذَا فَأَلْقُوهُ عَلَىٰ وَجْهِ أَبِي﴾ (يوسئ زما دغه قميص (كميس) نوواچوئ هغه په مخ دپلارزما).
طبري وايي چي داسي راغلي: كله چي يوسف عليه السلام دوى ته خپل ځان ور وپېژانده نودپلارپوښتنه يې له ورونوڅخه وكړه هغوى ورته ويل: دسترګوتوريې له غمه تللي دي (نه ويني، نوپه دې وخت كې يې خپل كميس وركړ[1]) اوويې غوښتل چي خپل پلارته دخپل ژوندي اوسېدلو زېرى وركړي اوخوښي ورته راولي ﴿يَأْتِ بَصِيرًا﴾ نوو به ګرزي بيا ليدونكى يعني ديدبه يې ورته راوګرزي ﴿وَأْتُونِي بِأَهْلِكُمْ أَجْمَعِينَ﴾ اوراشئ تاسي ماته سره له خپل تول اهله(اوذوذاته ديعقوب عليه السلام له اولادنه).

بلاغت:

﴿جَهَّزَهُم بِجَهَازِهِمْ﴾ پدې كلام كي اوهمدارنګه په ﴿أَذَّنَ مُؤَذِّنٌ﴾ كي اشتقاقي جناس موجود دى.

۲- كله چي الله تعالى فرمايي: ﴿فَأَسَرَّهَا يُوسُفُ فِي نَفْسِهِۦ وَلَمْ يُبْدِهَا لَهُمْ﴾ پدې دواړوكي دطباق صنعت راغلى دى.

۳- ﴿شَيْخًا كَبِيرًا﴾ دلته اطناب اودمهرباني جلبولو اواستعطاف لپاره راغلى دى.

۴- پدې كلام كي چي: ﴿وَسْـَٔلِ ٱلْقَرْيَةَ﴾ دلته مرسل مجازاوعلاقه يې محليت دى.

۵- ﴿يَٰٓأَسَفَىٰ عَلَىٰ يُوسُفَ﴾ دأسف اويوسف دلفظونو ترمينځ اشتقاقي جناس دى.

۶- ﴿تَٱللَّهِ تَفْتَؤُا۟﴾ پدې كلماتوكي ايجازبالحذف دى چي هغه داسي تقدير كېږي.(تالله لاتفتأ).

۷- پدې كلام كي چي ﴿وَلَا تَا۟يْـَٔسُوا۟ مِن رَّوْحِ ٱللَّهِ﴾ استعاره راغلي چي هغه دباد ورمه كومه چي خوندوربوى اوخوږه هواوي له برياليتوب څخه هغه چي وروسته له تكاليفوراځي اوهغه آسانتياچي وروسته له مشكلاتوپېښېږي استعاره شوي ده.

لطيفه:

قاضي عياض رحمه الله په الشفاء كتاب كي ليكي چي يوه اعرابي له يوچانه داآيت واورېدوچي تلاوت يې كاوو ﴿فَلَمَّا ٱسْتَيْـَٔسُوا۟ مِنْهُ خَلَصُوا۟ نَجِيًّا﴾ نوهغه وويل: زه شاهدي وايم چي دغه دمخلوق كلام نه دى مخلوق په داسي كلام او وينا باندي قدرت نلري اودا پدې چي آيت شريف ددوى له ټولو خلګوڅخه ګوښه توب ښيي چي پردى ورسره هيڅوک هم نه وي اودوى خپلي رايې مخ اوشاسره واړوي راواړوي اودوى هغه بهانه ولټوي چي كله هم بيا له پلارسره مخامخ شي او ورته ووايي اودغه پېښه ورته بيان كړي نوپه دغه لند آيت شريف ديوې اوږدې كيسې ټولي معاني رانغښتلي دي.

[1] الطبري ۵۷/۱۳

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

## الله تعالی فرمایي:

﴿ وَلَمَّا فَصَلَتِ ٱلْعِيرُ قَالَ أَبُوهُمْ إِنِّي لَأَجِدُ رِيحَ يُوسُفَ لَوْلَآ أَن تُفَنِّدُونِ (٩٤) قَالُواْ تَٱللَّهِ إِنَّكَ لَفِي
ضَلَٰلِكَ ٱلْقَدِيمِ (٩٥) فَلَمَّآ أَن جَآءَ ٱلْبَشِيرُ أَلْقَىٰهُ عَلَىٰ وَجْهِهِۦ فَٱرْتَدَّ بَصِيرًا قَالَ أَلَمْ أَقُل لَّكُمْ إِنِّيٓ أَعْلَمُ مِنَ
ٱللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ (٩٦) قَالُواْ يَٰٓأَبَانَا ٱسْتَغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَآ إِنَّا كُنَّا خَٰطِـِٔينَ (٩٧) قَالَ سَوْفَ أَسْتَغْفِرُ لَكُمْ رَبِّيٓ إِنَّهُۥ
هُوَ ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ (٩٨) فَلَمَّا دَخَلُواْ عَلَىٰ يُوسُفَ ءَاوَىٰٓ إِلَيْهِ أَبَوَيْهِ وَقَالَ ٱدْخُلُواْ مِصْرَ إِن شَآءَ ٱللَّهُ ءَامِنِينَ
(٩٩) وَرَفَعَ أَبَوَيْهِ عَلَى ٱلْعَرْشِ وَخَرُّواْ لَهُۥ سُجَّدًا وَقَالَ يَٰٓأَبَتِ هَٰذَا تَأْوِيلُ رُءْيَٰىَ مِن قَبْلُ قَدْ جَعَلَهَا رَبِّي حَقًّا وَقَدْ
أَحْسَنَ بِيٓ إِذْ أَخْرَجَنِي مِنَ ٱلسِّجْنِ وَجَآءَ بِكُم مِّنَ ٱلْبَدْوِ مِنۢ بَعْدِ أَن نَّزَغَ ٱلشَّيْطَٰنُ بَيْنِي وَبَيْنَ إِخْوَتِيٓ إِنَّ رَبِّي لَطِيفٌ
لِّمَا يَشَآءُ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلْعَلِيمُ ٱلْحَكِيمُ (١٠٠) ۞ رَبِّ قَدْ ءَاتَيْتَنِي مِنَ ٱلْمُلْكِ وَعَلَّمْتَنِي مِن تَأْوِيلِ ٱلْأَحَادِيثِ فَاطِرَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ
وَٱلْأَرْضِ أَنتَ وَلِيِّۦ فِي ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ تَوَفَّنِي مُسْلِمًا وَأَلْحِقْنِي بِٱلصَّٰلِحِينَ (١٠١) ذَٰلِكَ مِنْ أَنۢبَآءِ ٱلْغَيْبِ نُوحِيهِ
إِلَيْكَ وَمَا كُنتَ لَدَيْهِمْ إِذْ أَجْمَعُوٓاْ أَمْرَهُمْ وَهُمْ يَمْكُرُونَ (١٠٢) وَمَآ أَكْثَرُ ٱلنَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِينَ (١٠٣) وَمَا
تَسْـَٔلُهُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَٰلَمِينَ (١٠٤) وَكَأَيِّن مِّنْ ءَايَةٍ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ يَمُرُّونَ عَلَيْهَا وَهُمْ
عَنْهَا مُعْرِضُونَ (١٠٥) وَمَا يُؤْمِنُ أَكْثَرُهُم بِٱللَّهِ إِلَّا وَهُم مُّشْرِكُونَ (١٠٦) أَفَأَمِنُوٓاْ أَن تَأْتِيَهُمْ غَٰشِيَةٌ مِّنْ عَذَابِ ٱللَّهِ أَوْ
تَأْتِيَهُمُ ٱلسَّاعَةُ بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ (١٠٧) قُلْ هَٰذِهِۦ سَبِيلِيٓ أَدْعُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ عَلَىٰ بَصِيرَةٍ أَنَا۠ وَمَنِ ٱتَّبَعَنِي وَسُبْحَٰنَ ٱللَّهِ
وَمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ (١٠٨) وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِيٓ إِلَيْهِم مِّنْ أَهْلِ ٱلْقُرَىٰٓ أَفَلَمْ يَسِيرُواْ فِي
ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرُواْ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ وَلَدَارُ ٱلْءَاخِرَةِ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ ٱتَّقَوْاْ أَفَلَا تَعْقِلُونَ (١٠٩) حَتَّىٰٓ
إِذَا ٱسْتَيْـَٔسَ ٱلرُّسُلُ وَظَنُّوٓاْ أَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُواْ جَآءَهُمْ نَصْرُنَا فَنُجِّيَ مَن نَّشَآءُ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُنَا عَنِ ٱلْقَوْمِ ٱلْمُجْرِمِينَ
(١١٠) لَقَدْ كَانَ فِي قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ لِّأُوْلِي ٱلْأَلْبَٰبِ مَا كَانَ حَدِيثًا يُفْتَرَىٰ وَلَٰكِن تَصْدِيقَ ٱلَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ
وَتَفْصِيلَ كُلِّ شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ (١١١) ﴾

**یوسف: ٩٤ - ١١١**

## مناسبت او تړاو:

دا آیتونه د یوسف علیه السلام د ټولي کورنۍ مصرته د راتګ او یوسف علیه السلام سره د پیوستون خبري کوي هلته چي یوسف علیه السلام د عزت او لوړتیا په مقام کي اوسي او دا وخت دی چي دده هغه خوب چي پخوا یي لیدلی وو یوولس ورونه او مور او پلار ورته سجده کوي تعبیر مومي یو ځل بیا کورنۍ یو موټی او متحده کیږي او له خفګانه وروسته ورته خوښي لاره پیدا کوي په پای کي د الله جل جلاله د قدرت او وحدانیت هغه دلالت کونکي نښي چي د کائناتو په عجائبو کي دي راسپړي او انسانان ورته

Bawar.net



خبركوي اوبيادانبيې چې ديوسف عليه السلام او ورونيو په كيسه كي يې دعقل دخاوندانولپاره پندونه خوندي دي فرمايي ﴿ لَقَدْ كَانَ فِي قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ لِّأُولِي ٱلْأَلْبَٰبِ ﴾

لغتونه:

(تفندون) مابوډاتوب ته منسوب كوئ ؛ اصمعي وايي: كله چي ديوچا له بوډاوالي خبري زياتي شي نو ورته (مفند) وايي: زمخشري وايي چي (تفنيد) (فند) ته منسوب اوښځي زوړوالي ته وايي: چي له زوړتوبه بې عقل كارپرېږدي نو ويل كېږي (شيخ مفند) اوداسي نشي ويل كېداى چي (عجوزمفندة) ځكه چي ښځه دځواني په وخت كي هم دراى (اوبشپړعقل) خاونده نه وي چي په بوډاوالي كي ځني محرومه شي (١) (ضلالك) له سمي لاري نه خطاستا (البدو) صحراء (نزغ) فسادغورځولی وو اواصل يې له (نزغ الراكب الدابة) څخه اخيستل شوى هغه چي څوك خپل مركب دچسپانده تللولپاره وچوغي (فاطر) بې نمونې پيداكونكی اصل يې له فطرڅخه اخيستل شوى كله چي وڅيرل شي خو وروسته بياله ينځولو(خلق) اوايجادڅخه عبارت گرزېدلی دی (غاشية) پټونكی عذاب (بغتة) ناڅاپه (بأسنا) عذاب زموږ (عبرة) وعظ اوپند.

تفسير:

﴿ وَلَمَّا فَصَلَتِ ٱلْعِيرُ قَالَ أَبُوهُمْ إِنِّي لَأَجِدُ رِيحَ يُوسُفَ ﴾ اوكله چي بياجلاشو كاروان (له مصره دشام په لوري) وويل پلارددوی( خپلو مصاحبينو، حاضرينوقريبانوته) بېشكه زه چي يم خامخاديوسف بوی مومم ؛ ابن عباس رضى الله عنه وايي: هوا راوالوتله اوديوسف عليه السلام دكميس بوی يې داتوشپو واټن ( مسافې) څخه يعقوب عليه السلام ته راووړ(٢) ﴿ لَوْلَآ أَن تُفَنِّدُونِ ﴾ كه چېري دكم عقلي نسبت ماته نه كوئ (چي ته بوډاشوی يې ) د(لو )كلمې ځواب محذوف اوهغه دادی چي نوزه به خبر دركړم چي هغه ژوندی دی ﴿ قَالُواْ تَٱللَّهِ إِنَّكَ لَفِي ضَلَٰلِكَ ٱلْقَدِيمِ ﴾ ووېل ( لمسيانو او حاضرينويعقوب ته) قسم په الله بېشكه چي يې اورمروپه هغه پخوانی خطاكي اوله سمي لاري كوږشوی يې چي ديوسف مينه دي په لويه پېمانه زړه ته اچولي اوپه يادكي يې ډوب يې اوداهيله لرې چي هغه به بيامومې . مفسرين كرام وايي: چي دوی ځكه دغه خبري كولې چي پوخ باوريې درلود يوسف عليه السلام خامخا مړشوی دی. ﴿ فَلَمَّآ أَن جَآءَ ٱلْبَشِيرُ ﴾ نوكله چي راغی زېری كونكی (دخوښي خبر) مجاهدوايي: چي زېری كونكی پخپله يهوذا وو هغه په وينوكميس يې له ځانه سره راوړی وو نوويې ويل: چي زه به يې هسي خوشحاله كړم لكه چي غمجن كړی مي وو(٣) ﴿ أَلْقَىٰهُ عَلَىٰ وَجْهِهِۦ فَٱرْتَدَّ بَصِيرًا ﴾ نوواچاووده (زېري كونكي) هغه كميس پرمخ ددغه ( يعقوب) باندي نو وگرزېدو (يعقوب ) ليدونكی

---

(١) الكشاف ٢-٥٠٤.
(٢) القرطبي ٩ / ٢٥٩
(٣) الطبري ١٣ / ٦٣

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



(چي ورته خوښي اوبيداري راغبرګه شوه ) ﴿ قَالَ أَلَمْ أَقُل لَّكُمْ إِنِّىٓ أَعْلَمُ مِنَ ٱللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴾ وويل يعقوب عليه السلام آياماتاسو ته نه وو ويلي چي زه دالله (له ښوونې ) پوهېږم په هغه څه چي تاسي پرې نه پوهېږئ ) يعني يعقوب عليه السلام خپلوزامنو ته وويل: چي ماتاسو ته نه وو ويلي چي زه پرهغه څه پوهېږم تاسو پرې نه پوهېږئ ؛ چي يوسف ژوندى دى اوالله به يې ماته راولي چي دخوب تعبيروشي. مفسرين كرام وايي : دوى ته يې هغه خبره ورياده كړه چي ورته ويلي يې وو: ﴿ إِنَّمَآ أَشْكُواْ بَثِّى وَحُزْنِىٓ إِلَى ٱللَّهِ وَأَعْلَمُ مِنَ ٱللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴾روايت كېږي چي يعقوب عليه السلام له زېري كونكي څخه وپوښتل چي يوسف څنګه وو؟ هغه ورته وويل: يوسف دمصر پاچاوو ده ورته ويل: پاچهي يې څه كوم په كوم دين باندي وو؟ هغه ورته وويل: داسلام په دين وو نويې بياوويل: چي اوس نعمت بشپړشو([1]) ﴿ قَالُواْ يَٰٓأَبَانَا ٱسْتَغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَآ ﴾ وويل: (ورونو ديوسف) اې زموږ پلاره موږ ته له الله نه زموږ دګناهونو مغفرت وغواړه (دوى پخپله خطااقرار وكړچي ﴿ إِنَّا كُنَّا خَٰطِـِٔينَ ﴾ بېشكه موږ خطاكونكي وو (په هغه څه كي چي ديوسف په حق كي موترسره كړل ) ﴿ قَالَ سَوْفَ أَسْتَغْفِرُ لَكُمْ رَبِّىٓ ﴾ وويل: (يعقوب خپلوزامنو ته) ژربه تاسي ته له خپله ربه مغفرت وغواړم؛ مفسرين كرام وايي : دغه دمغفرت غوښتنه يې دسهارخواته وځنډوله ترڅواجابت ته نژدې وي اوچابياويلي چي دجمعې ورځي ته يې وځنډوله ځكه دجمعې په ورځ كي ددعاقبلولولپاره يوه ګړى شته([2]) ﴿ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ بېشكه هم دغه الله هم دى ښه ښنونكى دګناهونو(او دګناهونو پټوونكى ) ښه رحم والادى (په خپلوبندګانوباندي) ﴿ فَلَمَّا دَخَلُواْ عَلَىٰ يُوسُفَ ءَاوَىٰٓ إِلَيْهِ أَبَوَيْهِ ﴾ اوكله چي دوى په يوسف عليه السلام باندي راننوتل (ماڼۍ اومجلس ته ) نومور اوپلاريې خپل ځان ته رانژدې كړل ( هغوى يې په غېږ كي ونيول ) ﴿ وَقَالَ ٱدْخُلُواْ مِصْرَ إِن شَآءَ ٱللَّهُ ءَامِنِينَ ﴾ اووويل: يوسف عليه السلام چي ننوزئ (دمصر) ښارته حال داچي (له هري سختي به) انشاء الله په امن كي شئ؛ اوداچي انشاء الله يې ورسره زياته كړه مقصد يې پدې كلمه تبرک حاصلول وو ﴿ وَرَفَعَ أَبَوَيْهِ عَلَى ٱلْعَرْشِ ﴾ اوپورته يې كړل مور اوپلارخپل ( له ځانه سره يې دپاچهي) په تخت (كښېنول) ﴿ وَخَرُّواْ لَهُۥ سُجَّدًا ﴾ (او پرېوتل (دغه يوولس ورونه اوموراوپلار) دغه يوسف ته سجده كونكي ) يعني كله چي دوى يوسف عليه السلام ته ورننوتل نوورته يې سجده وكړه مفسرين كرام وايي : چي دغه سجده ددوى په نزد تحيه اوتعظيم وو دعبادت لپاره نه وه ﴿ وَقَالَ يَٰٓأَبَتِ هَٰذَا تَأْوِيلُ رُءْيَٰىَ مِن قَبْلُ ﴾ وويل: ( يوسف ) اې پلاره زمادا(دسجدې) بيان(تعبير) زمادپخواني خوب

---

([1]) الرازي ۱۸ / ۲۰۹

([2]) سيدقطب رحمه الله وايي: دغه ژمنه چي د ﴿ سَوْفَ ﴾ په كلمه يې له دوى سره وكړه داسي ښكاري چي دغه دانساني پرهارژلي زړه لوري ته اشاره وي چي ژربه ورته ښښنه وغواړي كله چي دزړه سكون يې پيداشي اوخفګان يې ليرې شي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دی (چي ماپه کوچنیوالي کي لیدلی وو) ﴿قَدْ جَعَلَهَا رَبِّي حَقًّا﴾ په تحقیق زما رب داخوب حق وګرځاوو ﴿وَقَدْ أَحْسَنَ بِيٓ إِذْ أَخْرَجَنِي مِنَ ٱلسِّجْنِ﴾ او په تحقیق احسان انعام يې راباندي کړی دی کله چي زه يې له بنديخانې را وايستم. مفسرين کرام وايي: چي دکوهي څخه درا ايستلو کيسه يې هدوياده نکړه ترڅوچي ورونه يې له شرمندګي سره مخ نشي اوداچي هغوی ته وروسته له بښني کولو ددوی کړه وړه ورپه يادنکړي ﴿وَجَآءَ بِكُم مِّنَ ٱلْبَدْوِ﴾ اوتاسي يې له صحرانه (مصرته) راوستی؛ ځکه دوی کوچيان خلګ وو دفلسطين په صحرامېري کي به يې اوښان اوپسونه درلودل نويوسف عليه السلام دالله جل جلاله هغه نعمت ورپه يادکړچي دوی يې له صحرانه ښارته راوستل ټوله کورنۍ يې چي ترسلوکسانولږ وو مصر ته راغلل اوکله چي بيرته له مصرنه وتل ترشپږ سوه زره کسانوزيات وو[1] ﴿مِنۢ بَعْدِ أَن نَّزَغَ ٱلشَّيْطَٰنُ بَيْنِي وَبَيْنَ إِخْوَتِيٓ﴾ وروسته له هغه چي شيطان زما اودوروڼو ترمينځ فساد جګړه غورځولي وه ؛ ابوحيان وايي ؛ چي فقط همدومره يادونه يې وکړه چي نعمت وروسته له کړاوونو څخه ځانله خوندلري[2] ﴿إِنَّ رَبِّي لَطِيفٌ لِّمَا يَشَآءُ﴾ بېشکه زما رب چي دی باريک تدبير والادی دهغه چالپاره چي چي ورته اراده وفرمايې يعني هغه خپل تدبيرپه باريکي اودقت سره داسي چي خلګ يې احساس نه کوي اوورباندي نه پوهېږي ترسره کوي ﴿إِنَّهُۥ هُوَ ٱلْعَلِيمُ ٱلْحَكِيمُ﴾ بېشکه الله ښه عالم ښه حکمت والادی ؛ پخپل مخلوق ښه عالم اوپه خپلو مصنوعاتو کي دحکمت خاوندذی. مفسرين کرام وايي چي: يعقوب عليه السلام له يوسف عليه السلام سره په مصرکي ځلېرويشت کاله واوسېدو بياوفات شو اوبيايې وصيت وفرمايل: چي مادخپل پلار اسحاق ترڅنګ په شام کي ښخ کړئ اوحضرت يوسف عليه السلام پخپله ورسره ولاړ اوهلته يې دفن کړ اوبياچي کله بيرته مصرته راستون شو له پلاره وروسته درويشت کاله په مصرکي ژوندی وو اوچي وخت يې پوره شواوپدې وپوهېدوچي نورنو دژوندانه ورستی شېبې دي نودتل ترتله پاچهي مينه يې په زړه کي پيداشوه او ويې غوښتل دالله جل جلاله اودخپلونيکانو پلرونو اواجدادو يعقوب او اسحاق عليهما السلام ملاقات يې ترسره شي نويې وويل: ﴿رَبِّ قَدْ ءَاتَيْتَنِي مِنَ ٱلْمُلْكِ﴾ اي ربه زما په تحقیق ماته دي راکړي ده څه له پاچهي (ماته دي عزت، مرتبه، سلطان اودنيوي نعمتونه راکړي دي) ﴿وَعَلَّمْتَنِي مِن تَأْوِيلِ ٱلْأَحَادِيثِ﴾ اوښوولي دي ماته څه له تعبيره دخوبونو (چي دغه علمي نعمت دی) ﴿فَاطِرَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ أَنتَ وَلِيِّۦ فِي ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ﴾ ای دآسمانونو اوځمکي (بې له نمونې) پيداکونکي هم ته يې دوست کارجوړونکی زما په دنيااوآخرت کي ﴿تَوَفَّنِي مُسْلِمًا وَأَلْحِقْنِي بِٱلصَّٰلِحِينَ﴾ وفات کړه ماپداسي حال کي چي مسلمان يم اوله صالحانو سره مي يوځای کړه ؛ الله ته يې ابتهال وکړ چي اسلام يې ورته خوندي کړي ترڅوچي ورته مرګ راځي ،

---

(۱) الطبري ۱۳/ ۷۳

(۲) البحرالمحيط ۵ / ۳۴۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



هم ترديږ خايه دحضرت يوسف عليه السلام كيسه پای ته رسېږي نورنو دمحمد رسول الله صلی الله عليه وسلم دنبوت په رښتنولي باندي دلائل دي ﴿ ذَٰلِكَ مِنْ أَنۢبَآءِ ٱلْغَيْبِ نُوحِيهِ إِلَيْكَ ﴾ دغه (كيسه ديوسف) دغيبو له خبرونو څخه ده چي هغه موږ تاته وحی كوو ( اې محمده ! چي تاته پخوا ددې علم نه وو اوموږ تاته دهغې په بشپړه توګه اوښكلي انځور سره ښودنه وكړه ترڅو ستادنبوت دعوی درښتنولي لپاره دليل وي ﴿ وَمَا كُنتَ لَدَيْهِمْ إِذْ أَجْمَعُوٓا۟ أَمْرَهُمْ وَهُمْ يَمْكُرُونَ ﴾ اونه وې ته ( اې محمده ! ) له دوی (ديعقوب عليه السلام له زامنو ) سره كله چي دوی خپل فكر راټول كړ (په غورځولو ديوسف عليه السلام په كوهي كي) اوحال داچي دوی مكرفريب كاوو له يعقوب عليه السلام اويوسف عليه السلام سره چي له دوی سره يې واستوي تاهغه دكيسې ننداره له نژدې نه ده كړي بلكه دوحی په سبب هغه چي عليم اوخبير ذات تاته كړي دي پوهېدلی يې ﴿ وَمَآ أَكْثَرُ ٱلنَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِينَ ﴾ اونه دي زياتره خلګ اګركه ته حرص وكړې (ددوی په ايمان راوړلو كي ) ايمان راوړونكي ؛ ځكه دوی دكفرتصميم لري دغه درسول الله لپاره تسلاده ﴿ وَمَا تَسْـَٔلُهُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ﴾ اونه غواړې ته ( اې محمده ! ) په دغه (ابلاغ دقرآن) هيڅ اجرمزدوري (چي پردوی درروند شي ) ﴿ إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَٰلَمِينَ ﴾ نه دی دا قرآن مګرپندد دی ( له جانبه دالله تعالی ) لپاره دټولو خلګو ؛ اوته ددغه قرآن په تلاوت سره له دوی څخه مال دولت نه غواړې نوكه دوی هوښياران وی منلی به يې وو سرغړونه به يې نه كوله ﴿ وَكَأَيِّن مِّنْ ءَايَةٍ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ اوډېردي له دلائلو (علاماتوچي دالله جل جلاله په وحدانيت اووجودباندي دلالت كوي) په آسمانونو اوځمكوكي (لكه لمر، سپوږمۍ، ستوري ، غرونه ، دريابونه ، ونې اونور عجائبات او شيزونه ﴿ يَمُرُّونَ عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُونَ ﴾ چي دوی (معاندين ) ورباندي تېرېږي (په ستركوبې سباښګا وينې) حال داچي دوی له هغو ننبوځني تل ځنګ كونكي دي ؛ پكي سوچ اوفكرنه كوي نوددوی له اعراض څخه تعجب مكوه چي له تاڅخه يې كوي بلكه ددوی ځنګ كول له آيتونو دوحدانيت اوقدرت دالله څخه خورا نادر اوعجيب دی ﴿ وَمَا يُؤْمِنُ أَكْثَرُهُم بِٱللَّهِ إِلَّا وَهُم مُّشْرِكُونَ ﴾ او ايمان نه راوړي اكثرله دغو (مشركانو دالله په وجود اوخالقيت باندي) مګر پداسي حال كي چي دوی له الله سره شريک نيونكي دي دغه مكذبين په الله ايمان نه راوړي مګر چي له الله سره شريک ونيسي بيادوی اقراركوي چي الله پاک خالق، اورازق دی خو ورسره بتان په عبادت كولوكي شريكان ګڼي. ابن عباس رضی الله عنهماوايي: اوله دې جملې څخه ددوی هغه دتلبيې ويناده چي ويل به يې : لبيک لاشريک لک الاشريكا هولک تملكه ومامللک ) (١) ﴿ أَفَأَمِنُوٓا۟ أَن تَأْتِيَهُمْ غَٰشِيَةٌ مِّنْ عَذَابِ ٱللَّهِ ﴾ آيانوبېغمه دي دا(مشركان ) له دې نه چي راشي دوی ته(عقوبت) چاپيرېدونكی پټونكی له عذابه دالله نه ﴿ أَوْ تَأْتِيَهُمُ ٱلسَّاعَةُ بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴾ ياراشي دوی ته قيامت ناڅاپه حال داچي دوی پرې خبر(هم) نه وي

(١) القرطبي ٩ / ٢٧٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



(اونه يې انتظارکوي استفهام انکاري او په معناکي يې توبيخ پروت دی ﴿ قُلْ هَٰذِهِۦ سَبِيلِيٓ ﴾ وو ايه اي محمده! دوی ته) چي دغه څرګندا وسمه سيخه لاره ) زما ده (چي هيڅ شک او شبه پکي نشته ﴿ أَدْعُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ عَلَىٰ بَصِيرَةٍ أَنَا۠ وَمَنِ ٱتَّبَعَنِي ﴾ بولم زه (ټول خلګ لوري د توحيد د الله ته ( طاعت او عبادت ته يې ) په بيان او ښکاره دليل سره او هم هرهغه خلګ چي زما متابعت کوي (او راباندي يې ايمان راوړی دی) ﴿ وَسُبْحَٰنَ ٱللَّهِ وَمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴾ او پاک دی الله ( له شرکه ) او نه يم زه له شريک نيونکو څخه ﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِيٓ إِلَيْهِم ﴾ او نه وو لېږلي موږ پخوا له تا (اې محمده!) په رسالت سره) مګر سړي( نه ملائکي د آسمان ) چي موږ به دوی ته وحی کوله. طبري وايي: معنا دا چي نه مو ښځي په رسالت رااستولي او نه هم پرښتي چي خلګ زموږ طاعت ته راوبولي (۱) او په آيت شريف کي په هغو کسانو ردشوی چي وايي: انبياء دي پرښتي وي او يا هغه کسان چي ګمان کوي ښځي به هم د رسالت مقام ته رسېدلي وي ﴿ مِّنْ أَهْلِ ٱلْقُرَىٰٓ ﴾ له اهل د قريو ( ښارونو ) نه د صحراء د بيابانو نو څخه. حسن بصري رحمه الله وايي: چي الله پاک هيڅ بري هم د صحرايي خلګو، ښځو او پېريانو څخه انبياء ندي رااستولي(۲) مفسرين کرام وايي: دد ې لپاره انبياء عليهم السلام ګرد (ټول) له ښارونو څخه غوره شوي چي دوی په حلم او علم سمبال وي او د صحرا بيابان خلګ په جهالت، قسوت او جفاکي ساری نلري ﴿ أَفَلَمْ يَسِيرُواْ فِي ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرُواْ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ﴾ آيا نو نه ګرزي دغه (دروغجنان کفار) په ځمکه کي نو ودي ويني (د عبرت په ليدلو) چي څرنګه وو عاقبت د هغو دروغجنانو چي تر دوی پخوا تېرشوي دي (او پند دي ځني واخلي استفهام د توبيخ لپاره راغلی دی ﴿ وَلَدَارُ ٱلْءَاخِرَةِ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ ٱتَّقَوْاْ ﴾ او خامخا کور د آخرت ډېرغوره دی د پاره د هغو کسانو چي ځان ساتي ( له دغي فاني دنيا څخه ﴿ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ آيا نو تاسي عقل نه چلوئ؟ (چي ايمان راوړی) ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا ٱسْتَيْـَٔسَ ٱلرُّسُلُ وَظَنُّوٓاْ أَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُواْ ﴾ ترهغه پوري چي رسولان به نا اميده شول چي د دوی قوم يې تکذيب وکړ او ايمان يې نه راوړی ﴿ جَآءَهُمْ نَصْرُنَا ﴾ راغي ناڅاپه دوی ته نصرت زموږ(په سختو شېبو کي کله چي مشکلاتو اوکړاوونو په دوی کي منګولي ښخي کړي وې او له الله جل جلاله څخه پرته بل هيڅ د اميد څرک نه وي پاتي نو په همدغه وخت ناڅاپه غوڅ بری الله پاک راواستوی ﴿ فَنُجِّيَ مَن نَّشَآءُ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُنَا عَنِ ٱلْقَوْمِ ٱلْمُجْرِمِينَ ﴾ نو خلاصي به ورکړی شوه له عذابه هغه چاته چي موږ به ورته اراده وفرمايله (پيغمبرانو او مؤمنانو ته پرته له کافرانو ) او نشي دفع کېدای عذاب زموږ له قوم ګنهکارانو څخه, کله چي وړباندي نازل شي ﴿ لَقَدْ كَانَ فِي قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ لِّأُوْلِي ٱلْأَلْبَٰبِ ﴾ خامخا په تحقيق شته په قصه

(۱) الطبري ۱۳ / ۸۰
(۲) القرطبي ۹ / ۲۷۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ددوی (یوسف او ورونو ) کي پند لپاره دعقل د خاوندانو ﴿ مَا كَانَ حَدِيثًا يُفْتَرَىٰ ﴾ نه دی ( دغه قرآن) یوه داسي خبره چي له ځانه په دروغو ویلي شوي وي (او یا چاجوړه کړي وي ) ﴿ وَلَٰكِن تَصْدِيقَ الَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ ﴾ لیکن دی دغه قرآن تصدیق کونکی دهغو (آسماني ) کتابونو چي ووپخواله دي نه ﴿ وَتَفْصِيلَ كُلِّ شَيْءٍ ﴾ اودی تفصیل دهر شي (چي په دین کي له حلال او حرام څخه محتاج الیه وي ) ﴿ وَهُدًى وَرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴾ اوهدایت اورحمت دی لپاره دهغه قوم چي ایمان بي ( وربانديي) راوړي (اوپه اوامرو، نواهیوباندي بي عمل کوي).

**بلاغت:**

﴿ تَاللَّهِ إِنَّكَ لَفِي ضَلَالِكَ الْقَدِيمِ ﴾ دلته بي ددوی کلام په قسم او( انّ) او(لام) باندي مؤکد راووړچي دغه ډول ته انکاري تاکید ویل کېږي ځکه پرله پسې مؤکدات راوړل شوي دي

۲ – کله چي الله تعالی فرمایي: ﴿ ادْخُلُوا مِصْرَ إِن شَاءَ اللَّهُ آمِنِينَ ﴾ دلته د ﴿ إِن شَاءَ اللَّهُ ﴾ کلمه د تبرک لپاره راوړل شوي او په آیت شریف کي تقدیم او تأخیر دی چي تقدیربي داسي کېدای شي: (ادخلوا مصر آمنین انشاء الله).

۳ - ﴿ وَرَفَعَ أَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ وَخَرُّوا لَهُ سُجَّدًا ﴾ له ابوینو څخه مراد مور او پلاردي اوتغلیبا ابوین بلل شوي همداراز ( رفع) یعني پورته کول دمور او پلار وروسته دسجدې تراداکولو دي خولفظاو رڅخه روسبی راغلی چي ددوی تعظیم ترسره شي نومعنا داچي لومړی بي دسجدي کولو مراسم ترسره اوبیابي شاهي تخت ته وخېژول.

۴ – کله چي الله تعالی فرمایي: ﴿ وَمَا أَكْثَرُ النَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِينَ ﴾ دلته د ﴿ وَلَوْ حَرَصْتَ ﴾ جمله د ﴿ وَمَا ﴾ داسم او خبر ترمینځ معترضه راغلي اوسبب بي داچي ځرګنده کړي هدایت یوازي دالله جل جلاله په لاس کي دی.

۵ – پدې کلام کي چي راځي: ﴿ وَمَا تَسْأَلُهُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ﴾ دغه دمضاف په حذف سره راغلی یعني ته له دوی څخه دقرآن کریم په تبلیغ دځه شي غوښتنه اوسوال نه کوې.

۶ - ﴿ وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُونَ ﴾ او ﴿ إِلَّا وَهُم مُّشْرِكُونَ ﴾ پدې کي له بدیعي محسناتو څخه هغه څه شته چي سجع بلل کېږي اوهغه داچي ددواړو فاصلو په وروستني حرف اوتوري کي سره توافق وي.

**تنبیه:**

دالله تعالی داقول چي فرمایي: ﴿ لَقَدْ كَانَ فِي قَصَصِهِمْ عِبْرَةٌ لِّأُولِي الْأَلْبَابِ ﴾ پدې دلالت کوي چي ددې کیسو له یادولو څخه مقصد پند اوعبرت دی اوپدې کیسه کي عبرت داچي هغه ذات چي یوسف علیه السلام بي له کوهي راوکیښ اوبیابي له بندیخانې راویوست وروسته بي دمصرد پاچهي تاج ور وبانښه کوم چي څه موده پخوادی هلته دمریي په نامه خلګوپېژانده وریسې بي تړوله کورنۍ اومور

Bawar.net



اوپلارله ډېرې مودې بېلتونه وروسته سره يوځای اويوموټی کړه چي هېڅوک هيڅ او هيچاهم دداسي څه انتظار نه کاوو نوهمدغه ذات جل جلاله پدې هم قادردی چي دمحمدصلی الله عليه وسلم عزت وکړي شان يې لوړ کړي اودين يې خپورکړي بل له دغي کيسي څخه اخبارکول له پټو رازونوڅخه پرده پورته کول دي چي دغه داخباربالغيب معجزه الله جل جلاله رسول الله صلی الله عليه وآله وسلم ته ورکړي ده.

دالله جل جلاله په مرسته اوتوفيق ديوسف سورت بشپړشو

***

## (١٣) دالرعد سورت مدني اودرې څلوېښت آيتونه لري

دسورت په وړاندي:

*دالرعد سورت مدني اودمدني سورتونو اساسي اوبنسټيز مقصدونه دادي چي دوحدانيت، رسالت اوبعث جزاء تقريرپکي شوی وي دمشرکانو دشکوکو اوشبهاتودفع پکي ويلي شوي وي.

* سورت په لمړي پيل کي يوه ستره قضيه چي دالله جل جلاله په وجوداو وحدانيت باندي ايمان راوړل دي رااخلي له دې سره سره چي حق خوراڅرګنداوښکاره دی خوبياهم مشرکان دقرآن تکذيب کوي اودرحمان له توحيدڅخه منکرېږي دادی چي آياتونه نازلېږي اودالله جل جلاله د بشپړ قدرت اوپه آسمانونواوځمکو کي دعجيب خلقت اوپيدايښت يادونه کوي لمر، سپوږمۍ، شپه او ورځ کښتونه، مېوې اوټول هغه څه چي په دغه ويره دنيااوپراخو کائناتو کي دي ورته دخلګوپام رااړوي.

* وروسته بياآيتونه دبعث اوجزاء اثبات کوي ورپسې دالله جل جلاله په يووالي او توحيدټينګار کوي داپه ډاګه کوي چي ژوند اومرګ، پيدايښت اوايجاد، ګټه اوتاوان يوازي دالله له لوري ترسره کېږي دلته قرآن کريم دحق اوباطل لپاره دوه مثالونه راوړي يويې داوبو په هکله چي له آسمانه رااوري اوبياکندي اوخوړي بهېږي، خس اوخاشاک له ځانه سره لېږدوي اوداوبوپه سرخيري اوخړي په شان راپورته کېږي هغه چي هيڅ فائده پکي نه وي دوهم مثال دهغوکانونو اوفلزي موادو دی چي وېلې کېږي ترڅو دسرو اوسپينو زرولوښي ګېڼې ځني جوړي شي اوبياهغه پاتي شوني لکه ځګ اونور چي سملاسي له پيداکېدلو سره له مينځه ځي اوخوړېږي خوپاک سپېځلی معدن هماغسي صاف ستره همېشه اوتل ترتله وي ﴿ أَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَسَالَتْ أَوْدِيَةُۢ بِقَدَرِهَا فَٱحْتَمَلَ ٱلسَّيْلُ زَبَدًا رَّابِيًا ﴾ ترپايه دآيتونو همدغه دحق اوباطل مثال دی.

* په سورت کي دنيکمرغه اوبدمرغه کسانوصفات يادشوي چي هغوی يې په ړندواو بينايانو تعبيرکړي دي او دهري ډلي تګلاره يې ببله ښکاره کړي اوپه پای کي سورت ددې ګواهي اداکوي چي رسول الله صلی الله عليه وسلم دالله له لوري په رښتوني استازي دی.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تسمیه او نومول:

دغه مبارک سورت په (الرعد) خکه ونومول شوچي دغه دکائناتو عجیبه پېښه چي دالله جل جلاله دقدرت اوسلطان وړانګي پکي ځلېږي اوبه دژوندانه سبب اوپه خپل قدرت سره یې له وریځي راتوی کړي اوپه همدې وریځ کي الله پاک رحمت اوعذاب دواړه خوندي کړي دي هغه لکه څرنګه چي پکي باران شته همداسي پکي تندرنغښتی دی په یوه کي ژوند اوپه بل کي مرګ پټ دی اوددوو متناقضو یوځای کول دقدرت کرشمې اوعجائبات دي

الله تعالی فرمایي:

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَـٰنِ ٱلرَّحِيمِ

الٓمٓرۚ تِلْكَ ءَايَـٰتُ ٱلْكِتَـٰبِ ۗ وَٱلَّذِىٓ أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ ٱلْحَقُّ وَلَـٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١﴾ ٱللَّهُ ٱلَّذِى رَفَعَ
ٱلسَّمَـٰوَٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا ۖ ثُمَّ ٱسْتَوَىٰ عَلَى ٱلْعَرْشِ ۖ وَسَخَّرَ ٱلشَّمْسَ وَٱلْقَمَرَ ۖ كُلٌّ يَجْرِى لِأَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ يُدَبِّرُ ٱلْأَمْرَ يُفَصِّلُ
ٱلْـَٔايَـٰتِ لَعَلَّكُم بِلِقَآءِ رَبِّكُمْ تُوقِنُونَ ﴿٢﴾ وَهُوَ ٱلَّذِى مَدَّ ٱلْأَرْضَ وَجَعَلَ فِيهَا رَوَٰسِىَ وَأَنْهَـٰرًا ۖ وَمِن كُلِّ ٱلثَّمَرَٰتِ جَعَلَ فِيهَا
زَوْجَيْنِ ٱثْنَيْنِ ۖ يُغْشِى ٱلَّيْلَ ٱلنَّهَارَ ۚ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَـَٔايَـٰتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴿٣﴾ وَفِى ٱلْأَرْضِ قِطَعٌ مُّتَجَـٰوِرَٰتٌ وَجَنَّـٰتٌ مِّنْ
أَعْنَـٰبٍ وَزَرْعٌ وَنَخِيلٌ صِنْوَانٌ وَغَيْرُ صِنْوَانٍ يُسْقَىٰ بِمَآءٍ وَٰحِدٍ وَنُفَضِّلُ بَعْضَهَا عَلَىٰ بَعْضٍ فِى ٱلْأُكُلِ ۚ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ
لَـَٔايَـٰتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿٤﴾ ۞ وَإِن تَعْجَبْ فَعَجَبٌ قَوْلُهُمْ أَءِذَا كُنَّا تُرَٰبًا أَءِنَّا لَفِى خَلْقٍ جَدِيدٍ ۗ أُو۟لَـٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ
كَفَرُوا۟ بِرَبِّهِمْ ۖ وَأُو۟لَـٰٓئِكَ ٱلْأَغْلَـٰلُ فِىٓ أَعْنَاقِهِمْ ۖ وَأُو۟لَـٰٓئِكَ أَصْحَـٰبُ ٱلنَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَـٰلِدُونَ ﴿٥﴾ وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِٱلسَّيِّئَةِ
قَبْلَ ٱلْحَسَنَةِ وَقَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِمُ ٱلْمَثُلَـٰتُ ۗ وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلَىٰ ظُلْمِهِمْ ۖ وَإِنَّ رَبَّكَ لَشَدِيدُ
ٱلْعِقَابِ ﴿٦﴾ وَيَقُولُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْهِ ءَايَةٌ مِّن رَّبِّهِۦٓ ۗ إِنَّمَآ أَنتَ مُنذِرٌ ۖ وَلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ ﴿٧﴾ ٱللَّهُ يَعْلَمُ مَا
تَحْمِلُ كُلُّ أُنثَىٰ وَمَا تَغِيضُ ٱلْأَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ ۖ وَكُلُّ شَىْءٍ عِندَهُۥ بِمِقْدَارٍ ﴿٨﴾ عَـٰلِمُ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَـٰدَةِ
ٱلْكَبِيرُ ٱلْمُتَعَالِ ﴿٩﴾ سَوَآءٌ مِّنكُم مَّنْ أَسَرَّ ٱلْقَوْلَ وَمَن جَهَرَ بِهِۦ وَمَنْ هُوَ مُسْتَخْفٍۭ بِٱلَّيْلِ وَسَارِبٌۢ بِٱلنَّهَارِ ﴿١٠﴾
لَهُۥ مُعَقِّبَـٰتٌ مِّنۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِۦ يَحْفَظُونَهُۥ مِنْ أَمْرِ ٱللَّهِ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتَّىٰ يُغَيِّرُوا۟ مَا بِأَنفُسِهِمْ ۗ وَإِذَآ أَرَادَ
ٱللَّهُ بِقَوْمٍ سُوٓءًا فَلَا مَرَدَّ لَهُۥ ۚ وَمَا لَهُم مِّن دُونِهِۦ مِن وَالٍ ﴿١١﴾ هُوَ ٱلَّذِى يُرِيكُمُ ٱلْبَرْقَ خَوْفًا وَطَمَعًا وَيُنشِئُ
ٱلسَّحَابَ ٱلثِّقَالَ ﴿١٢﴾ وَيُسَبِّحُ ٱلرَّعْدُ بِحَمْدِهِۦ وَٱلْمَلَـٰٓئِكَةُ مِنْ خِيفَتِهِۦ وَيُرْسِلُ ٱلصَّوَٰعِقَ فَيُصِيبُ بِهَا مَن يَشَآءُ
وَهُمْ يُجَـٰدِلُونَ فِى ٱللَّهِ وَهُوَ شَدِيدُ ٱلْمِحَالِ ﴿١٣﴾ لَهُۥ دَعْوَةُ ٱلْحَقِّ ۖ وَٱلَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِهِۦ لَا يَسْتَجِيبُونَ لَهُم بِشَىْءٍ إِلَّا كَبَـٰسِطِ
كَفَّيْهِ إِلَى ٱلْمَآءِ لِيَبْلُغَ فَاهُ وَمَا هُوَ بِبَـٰلِغِهِۦ ۚ وَمَا دُعَآءُ ٱلْكَـٰفِرِينَ إِلَّا فِى ضَلَـٰلٍ ﴿١٤﴾ وَلِلَّهِ يَسْجُدُ مَن فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ طَوْعًا
وَكَرْهًا وَظِلَـٰلُهُم بِٱلْغُدُوِّ وَٱلْـَٔاصَالِ ۩ ﴿١٥﴾ قُلْ مَن رَّبُّ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ قُلِ ٱللَّهُ ۚ قُلْ أَفَٱتَّخَذْتُم مِّن دُونِهِۦٓ أَوْلِيَآءَ لَا يَمْلِكُونَ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



لِأَنفُسِهِمْ نَفْعًا وَلَا ضَرًّا ۚ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي ٱلْأَعْمَىٰ وَٱلْبَصِيرُ أَمْ هَلْ تَسْتَوِي ٱلظُّلُمَٰتُ وَٱلنُّورُ ۗ أَمْ جَعَلُوا۟ لِلَّهِ شُرَكَآءَ خَلَقُوا۟ كَخَلْقِهِۦ فَتَشَٰبَهَ ٱلْخَلْقُ عَلَيْهِمْ ۚ قُلِ ٱللَّهُ خَٰلِقُ كُلِّ شَىْءٍ وَهُوَ ٱلْوَٰحِدُ ٱلْقَهَّٰرُ (١٦) ﴾ الرعد: ١ ـ ١٦

**لغتونه:**

(عمد) ستني ته وايي او دغه توري اسم جمع او څوک وايي چي: دعمود جمع دی (صنوان) د (صنو) جمع او هغه له وني څخه راغوږدلي ښاخ ته وايي چي معنايې هم مثله (ساری) دی ځکه نوعم (کاکا) ته (صنو) وايي چي له پلارسره مماثلت لري نوکله چي ونه (درخته) ګڼ ښاخونه لري هغوی ته صنوان وايي (الأغلال) د (غل) جمع او هغه ترونکي ته وايي چي ورباندي لاس له غاړي سره تړي ( المثلات) د (مثلت) جمع او عذاب ته ويل کيږي (مثلت) ته ځکه مثلت وايي چي دعذاب او معذب ترمينځ مماثلت موجودوي (تغيض) له (غاض) څخه اخيستل شوی او هغه وچېدلو او کمېدلو ته وايي (سارب) په رڼا ورځ تګ کونکي ته وايي (معقبات) يو په بل پسې راتلونکي پرښتې ( المحال) په قوت هلاکول او عذاب.

**دنزول سبب:**

أنس رضی الله عنه روايت کوي ، وايي چي: رسول الله صلى الله عليه وسلم دعربانو دجاهليت دفرعونيانو يوفرعون ته څوک ور واستول ، ورته ويل يې چي: هغه ماته راوبوله استازي ورته ويل: هغه خورا سرکښ او جباردی خورسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چي: ورشه هغه ته بلنه ورکړه او قاصد ورغی هغه ته يې بلنه ورکړه ورته وې ويل چي: رسول الله صلى الله عليه وسلم درته بلنه کوي هغه په ځواب کي ورته زياته کړه چي: ماته خبر راکړه آيا دمحمد الله دسروزرودی ، که دسپينوزرو او که دڅلعي؟ نو استازی پيغمبرته راستون شو دهغه ځواب يې ورته راووړ او ويې ويل: چي ما ويل هغه خورا سرکښه او متکبر دی بيارسول الله صلى الله عليه وسلم قاصد ور واستاوو چي هغه ته بلنه ورکړه هغه بيالومړنۍ خبره ورته غبرګه کړه دوی په همدې خبرو کي وو چي الله پاک يې په سرباندي وريځ راوستله او دتالندي غږ شو په سرد پاسه يې تکه (تندر) راولوېده او دسرکوپړۍ يې څني يووړه بيا الله جل جلاله داآيتونه نازل کړل ﴿ وَيُرْسِلُ ٱلصَّوَٰعِقَ فَيُصِيبُ بِهَا مَن يَشَآءُ وَهُمْ يُجَٰدِلُونَ فِى ٱللَّهِ وَهُوَ شَدِيدُ ٱلْمِحَالِ ﴾ (١)

**تفسير:**

﴿ الٓمٓر ﴾ پدې کي دقرآنکريم اعجازته اشاره ده (٢) او ابن عباس رضی الله عنهما وايي معناداچي: (زه الله پوهېږم اووينم ) ﴿ تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْكِتَٰبِ ﴾ داآيتونه دکتاب (قرآن) دي (هغه چي معجزاو ترټولو پورته کتاب دی ﴿ وَٱلَّذِىٓ أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ ٱلْحَقُّ ﴾ او هغه کتاب چي تاته نازل کړی شوی دی له

---

(١) اسباب النزول ١٥٦

(٢) دمقطعاتو تورو توضيحات دالبقره سورت په پيل کي ولولئ.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



(طرفه) درب ستا حق دی (له باطل سره نه گډېږي اونه پکې څه شک اوشبه شته ) ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ وليكن زيات خلک وربانديي باورنکوي يعني سره له دې چې زښته څرګند اوروښانه ده خوبيايې هم ډېرکسان نه مني دروغ يې ګڼي ) ﴿ ٱللَّهُ ٱلَّذِى رَفَعَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا ﴾ الله هغه ذات دی چې آسمانونه يې پورته کړي (درولي) بې له ستنو چې تاسويې ووينئ (چې ستنې نلري اودغه دمبدع پيداکونکي حکيم ذات په وجوددليل دی ) ﴿ ثُمَّ ٱسْتَوَىٰ عَلَى ٱلْعَرْشِ ﴾ بيايې استواء وکړه په عرش باندي (هسې چې له ده سره ښايې بې له کيفه، تعطيله اوتجسيم څخه (۱) ﴿ وَسَخَّرَ ٱلشَّمْسَ وَٱلْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِى لِأَجَلٍ مُّسَمًّى ﴾ (اومسخرکړی يې دي لمراوسپوږمۍ هريو( له دوی نه) روان دي تر معلومې نېټې پورې ) يعني الله پاک لمر اوسپوږمۍ دانسانانو دمصالحولپاره تابع ګرزولي چې دالله په قدرت سره هريويې ترټاکلي مودې چې ددنيادفناموده ده روان دي ﴿ يُدَبِّرُ ٱلْأَمْرَ ﴾ (تدبيرکوي دهري چاري) الله پاک پخپل حکمت اوقدرت سره دخلګوامور اوچاري سمبالوي چاته ايجاد اوچاته اعدام څينوته ژوند اوځينوته مرګ ورکوي ﴿ يُفَصِّلُ ٱلْءَايَٰتِ ﴾ په تفصيل سره دلائل (دتوحيد او قدرت) بيانوي ﴿ لَعَلَّكُم بِلِقَآءِ رَبِّكُمْ تُوقِنُونَ ﴾ (لپاره ددې چې تاسي دخپل رب په ملاقات يقين وکړئ ) يعني الله د خپل قدرت اوتوحيد دلائل ددې لپاره بيانوي څوتاسي دالله جل جلاله دملاقات په هکله باور ولرئ چې له مرګه وروسته ژوندون حق دی ځکه څوک چې دومره توان اوقدرت لري نوهغه بياانسان له مرګه وروسته هم را ژوندی کولای شي. ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِى مَدَّ ٱلْأَرْضَ ﴾ اودغه ( الله) همغه ذات دی چې ځمکه يې غوړولي ده (پخپل قدرت سره پراخه اودغه خبره دځمکي له ګرويت سره منافي نه ده دځمکي ګرويت منل شوي خبره ده او دلته مقصدداچې الله پاک مځکه ويره پراخه ددې لپاره ګرزولي چې دانسان اوحيوان داوسېدلو لپاره مناسبه وي که چېري خوړونه لابنونه اوغرونه وای نوبيابه وربانديي اوسېدل ممکن نه وو په التسهيل نومې کتاب کې وايې چې دوېرولو اوغوړولو لفظ له تکويرسره منافي نه ده ځکه هره ټوټه يې په ځانګړي توګه غوړېدلي خوګرده ځمکه بيا ګروي الشکل ده(۲) ﴿ وَجَعَلَ فِيهَا رَوَٰسِىَ ﴾ اوپيدايې کړوپه کړوپه دغه (ځمکه ) کې غرونه ثابت (محکم ترڅو ځمکه په اوسېدونکو باندي ونه لړزېږي لکه داچې ﴿ أَن تَمِيدَ بِكُمْ ﴾ اوبيافرمايي ﴿ وَأَنْهَٰرًا ﴾ او ويالې (داوبو رواني ) ﴿ وَمِن كُلِّ ٱلثَّمَرَٰتِ جَعَلَ فِيهَا زَوْجَيْنِ ٱثْنَيْنِ ﴾ اوله هره ډوله مېوو څخه يې پيداکړي دي (ځمکي) کې جوړه دوه يعني نر اوښځه ترڅوله

(۱) دسلفواقوال په سورة الاعراف کې ولولئ طبري ۱۳ / ۹۱

(۲) التسهيل فی علوم التنزيل ۲ / ۱۳۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



حکمت سره سم زياتوالى اووده وکړي (۱) ابوالسعود وايي چي: معنادا چي ددنيا له ټولو مېوو څخه الله پاک دوه ډوله پيدا کړي دي ياخو په رنګ کي لکه تور او سپين او يا په خوند کي لکه خوږ او تريو، ياهم په اندازه کي لکه لوى او ووړ، ياهم په څرنګوالي کي لکه تود او سوړ او داسي نور(۲) ﴿ يُغْشِى ٱلَّيْلَ ٱلنَّهَارَ ﴾ دشپې په تيارې سره ورځ پټوي ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴾ بېشکه مذکوره وو خبروکي خامخا دلائل دقدرت دي لپاره دهغه قوم چي فکر کوي يعني دالله پاک په عجيبه مصنوعاتو کي هغه چاته چي فکر کوي څرګندي نښې او دلائل دي چي دالله په قدرت او وحدانيت ګواهي ورکوي او دغه متفکرين بې ځانګړې ځکه يادکړل ګوياهغه عجائبات چي دغه دلائل ورباندي شاهد دي له فکر کولو پرته څوک پېژندلاى نشي ﴿ وَفِى ٱلْأَرْضِ قِطَعٌ مُّتَجَٰوِرَٰتٌ ﴾ او په ځمکه کي ټوټې دي (مختلفي) څنګ پرڅنګ پيوستي يو له بل سره. ابن عباس رضى الله عنهما وايي چي: خوږه مځکه او تروه ځمکه چي دغه يوه نباتات زرغونوي او دا بله ورسره پيوسته خو هيڅ نه شنه کوي (۳) ﴿ وَجَنَّٰتٌ مِّنْ أَعْنَٰبٍ ﴾ او نور(ډېر) باغونه دي ځمکه کي له انګورو نه ﴿ وَزَرْعٌ وَنَخِيلٌ صِنْوَانٌ وَغَيْرُ صِنْوَانٍ ﴾ او کښتونه (فصلونه) دي او وني دخرماوو دي چي ځيني له يوه بېخه پورته شوى او ځينى ځان ځان ته بېخ لري ﴿ يُسْقَىٰ بِمَآءٍ وَٰحِدٍ وَنُفَضِّلُ بَعْضَهَا عَلَىٰ بَعْضٍ فِى ٱلْأُكُلِ ﴾ چي او به کولى شي په يو ډول او بو سره او غوره کوو ځيني له هغو څخه په ځينو نورو باندي په خوراک (خوند، رنګ کى) طبري وايي چي: يوه ځمکه وي خو په هغه کي زردالو، او ناشپاتي تور او سپين انګور چي ځيني يې خواږه او ځيني تروه وي ځيني يې ترنورو ښه وي سره له دي چي په يوه او به خور او ببېږي (۴) ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴾ بېشکه په دغو مذکوره اشياوو کي دلائل (دقدرت) دي دهغه چا لپاره چي پکي عقل چلوي (دلته په هغو کسانو باندي دترديد وار شوى چي هغوى دغه څه دطبيعت زېږنده بولي) ﴿ وَإِن تَعْجَبْ فَعَجَبٌ قَوْلُهُمْ أَءِذَا كُنَّا تُرَٰبًا أَءِنَّا لَفِى خَلْقٍ جَدِيدٍ ﴾ او که ته تعجب لري (اې محمده! له دې نه چي دوى تا نه مني) نو تردې لاعجيبه داخبره ده چي دوى وايي کله چي موږ خاوري شو آيا شو به موږ خامخا په نوي پيدايښت کي) يعني اې محمده! ددوى انکار له بعث څخه دتعجب وړ دى ځکه هغه ذات چي آسمانونه ځمکي، وني، مېوې او نهرونه يې پيدا کړي دي هغه په دې هم قادر دى چي وروسته له مرګه دوى راپاڅوي ﴿ أُولَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِرَبِّهِمْ ﴾ دوى همغه کسان دي چي په رب خپل کافران شوي دي (له بعث او دالله تعالى

---

(۱) په الظلال تفسير کي سيد قطب رحمه الله تعالى وايي چي: داهسي حقيقت دى چي دا اوس بشر دخپل علمي توان او څېړني په مټه ترلاسه کړي دي هغه دا چي تول ژوندي ساري له نرينه او ښځينه څخه پايي ان تردې چي نباتات هم کوم چي پخوا ګمان کېدو هغوى به له خپله جنسه جوړه نلري اوس څرګنده ده چي هغه هم جوړې ته اړدي او د تذکير او تأنيث اعضا يا خو په يوه ګل کي خوندي او يا هم به مختلفو ونو کي موجود وي. الظلال ۵ / ۷۲

(۲) ابوالسعود ۳ / ۹۷

(۳) الطبري ۱۳ / ۹۷

(۴) نفس المرجع

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



له قدرت څخه منکردي) ﴿ وَأُوْلَٰٓئِكَ ٱلۡأَغۡلَٰلُ فِيٓ أَعۡنَاقِهِمۡۖ ﴾ اوهمدغه (ګمرهان) دي چي داور طوقونه به يې ( په قيامت کي) په غاړو کي وي ﴿ وَأُوْلَٰٓئِكَ أَصۡحَٰبُ ٱلنَّارِۖ هُمۡ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾ اودغه خاوندان (دطوقونو) صاحبان داوردي دوی به تل په دغه اورکي وي ( نه به مړه کېږي اونه به خيني راايستل کېږي ﴿ وَيَسۡتَعۡجِلُونَكَ بِٱلسَّيِّئَةِ قَبۡلَ ٱلۡحَسَنَةِ ﴾ اوژرغواړي دوی له تانه عذاب پخواله روغتيا او سوکالي نه يعني دوی په دنياکي دهغه عذاب چي دوی ته وربانديي تهديد ورکول شوی دمسخروپه توګه سمدستي غواړي ﴿ وَقَدۡ خَلَتۡ مِن قَبۡلِهِمُ ٱلۡمَثُلَٰتُۗ ﴾ حال داچي په تحقيق تېر شوي دي پخوا له دوی نه عذابونه (ددروغجنانوولي دوی تري عبرت اوپندنه آخلي ؟) ﴿ وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو مَغۡفِرَةٖ لِّلنَّاسِ عَلَىٰ ظُلۡمِهِمۡۖ ﴾ اوبېشکه رب ستا خامخادمغفرت څښتن دی خلګوته سره ددوی له ظلمه (ژر عذاب نه ورکوي بلکه مهلت اوخنډ ورکوي ﴿ وَإِنَّ رَبَّكَ لَشَدِيدُ ٱلۡعِقَابِ ﴾ اوبېشکه رب ستا خامخا سخت دی عذاب دده (هغه چاته چي په ګناهونو اصرارکوي اوتوبه نه کاږي الله تعالی دخپل پراخ حلم اوسخت عذاب يادونه يوځای وکړه ترڅوبنده درغبت اورهبت خوف او رجاء ترمينځ وي ﴿ وَيَقُولُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَوۡلَآ أُنزِلَ عَلَيۡهِ ءَايَةٞ مِّن رَّبِّهِۦٓۗ ﴾ اووايي هغه کسان چي کافران شوي دي ولي نه نازلاوه شي په دغه محمد باندي کومه معجزه (چي دده په رښتنولي دلالت وکړي لکه دموسی اوعيسی (عليهما السلام) معجزې په البحر المحيط کي وايي چي : دوی دغه معجزاتي لکه دسپوږمی توټه کېدل، دمبارکوګوتوله مينځ څخه يې اوبه بهېدل، وني ورته راتلل اودرسول الله امرته يې غاړه اينبودل دمعجزوپه توګه نه منل بلکه عناداً يې نوري معجزاتي غوښتي(١) ﴿ إِنَّمَآ أَنتَ مُنذِرٞۖ وَلِكُلِّ قَوۡمٍ هَادٍ ﴾ (بېشکه همدا خبره ده چي ته وېرېدونکی يې اودهر قوم لپاره لاربنوونکی مقرردی) يعني اې محمده! ته نه يې مګر وېرونکی اومبصريې ته دنورو رسولانو په شان يو پيغمبريې هرقوم ته يو پيمغبرشته چي الله ته يې رابولي اوخارق العاده معجزې دالله کاردی چي هغه يې چاته ورکوي ﴿ ٱللَّهُ يَعۡلَمُ مَا تَحۡمِلُ كُلُّ أُنثَىٰ ﴾ الله پوه (عالم) دی په هغه څه چي باراخلي ( په ګېډه) هره ښځه (چي دانارينه ماشوم دی ، که ښځينه ) کامل دی اوکه ناقص ښايسته دی اوکه قبيح المنظره ﴿ وَمَا تَغِيضُ ٱلۡأَرۡحَامُ ﴾ او( الله عالم دی) په هغه څه چي ارحام يې کموي (يعني جنين پخواتريشپږېدلوغورځوي) ﴿ وَمَا تَزۡدَادُۖ ﴾ او( الله عالم دی) په هغه چي زياتوي يې (ترنهومياشتو ) ابن عباس رضی الله عنهما وايي چي ( تغيض الارحام) معناداچي ترنهو مياشتوپه لږه موده کي دجنين وضع کېږي اود(ماتزداد ) معناداچي ترنهومياشتو زياته موده دوضع لپاره په کارشي اوله دي دواړوڅخه يعني له لومړي څخه ناقص مولود اوله دوهم څخه بشپړ کامل الاعضاء مولود مراددی ﴿ وَكُلُّ شَيۡءٍ عِندَهُۥ بِمِقۡدَارٍ ﴾ او هرشی په نزد ددغه ( الله) په اندازه دی چي هغه دمصلحت

---

(١) البحر ۵/ ٣٢٧

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اومنفعت له مخي تجاوزنه کوي ﴿ عَـٰلِمُ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَـٰدَةِ ﴾ پوه دی په پټواوښکاره وو (هغه شيان چي له حواسوپټ او الونياوي اويا هغه چي څرګنداوښکاره وي په ټولوباندي دالله پاک جل جلاله علم محيط دی ﴿ ٱلْكَبِيرُ ٱلْمُتَعَالِ ﴾ دېرلوی ، لوړ اوبرتردی (ترهرشي په خپل قدرت اومنزه دی له سيال اومثال نه ﴿ سَوَآءٌ مِّنكُم مَّنْ أَسَرَّ ٱلْقَوْلَ وَمَن جَهَرَ بِهِۦ ﴾ (يوشان دی له تاسونه (دالله علم ته) هرهغه څوک چي خبره پټوي اوهرهغه څوک چي ښکاره کوي داخبره) يعني په زړه کي په پټو خبرو اوپه ژبه څرګندو خبروتولوباندي الله عالم دی ﴿ وَمَنْ هُوَ مُسْتَخْفٍۭ بِٱلَّيْلِ وَسَارِبٌۢ بِٱلنَّهَارِ ﴾ اوهرهغه څوک چي هغه په شپه کي پټېدونکی دی اوهرهغه څوک چي هغه ظاهرونکی (دخپل عمل دی) په ورځ کي يعني همداراز يوشان دي دالله پوهي ته هغه کسان چي خپل کړه وړه په توره شپه کي پټوي اوهغه چي په رڼا ورځ په لاره څرګندتلونکي دي هغه کارچي کوي يې نه يې پټوي ﴿ لَهُۥ مُعَقِّبَـٰتٌ ﴾ انسان لره ملائکي دي نوبت په نوبت راتلوني) يعني دغه انسان لره ساتندويه ملائکي دي چي يوپه بل پسي ورته رادرومي اولکه په حکومتي دائروکي ساتونکي پوليس غوندي ﴿ مِّنۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِۦ ﴾ دمخي له طرفه ددغه (انسان اودشاله طرفه ددغه (انسان) ﴿ يَحْفَظُونَهُۥ مِنْ أَمْرِ ٱللَّهِ ﴾ چي دده ساتنه کوي دالله په حکم سره ؛ له مشکلاتو اوربړونو څخه يې ژغوري. مجاهدوايي چي هريوه تن لره ملائک شته چي هغه يې په وينه اوخوب کي له پېريانو ، انسانانواوخزنده ګانوڅخه ساتي (۱) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتَّىٰ يُغَيِّرُوا۟ مَا بِأَنفُسِهِمْ ﴾ ببشکه الله نه بدلوي حالت دهيڅ قوم ترهغه پوري چي دوی بدل کړي هغه ښه حالت چي په نفسونو ددوی کي وي يعني الله پاک له هيڅ قوم څخه خپل نعمت نه اخلي ترڅوچي دوی يې پخپله په ځانونه دروي اوخپل ښه حالت په قبيح اوبد حالت بدل نکړي اودغه الهي سنت چي کوم نعمت اوعافيت ، سوکالي اوعزت يې په چالورولی وي ترهغويې ځيني بيرته نه اخلي څودوی ددغو نعمتونو کفران ونکړي اوعصيان ته ملاونه تړي په اثرکي راځي: چي الله پاک دبني اسرائيلو کوم يونبي ته داسي وحی وکړه چي قوم ته ووايه چي هيڅ کلی اوکورنشته چي يوځل طاعت کوي اوبيامعصيت ته مخه کړي مګرداچي الله هغه څه چي دوی ورسره مينه لري په هغه څه وربدلوي کوم چي دوی ځني کرکه اونفرت کوي ﴿ وَإِذَآ أَرَادَ ٱللَّهُ بِقَوْمٍ سُوٓءًا فَلَا مَرَدَّ لَهُۥ ﴾ اوکله چي اراده وکړي الله په کوم قوم باندي دبدي (عذاب اوهلاک) نونشته بيرته ګرزېدل دهغه يعني هيڅوک يې ګرزولی نشي ﴿ وَمَا لَهُم مِّن دُونِهِۦ مِن وَالٍ ﴾ اونشته دوی لره هيڅوک يې له الله څخه مددګار (چي عذاب اوبلاځني دفع کړي) ﴿ هُوَ ٱلَّذِى يُرِيكُمُ ٱلْبَرْقَ ﴾ (دغه (الله) هغه ذات دی چي دربښيي تاسي ته برېښنا) دغه دالله جل جلاله دقدرت داغيزو بيان دی چي ای خلګوالله هغه ذات دی چي تاسوته په وريځوکي برېښنادربښيي ﴿ خَوْفًا وَطَمَعًا ﴾

(۱) الطبري ۱۳ / ۱۱۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دپاره دخوف ( وېرې ) اوامید(دګټې) ابن عباس رضی الله عنهماوايي : چې وېره له تکې اوتندرڅخه اوهیله دباران ده (¹) څکه چې برېښناغالباترتندر له مخې راځي اوکله کله تربرېښنااوروسته بیا په شېبوشېبو باران وورېږي هغه چې دانسانانو اوحیوانانو ژوند ورباندې ولاړوي ﴿ وَيُنشِئُ ٱلسَّحَابَ ٱلثِّقَالَ ﴾ او راپورته کوي په اوبودرنې ورېځې ﴿ وَيُسَبِّحُ ٱلرَّعْدُ بِحَمْدِهِۦ وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ مِنْ خِيفَتِهِۦ ﴾ اوتسبیح وايي رعد سره له ثناددغه (الله) اوتسبیح وايي نوري ګردي پرښتې له وېرې ددغه ( الله ) د(عذاب) درعدتسبیح ویل هغه حقیقت دی چې قرآنکریم ورباندې دلالت کوي نوموږ په هغه ایمان لروکه څه هم په دغو اصواتو اوغږونو موږ نه پوهېږو الله پاک پرته له حق څیزنه په بل شي اخبارنه کوي لکه فرمايي: ﴿ وَإِن مِّن شَىْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِۦ ﴾ (بیاالله تعالی فرمايي ) ﴿ وَيُرْسِلُ ٱلصَّوَٰعِقَ فَيُصِيبُ بِهَا مَن يَشَآءُ ﴾ اولېږي الله تندرونه رسوي (غورځوي) دغه تندرونه ) پرهغه چاچې اراده وفرمايي (الله دهلاکت يې) ﴿ وَهُمْ يُجَٰدِلُونَ فِى ٱللَّهِ ﴾ (حال داچې دغه خلک جګړې کوي دالله په شان کې ) یعني دمکې کفاردالله په وجود، وحدانیت اودبیرته راپاڅولو دقدرت په هکله جګړې کوي ﴿ وَهُوَ شَدِيدُ ٱلْمِحَالِ ﴾ حال داچې الله سخت دی عقوبت دده (په هغه چاچې دده نافرماني کوي الله له هغه څخه په انتقام اوغچ اخیستلوقادراودالله نیول ډېرسخت دي ﴿ لَهُۥ دَعْوَةُ ٱلْحَقِّ ﴾ خاص همدغه الله ته دی بلنه دحق یعني یوازې الله ددې وړ اومستحق دی چې عبادت يې وکړی شي اوورڅخه هیله اوامیدترسره شي ﴿ وَٱلَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِهِۦ لَا يَسْتَجِيبُونَ لَهُم بِشَىْءٍ ﴾ اوهغه کسان چې بلنه (عبادت کوي کفاردهغوی) بې له دغه (الله) څخه نه قبلوي دوی دغوبلونکوله په هیڅ شي سره ) یعني بلنه يې نه اوري ﴿ إِلَّا كَبَٰسِطِ كَفَّيْهِ إِلَى ٱلْمَآءِ لِيَبْلُغَ فَاهُ وَمَا هُوَ بِبَٰلِغِهِۦ ﴾ مګرداسي قبلول لکه قبلول دغځونکي د دواړو لاسونو غوړونکی دارغوبو خپلو داوبو لورته (په کوهي کې يې له رسئ اوبو کې ) دپاره ددې چې دغه اوبه دده خولې ته ورشي حال داچې نه دي دغه اوبه رسېدونکې خولې دده ته ) یعني ددی دغه قبلول داسې دي لکه چې یوڅوک اوبوته لپه ورغزوي او ورته چیغې وهي چې دغه اوبه يې خولې ته را ورسېږي اوبه خوجماد دی احساس نلري اونه اوري. ابوالسعودوايي چې: دمشرکانوحال يې چې ددوی بتان ددوی سوال نشي اورېدلی اومنلی له هغه تږي سره یورنګه مشابه بیان کړهغه چې سخته تنده ورباندې راغلې وي، نه پوهېږي څه وکړي ؟ کله خولاسونه وغځوي اوغواړي چې اوبه يې خولې ته راورسېږي مګراوبه خوجمادی دده په تنده هډو خبري هم نه دي (²) ﴿ وَمَا دُعَآءُ ٱلْكَٰفِرِينَ إِلَّا فِى ضَلَٰلٍ ﴾ اونه ده دعادکافرانو (بتانوله) مګرپه زیان کې ده بتان دوی ته ګټه نه رسوي ﴿ وَلِلَّهِ يَسْجُدُ مَن فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ اوخاص (یوازې) الله ته سجده کوي

---

(¹)زادالمسير ۴ / ۳۱۳
(²)ابوالسعود۳ / ۱۰۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



هرهغه څوک چي په آسمانونو کي دی اوهغه چي په ځمکه کي دی ﴿ طَوْعًا وَكَرْهًا ﴾ (خپني ) په خوښه او(خپني ) په زور، حسن بصري رحمه الله وايي چي: مؤمن پخپله خوښه سجده کوي اوکافرپه ناخوښه کله چي مجبورشي او ووېرېږي ﴿ وَظِلَـٰلُهُم بِٱلْغُدُوِّ وَٱلْـَٔاصَالِ ﴾ او(سجده کوي) سيوری ددغو(مخلوقاتو) په سبا اوبېګاه کي ؛ له دې څخه غرض دالله جل جلاله عظمت اوسلطان څرګندول دي چي ګرده کائنات هغه ته منقاددي آن تردې چي دبنيادمانو سيوري هم الله ته سبابېګاه سجده کوي اودالله امرمنونکي دي ﴿ قُلْ مَن رَّبُّ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ ووايه ( ای محمده ! دوی ته) څوک دی پالونکی دآسمانونو اوځمکي (چي داموراتو تدبير کوي ؟) دلته پوښتنه دتهکم په توګه شوي ده چي په دوی باندي استهزاء کول دي ځکه دوی خودبتانو عبادت کاوو ﴿ قُلِ ٱللَّهُ ﴾ ووايه (ای محمده !) چي الله دی ؛ يعني دوی ته دتبکيت اوتوبيخ په توګه ووايه چي الله يې پيداکونکی دی بل څواب نشته ﴿ قُلْ أَفَٱتَّخَذْتُم مِّن دُونِهِۦٓ أَوْلِيَآءَ لَا يَمْلِكُونَ لِأَنفُسِهِمْ نَفْعًا وَلَا ضَرًّا ﴾ ووايه ( ای محمده !دوی ته کله چي تاسي پره شوی) نوآياپس تاسي نيولي پرته له الله څخه دوستان چي دوی اختيارنلري لپاره دځانونو خپلو دڅه ګټي رسولو اويادڅه زيان دفع کولو ) يعني دغه دالزام حجت په توګه ورته ووايه چي دوی دځان لپاره نفع اوضرر په واک کي نلري نودبل چالپاره به څه وکړي ؟﴿ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي ٱلْأَعْمَىٰ وَٱلْبَصِيرُ أَمْ هَلْ تَسْتَوِي ٱلظُّلُمَـٰتُ وَٱلنُّورُ ﴾ ووايه (ای محمده ! دوی ته) آيابرابردی ړوند اوليدونکی بلکه آيابرابري دي تياري اورڼا ) دغه دغيرالله دعبادت لپاره يوتمثيل دی،له ړانده څخه مقصد کافراوله بيناڅخه مؤمن دی،تاريکي دګمراهي څخه عبارت اورڼا دهدايت څلاده يعني لکه چي دغه سره برابرنه دي همداسي مؤمن اوکافرهم يوشانته نه دي دضلالت اودهدايت رڼاسره نه پرتله کېږي ددوی ترمينځ فرق اوبېلتون خوراڅرګندی دی لکه دړانده اوبيناترمينځ اويادرڼااو تياروترمينځ ﴿ أَمْ جَعَلُوا۟ لِلَّهِ شُرَكَآءَ خَلَقُوا۟ كَخَلْقِهِۦ فَتَشَـٰبَهَ ٱلْخَلْقُ عَلَيْهِمْ ﴾ آياګرزولي دوی الله لره شريکان چي پيداينښت يې کړی دی په شان دپيداکولو ددغه (الله) نوبياپردوی باندي مشتبه شول (پيداکول دشريکانو ) له پيداينښت دالله (سره) ؟دغه دحجت وروستی پړاو اوپردوی باندي تمسخردی چي: آيادغومشرکانو داسي کسان په خدايي اوألوهيت منلي چي هغوی هم دالله په شان مخلوقات پنځولي دي اوبياپردوی باندي دغه ورک شوی چي دالله مخلوقات کوم دي اودبتانو کوم دي؟ دغه يوداسي غائب برېښوونکی تهکم دی ځکه دوی پخپله هم داسي عقيده لري چي ټول څيزونه الله پاک پيداکړي دي اودغه بتان هيڅ شی هم نشي پيداکولای خوله دې ټولوسره سره بياهم دوی يې عبادت کوي اوهمدغه دمشرکانودسپک عقل اوناپوهي څرګنده نښه ده اوکله چي پردوی باندي حجت راوړل شونوبې داسي ښکاره بيان وفرمايل: ﴿ قُلِ ٱللَّهُ خَـٰلِقُ كُلِّ شَىْءٍ وَهُوَ ٱلْوَٰحِدُ ٱلْقَهَّـٰرُ ﴾ ووايه ( ای محمده ! دوی ته) خاص الله پيداکونکی دهرڅېزدی اوهم دی دی يو، قوي غالب (په هرڅېزاوهرچا ) يعني الله پاک دهرڅه پيداکونکی دی بل څوک خالق نشته الله پاک په ربوبيت اوألوهيت کي واحد اومنفرددی الله په هرڅه باندي زورور اوټول شيان دالله ترقدرت اوقهرلاندي دي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



بلاغت:

پدې مبارکوآیتونو کې دبدیع اوبیان ښکلاوې دادي:

۱- ﴿ تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْكِتَٰبِ ﴾ دلته له نژدې څخه دلیرې اشاره شوې ده اوهغه یې دشان دلوړتیااو درتبې داوچتوالي په سبب کړې او(الف لام) په کتاب کلمه کې دتفخیم لپاره راوړل شوې یعنې هغه عجیب کتاب چې اعجاز اوبیان یې خورالوړدی.

۲- تبعیه استعاره په دې کلماتوکې چې فرمايي: ﴿ يُغْشِى ٱلَّيْلَ ٱلنَّهَارَ ﴾ دلته یې دورځې دروښنايي تلل دشپې په تیاروسره له یوپنډ پوښ سره مشابه ګڼلې او د(یغشي) لفظ یې ورته استعاره کړدی دی اولکه څرنګه چې حسي شیان په برغولي پوښل کېږي همداسې یې دمعنوي شیانولپاره استعاره راوړې ده.

۳- پدې کلماتوکې چې فرمايي: ﴿ تَغِيضُ ٱلْأَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ ﴾ او ﴿ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ ﴾ او ﴿ خَوْفًا وَطَمَعًا ﴾ او ﴿ طَوْعًا وَكَرْهًا ﴾ پدې ټولوکې دطباق صنعت چې دبدیعي لفظي صنایعوڅخه ګڼل کېږي راغلی دی.

۴- ایجازبالحذف پدې کلام کې چې: ﴿ قُلِ ٱللَّهُ ﴾ اوبشپړ کلام داسې دی چې: ( قل الله خالق السموات والارض).

۵- تمثیلي تشبیه چې فرمايي: ﴿ كَبَٰسِطِ كَفَّيْهِ ﴾ دلته یې دبتانوپه عدم استجابت باندې دهغه چاتشبیه وکړه چې له لیرې واټن څخه اوبوته لپه نیسې چې خولې ته یې راورسېږي خوهغه نه راځي نودشبه وجه له متعددڅخه راایستل شوې ده.

۶- پدې قول کې چې فرمايي: ﴿ هَلْ يَسْتَوِى ٱلْأَعْمَىٰ وَٱلْبَصِيرُ أَمْ هَلْ تَسْتَوِى ٱلظُّلُمَٰتُ وَٱلنُّورُ ﴾ دلته یې ظلمات اونوردکفراوایمان لپاره استعاره کړې اوهمداراز ړوند دمشرک لپاره اوبینا دمؤمن لپاره مستعارشوې دی.

تنبیه:

ملائکواوپرښتوته (معقبات) وویل شوه دوی په نوبت دخلګوبندګانو اعمال په شپه او ورځ کې څارې لکه په بخاري شریف کې یوحدیث راځي فرمايي: چې دوی ته پرښتې په شپه اوپرښتې په ورځ کې په نوبت رادرومي اودسهار، مازیګر په لمنځونوکې سره یوځای کېږي.

فائده:

له ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت کېږي چې کله به رسول الله صلی الله علیه وسلم دتالندې غږ واورېدو ویل به یې: سبحان من یسبح الرعد بحمده والملائکة من خیفته وهوعلی کل شئ قدیر) اوابوهریرة رضی الله عنه به ویل: که چاڅغه کلماتې لوستلې خوبیاهم ورباندې تندر(ټکه) ولوېده دهغه ددیت زه پوروړی یم.

***

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



الله تعالی فرمايي:

﴿ أَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَسَالَتْ أَوْدِيَةُۢ بِقَدَرِهَا فَٱحْتَمَلَ ٱلسَّيْلُ زَبَدًا رَّابِيًا ۚ وَمِمَّا يُوقِدُونَ عَلَيْهِ فِى ٱلنَّارِ ٱبْتِغَآءَ حِلْيَةٍ أَوْ
مَتَٰعٍ زَبَدٌ مِّثْلُهُۥ ۚ كَذَٰلِكَ يَضْرِبُ ٱللَّهُ ٱلْحَقَّ وَٱلْبَٰطِلَ ۚ فَأَمَّا ٱلزَّبَدُ فَيَذْهَبُ جُفَآءً ۖ وَأَمَّا مَا يَنفَعُ ٱلنَّاسَ فَيَمْكُثُ فِى ٱلْأَرْضِ ۚ كَذَٰلِكَ
يَضْرِبُ ٱللَّهُ ٱلْأَمْثَالَ (١٧) لِلَّذِينَ ٱسْتَجَابُوا۟ لِرَبِّهِمُ ٱلْحُسْنَىٰ ۚ وَٱلَّذِينَ لَمْ يَسْتَجِيبُوا۟ لَهُۥ لَوْ أَنَّ لَهُم مَّا فِى ٱلْأَرْضِ جَمِيعًا
وَمِثْلَهُۥ مَعَهُۥ لَٱفْتَدَوْا۟ بِهِۦٓ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمْ سُوٓءُ ٱلْحِسَابِ وَمَأْوَىٰهُمْ جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ ٱلْمِهَادُ (١٨) ۞ أَفَمَن يَعْلَمُ أَنَّمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن
رَّبِّكَ ٱلْحَقُّ كَمَنْ هُوَ أَعْمَىٰٓ ۚ إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُو۟لُوا۟ ٱلْأَلْبَٰبِ (١٩) ٱلَّذِينَ يُوفُونَ بِعَهْدِ ٱللَّهِ وَلَا يَنقُضُونَ ٱلْمِيثَٰقَ (٢٠) وَٱلَّذِينَ يَصِلُونَ مَآ أَمَرَ
ٱللَّهُ بِهِۦٓ أَن يُوصَلَ وَيَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ وَيَخَافُونَ سُوٓءَ ٱلْحِسَابِ (٢١) وَٱلَّذِينَ صَبَرُوا۟ ٱبْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ وَأَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَأَنفَقُوا۟
مِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً وَيَدْرَءُونَ بِٱلْحَسَنَةِ ٱلسَّيِّئَةَ أُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمْ عُقْبَى ٱلدَّارِ (٢٢) جَنَّٰتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا وَمَن صَلَحَ مِنْ ءَابَآئِهِمْ
وَأَزْوَٰجِهِمْ وَذُرِّيَّٰتِهِمْ ۖ وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِم مِّن كُلِّ بَابٍ (٢٣) سَلَٰمٌ عَلَيْكُم بِمَا صَبَرْتُمْ ۚ فَنِعْمَ عُقْبَى ٱلدَّارِ (٢٤) وَٱلَّذِينَ يَنقُضُونَ
عَهْدَ ٱللَّهِ مِنۢ بَعْدِ مِيثَٰقِهِۦ وَيَقْطَعُونَ مَآ أَمَرَ ٱللَّهُ بِهِۦٓ أَن يُوصَلَ وَيُفْسِدُونَ فِى ٱلْأَرْضِ ۙ أُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمُ ٱللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوٓءُ ٱلدَّارِ
(٢٥) ٱللَّهُ يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ لِمَن يَشَآءُ وَيَقْدِرُ ۚ وَفَرِحُوا۟ بِٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَمَا ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَا فِى ٱلْءَاخِرَةِ إِلَّا مَتَٰعٌ (٢٦) وَيَقُولُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟
لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْهِ ءَايَةٌ مِّن رَّبِّهِۦ ۗ قُلْ إِنَّ ٱللَّهَ يُضِلُّ مَن يَشَآءُ وَيَهْدِىٓ إِلَيْهِ مَنْ أَنَابَ (٢٧) ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَتَطْمَئِنُّ قُلُوبُهُم
بِذِكْرِ ٱللَّهِ ۗ أَلَا بِذِكْرِ ٱللَّهِ تَطْمَئِنُّ ٱلْقُلُوبُ (٢٨) ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ طُوبَىٰ لَهُمْ وَحُسْنُ مَـَٔابٍ
(٢٩) كَذَٰلِكَ أَرْسَلْنَٰكَ فِىٓ أُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهَآ أُمَمٌ لِّتَتْلُوَا۟ عَلَيْهِمُ ٱلَّذِىٓ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ وَهُمْ يَكْفُرُونَ بِٱلرَّحْمَٰنِ ۚ قُلْ هُوَ
رَبِّى لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ مَتَابِ (٣٠) وَلَوْ أَنَّ قُرْءَانًا سُيِّرَتْ بِهِ ٱلْجِبَالُ أَوْ قُطِّعَتْ بِهِ ٱلْأَرْضُ أَوْ كُلِّمَ بِهِ
ٱلْمَوْتَىٰ ۗ بَل لِّلَّهِ ٱلْأَمْرُ جَمِيعًا ۗ أَفَلَمْ يَا۟يْـَٔسِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَن لَّوْ يَشَآءُ ٱللَّهُ لَهَدَى ٱلنَّاسَ جَمِيعًا ۗ وَلَا يَزَالُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟
تُصِيبُهُم بِمَا صَنَعُوا۟ قَارِعَةٌ أَوْ تَحُلُّ قَرِيبًا مِّن دَارِهِمْ حَتَّىٰ يَأْتِىَ وَعْدُ ٱللَّهِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُخْلِفُ ٱلْمِيعَادَ (٣١) وَلَقَدِ ٱسْتُهْزِئَ
بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ فَأَمْلَيْتُ لِلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ثُمَّ أَخَذْتُهُمْ ۖ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ (٣٢) أَفَمَنْ هُوَ قَآئِمٌ عَلَىٰ كُلِّ نَفْسٍۭ بِمَا كَسَبَتْ ۗ
وَجَعَلُوا۟ لِلَّهِ شُرَكَآءَ قُلْ سَمُّوهُمْ ۚ أَمْ تُنَبِّـُٔونَهُۥ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِى ٱلْأَرْضِ أَم بِظَٰهِرٍ مِّنَ ٱلْقَوْلِ ۗ بَلْ زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مَكْرُهُمْ
وَصُدُّوا۟ عَنِ ٱلسَّبِيلِ ۗ وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِنْ هَادٍ (٣٣) لَّهُمْ عَذَابٌ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ۖ وَلَعَذَابُ ٱلْءَاخِرَةِ أَشَقُّ ۖ وَمَا لَهُم مِّنَ ٱللَّهِ
مِن وَاقٍ (٣٤) ﴾ الرعد: ١٧ ـ ٣٤

**مناسبت او تړاو:** کله چي الله تعالی په تېرو آيتونو کي يادونه وکړه چي بلني او دعوتونه دوه ډوله دي يو دحق دعوت او بل دباطل هغه چي الله ته دعوت او بلنه کېږي هغه حق او کوم چي دبتانو په لوري بلنه وي هغه دباطل دعوت دی نو دلته الله دداوړو ډلو لپاره مثالونه راوړل چي دحق او دحق د پلويانو مثال

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اودباطل اودهغوی ددلي مثال ترڅودهدایت اوضلالت توپیروشي اوسمه اوکره لاره سره بېل شي بیابې دمؤمنانوابدي هستوګنځی جنت اودکافرانوتل ترتله د اوسېدلوځای دوزخ بیان کړ.

**لغتونه**: ( زبدا) هغه چي سېلاب يې په سر راوړي ( رابیا) لوړ پرسېدلی (جفآء) ورکېدونکی هغه چي بقانلري (¹) ویل کېږي اوبو په سراخیستی کله چي بیاپوپناشي ( المهاد) دپرېوتلولپاره تیارشوی ځای (یدرؤن) دوی دفع کوي (عقبی) آخرت اوجزاته ځکه عاقبت وايې چي هغه هم له فعل څخه وروسته راځي (عدن) تل ترتله ثابت ته ویل کېږي ( عدن بالمکان) کله چي په یوځای کي اقامت غوره کړي (یبسط) پراخوي (یقدر) تنګوي( متاع) هرهغه څه چي تریوې تاکلي مودې څني کاراخیستل کېږي اوبیاورکېږي (طوبی) خوښي ته وايې. زمخشري لیکي: چي دغه دطاب مصدراولکه (بشری) او(زلفی) غوندي راغلی اومعنایې داچي خیراوپاکیزګي ته ورسېدو (یأس) له یوشي څخه ناهیلي کېدل (أملیت) مهلت مي ورکړ (واق) له (وقی) څخه اسم فاعل اوساتونکي دفع کونکي ته وايې.

**دنزول سبب**:

ابن عباس رضی الله عنهماوايې: چي دغه دقریشي کفاروپه هکله نازل شوی دی کله چي رسول الله صلی الله علیه وسلم دوی ته وفرمایل: ﴿ اَسْجُدُوا لِلرَّحْمَٰنِ قَالُوا وَمَا الرَّحْمَٰنُ أَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا ؟ ﴾ نوالله پاک دا آیتونه نازل کړل چي: ﴿ وَهُمْ يَكْفُرُونَ بِالرَّحْمَٰنِ قُلْ هُوَ رَبِّي لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ مَتَابِ ﴾ (²)

**تفسیر**:

﴿ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً ﴾ نازلي کړي دي ( الله) له آسمانه اوبه (باران) ﴿ فَسَالَتْ أَوْدِيَةٌ بِقَدَرِهَا ﴾ نووبهېدل خوړونه په اندازه (دپراخي ددوی ) سره یعني وړوکي پخپله اندازه سره اوسترپخپله اندازه ﴿ فَاحْتَمَلَ السَّيْلُ زَبَدًا رَّابِيًا ﴾ نوپه سرواخیست داسېلاب ځګ اوچت شوی ؛ داهغه څه دي چي سېلاب يې په سر راوړي خپري اوځګ داوبوپه سر اوچت وي. طبري وايې چي: داهغه مثال دی چي الله يې دحق اوباطل ایمان اوکفرلپاره بیانوي چي دحق دټینګار اوثبات اودباطل دورکېدو اوپناکېدلو ځرګندوی وي داوبوهغه مثال چي الله يې له آسمانه ځمکي ته را اوروي اوبیاسېلابونه ترې جوړ او د هغوپه سر ځګ راوپرسېږي نواوبه لکه هغه حق غوندي په ځمکه کي تل پاتي وي اوځګ هغسي باد یوسي دغه دهیڅاپه ګټه هم نه دي اودغه یومثال له دوو مثالونو دحق اوباطل څخه دی دوهم داچي: ﴿ وَمِمَّا يُوقِدُونَ عَلَيْهِ فِي النَّارِ ابْتِغَاءَ حِلْيَةٍ أَوْ مَتَاعٍ زَبَدٌ مِّثْلُهُ ﴾ اوله هغوشیزونو چي بلوي پرې ( داخلق لمبې اوویلي کوي پرې ) په اورکي لپاره دطلب دګاڼې اونورسامانونه ځګ په شان دهغه (ځګ) دی یعني له هغوکانونو څخه چي هغه لکه سره زر سپین زر، قلعي اونوردي هغه چي خلګ ترې ګاڼې اولوښي جوړوي اوځني ګټه اخلي هغوی ته هم داسي ځګ شته لکه چي تېرشواوهمداسي يې پردغه ځګ هم لکه دسېلاب په ځګ

(¹) البحر ۵ / ۳۸۲
(²) اسباب النزول ۱۷۵ القرطبی ۹ / ۳۱۸

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


ځوک کټه اخیستلای نشي ﴿ كَذَٰلِكَ يَضْرِبُ اللَّهُ الْحَقَّ وَالْبَاطِلَ ﴾ په مثل ددې (مذکوره مثالونو) بیانوي الله (مثالونه) دحق اوباطل ؛ نومثال دحق په ثبات اوټینګارکي داوبوپه شان دی هغه چي صافي پاکي په ځمکه کي زېرمه کېږي اوخلګ ځیني ګټي اخلي اودباطل مثال دځګ اوخیري په شان دی چي په هواکي الوزي اودهیڅچاپه دردنه خوري ، بلکه ورکېږي ﴿ فَأَمَّا الزَّبَدُ فَيَذْهَبُ جُفَاءً ﴾ نوهرڅه چي ځګ اوخیري وي نو ولاړشي په دغه حال کي چي له نظره پرېوتی وي ؛ دخوږ داوړو لوروته تیت او ووشیندل شي ﴿ وَأَمَّا مَا يَنفَعُ النَّاسَ فَيَمْكُثُ فِي الْأَرْضِ ﴾ اوهرهغه څیزچي خلګوته ګټه رسوي (له صافواوبواو خالص فلزاتو نوپه ځمکه کي پاتي کېږي (دګټي لپاره ) ﴿ كَذَٰلِكَ يَضْرِبُ اللَّهُ الْأَمْثَالَ ﴾ همداسي الله مثالونه بیانوي ,دحق اوباطل هدایت اوګمراهي لپاره ترڅوخلګ پنداوعبرت واخلي (۱)﴿ لِلَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمُ الْحُسْنَىٰ ﴾ شته لپاره دهغوکسانوچي حکم قبول کړی دی دوی درب خپل جزانېکه (چي جنت اودنعمتونوکوردی ) ﴿ وَالَّذِينَ لَمْ يَسْتَجِيبُوا لَهُ ﴾ اوهغه کسان چي دوی نه وي قبول کړی حکم ددغه (الله) یعني ایمان یې نه وي راوړی کفاروي ﴿ لَوْ أَنَّ لَهُم مَّا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا ﴾ که چېري وي دوی ته هرهغه څه چي دي په ځمکه کي ټول (له مالونو) ﴿ وَمِثْلَهُ مَعَهُ ﴾ اونورهم وي په مثل ددوی له دې سره ﴿ لَافْتَدَوْا بِهِ ﴾ نوخامخابه دوی په هغوفدیه ورکړي (لپاره دځان خلاصولو له عذابه نونه به خلاصېږي له عذابه) ﴿ أُولَٰئِكَ لَهُمْ سُوءُ الْحِسَابِ ﴾ دغه کسانوته مقرردی بدعذاب. حسن بصري رحمة الله وایې چي: ددوی دټولوګناهونو محاسبه به کېږي هیڅ بخښنه به ورته نه کېږي ﴿ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴾ اوځای داستوګني ددوی دوزخ دی اوبدځای دآرام دی (دغه دوزخ) ﴿ أَفَمَن يَعْلَمُ أَنَّمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ الْحَقُّ كَمَنْ هُوَ أَعْمَىٰ ﴾ (آیانوهغه ځوک چي پوهېږي پدې خبره چي بېشکه هغه (قرآن ) چي تاته نازل کړی شوی دی له طرفه درب ستاحق دی په مثل دهغه ړانده چي دی ړندوي ؟) دلته همزه دانکاري استفهام لپاره ده یعني آیاهغه کسان چي ایمان یې راوړی په هغه کتاب چي په تارانازل شوی دی له هغه چاسره برابردي چي په توره تیاره کي لالهاند او ړوند ګوندي وي لکه ابوجهل ؟ دلته مراد له ړندوالي څخه دزړه دسترګو ړندوالی دی. ابن عباس رضی الله عنهما وایې چي: دغه آیت شریف دحضرت حمزه

(۱) شهید سید قطب رحمه الله په خپل فی ظلال القرآن تفسیرکي لیکي چي همداسي موږ دحق اوباطل له مثال سره دتلپاتي دعوت اوسمدستي پناه کېدونکي بلني مثال ګورو بېشکه له آسمانه اوبه را واوري اوخوړونه ډک روان شي دلاري په اوږدوکي ځګ په سر واخلي هغه یوداسي پړسېدلی ډومبک وي خوله پوکي سره الوزي اوبه همداسي ترې لاندي هواري روانې وي داهغه اوبه دي چي له خیراوبرکت څخه یوه پیمانه دي همداسي دکانونو مثال دی چي ویلی کېږي اوپسول ګانه څني جوړېږي اوپه دې پراوونو کي یې کوټ راوزي هسي له مینځه درومي اوکان هماغسي پاک ستره پاتي وي همدغه دحق اوباطل مثال دی باطل به سر راواچتوي هغه به پړسوب کوي خوسمدستي به ورکېږي دهیڅچاپه بنه به نه ورځي اوحق به تل آرام په ځمکه کي لکه داوبوپه شان، یانبایسته معدنونه خوندي اودهرچاد ګټي اخیستلو به وروي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


رضی الله عنه او ابوجهل په باب رانازل شوی دی ﴿إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُوْلُواْ ٱلْأَلْبَٰبِ﴾ بېشكه خبره همداده چې
پندآخلي (په آيتونو دالله) خاوندان د(سليمو) عقلونو، بيا الله پاک يې صفتونه هسې بيانوي چې
﴿ٱلَّذِينَ يُوفُونَ بِعَهْدِ ٱللَّهِ﴾ هغه كسان چې دالله په عهد وفا كوي يعني دالله اوامر او نواهي مني هغه چې
الله خپل بندګان ورباندې مكلف كړيدي ﴿وَلَا يَنقُضُونَ ٱلْمِيثَٰقَ﴾ او نه ماتوي دوی هغه ټينګ عهد؛ كوم
چې دوی پرځان منلی اود الله او بندګانو ترمينځ تړون دی ﴿وَٱلَّذِينَ يَصِلُونَ مَآ أَمَرَ ٱللَّهُ بِهِۦٓ أَن يُوصَلَ﴾ او هغه
كسان چې وصل كوي هغه چې حكم كړی دی الله په هغه سره داسې چې وصل دې شي يعني دوی
دارحاموصله (دخپلوي پالنه) ساتي كوم چې الله يې په ساتلو امر كړی دی ﴿وَيَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ وَيَخَافُونَ سُوٓءَ
ٱلْحِسَابِ﴾ او وېرېږي دوی له عذابه درب خپل او خوف كوي له بده حسابه؛ يعني دوی له دې وېرېږي چې
بده محاسبه به ورسره وشي او اورته به بې وغورځوي نو دوی له همدې وېرې دالله طاعت ته لېځې
رانغاړلي اود حدودو يې پوره پوره ساتنه كوي ﴿وَٱلَّذِينَ صَبَرُواْ ٱبْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ﴾ او هغه كسان چې
صبر كوي (په تكليفونو) دخپل رب درضا دغوښتنې لپاره ﴿وَأَقَامُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَأَنفَقُواْ مِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ سِرًّا
وَعَلَانِيَةً﴾ او قائموي (سم اداكوي سره له ټولو حقوقو) لمونځ او نفقه كوي ځينې له هغو مالونو چې مونږ
دوی ته وركړي دي هم په پټه او هم په ښكاره ﴿وَيَدْرَءُونَ بِٱلْحَسَنَةِ ٱلسَّيِّئَةَ﴾ (او دفع كوي دوی په نېكي
سره بدي) يعني دوی دجهل مقابله په حلم سره او رېړونه تكاليف په صبر سره ګالي. ابن عباس رضی الله
عنه وايي: چې دوی په نېک او صالح عمل سره دبد عمل دفع كوي([1]) دلته ﴿وَيَدْرَءُونَ﴾ د(ويفعلون) په
په معنا آخلي او په حديث شريف كې راځي: (واتبع السيئة الحسنة تمحها) په بدي پسې نېكي ترسره
كړه چې هغه ومينځي ﴿أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمْ عُقْبَى ٱلدَّارِ﴾ دغه كسان (موصوفين) شته دوی ته ښه عاقبت ددار د
آخرت (چې جنتونه دي) او دغه دول تفسيرېږي پدې قول دالله كې راغلی چې فرمايي: ﴿جَنَّٰتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا
وَمَن صَلَحَ مِنْ ءَابَآئِهِمْ وَأَزْوَٰجِهِمْ وَذُرِّيَّٰتِهِمْ﴾ چې جنتونه دي دتل اوسېدلو چې ننوزي به دوی په هغو كې
او (هم) هغه څوک چې صالح (مؤمن) وي له پلرونو ددوی او له ښځو ددوی او له اولادې ددوی (ترڅو چې
دوی يې په وصال او ملاقات خوښ شي كه څه هم چې دغه وروستني دداسې لوړو درجاتو وړ او مستحق
نه وي خو د رومبنيو داكرام له كبله به يې الله دغو پوړيو ته ورسوي او دغه په دې مؤمنانو باندې دالله
فضل دی او ددوی لپاره يو بل اكرام هم شته هغه داچې: ﴿وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِم مِّن كُلِّ بَابٍ﴾ او پرښتې به
ورننوزي پردوی (دمباركي ويلو لپاره) له هري دروازې (دجنت څخه او وايي به ورته) ﴿سَلَٰمٌ عَلَيْكُم بِمَا
صَبَرْتُمْ﴾ (سلامتيا دې پرتاسې په سبب دصبر كولو ستاسې) يعني تاسو له آفتونو او محنتونو څخه

([1]) القرطبي ۹ / ۳۱۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دخپل صبراوزغم په سبب چي په دنياکي موکړی وو سلامت ياست که تاسوپخوا په سترپياو کړاوونو کي وي خواوس موسوکالي اوراحت په برخه شو اودغه دوی ته دتل ترتله سلامتيازېری دی ﴿ فَنِعْمَ عُقْبَى ٱلدَّارِ ﴾ نوښه عاقبت ددار(دآخرت عاقبت ستاسودی ) چي هغه داورپه مقابل کي جنت دی اوکله چي الله تعالی دمؤمنانواوصاف څرګند کړل ورپسې يې دکافرانو صفتونه داسي بيان کړل چي : ﴿ وَٱلَّذِينَ يَنقُضُونَ عَهْدَ ٱللَّهِ مِنۢ بَعْدِ مِيثَٰقِهِۦ ﴾ (اوهرهغه کسان چي ماتوي عهد دالله وروسته له محکم والي دهغه ) يعني دوی هغه عهدونه چي پرخپل ځان يې په ټينګه منلي وو چي په الله تعالی به ايمان راوړي اوطاعت عبادت به يې کوي ماتوي ﴿ وَيَقْطَعُونَ مَآ أَمَرَ ٱللَّهُ بِهِۦٓ أَن يُوصَلَ ﴾ اوپرې کوي دوی هغه شی چي حکم کړی دی الله په هغه سره چي وصل دي کړی شي يعني خپلوي نه پالي قطع صله رحمي کوي هغه چي الله يې په وصل کولو حکم کړی دی ﴿ وَيُفْسِدُونَ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ اوفساد کوي دوی په ځمکه کي ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمُ ٱللَّعْنَةُ ﴾ دغه (مذکورکسان) شته ده دوی ته لعنت (ليري والی دالله له رحمته ) ﴿ وَلَهُمْ سُوٓءُ ٱلدَّارِ ﴾ اوشته دی دوی ته بدعاقبت د دار(دآخرت چي اوردی) يعني دوی لره هغه خواشينونکی څېزپه آخرت کي دی چي ددوزخ اوردی ﴿ ٱللَّهُ يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ لِمَن يَشَآءُ وَيَقْدِرُ ﴾ الله پراخوي روزي هرهغه چاته چي اراده وفرمايې (دپراخي يې) اوتنګوي يې (لپاره دهغه چاچي اراده وفرمايې (دتنګولوېې پخپل حکمت اومصلحت سره ) ﴿ وَفَرِحُوا۟ بِٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾اوخوشحاله شوي دي (دغه (مشرکان) په ژوند ددنيا ؛ (په خوښي دغرور اوتکبرسره داهسي اخباردي چي پکي دهغه چابدي نغښتي ده چي په دنياخوښحالېږي ځکه ددنياسپکاوی هسي بيانوي چي : ﴿ وَمَا ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَا فِى ٱلْءَاخِرَةِ إِلَّا مَتَٰعٌ ﴾ اوندی داژوندون لږ خسيس ددنيا(په مقابل د ) آخرت کي مګرلږ متاع (دآخرت د ژوند په پرتله ) ﴿ وَيَقُولُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْهِ ءَايَةٌ مِّن رَّبِّهِۦٓ ﴾ (اووايې هغه کسان چي کافران شوي دي ولي نه ده رالېږلي شوي پردغه (محمد ) باندي (هغه معجزه چي موږ يې غواړو له (طرفه ) درب دده ؟) يعني ولي په محمدصلی الله عليه وسلم باندي دموسی عليه السلام په شان چي سيندورته وچاودېدو ( لاري لاري شو ) هسي معجزه دالله له لوري نه نازلېږي اويالکه دعيسی عليه السلام په شان چي مړي به يې ژوندي کول اويا داسي نوري معجزې ﴿ قُلْ إِنَّ ٱللَّهَ يُضِلُّ مَن يَشَآءُ وَيَهْدِىٓ إِلَيْهِ مَنْ أَنَابَ ﴾ (ووايه ( ای محمده ! دوی ته ) بېشکة الله ګمراه کوي هغه څوک چي اراده وفرمايې (دګمراهي يې) اوهدايت کوي په طرف خپل هغه ته چي رجوع وکړي الله ته ) يعني ای محمده دوی ته ووايه چي حکم دالله جل جلاله په لاس کي دی زماپه وس کي څه نشته الله پاک ګمراه کوي هغه څوک چي دګمراهي اراده يې وفرمايې بياهغه ته معجزې ګټه نه رسوي اودهغه چاخپلې لاري اودين ته لاربنوونه کوي چي ورته يې اراده وشي ځکه هغه الله ته په توبه اوانابت سره رجوع کړي ده په التسهيل نومي کتاب کي وايې چي : دغه کلام دتعجب په ډول راڅرګندشوی کله چي دوی معجزه

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وغوښتله معناداچي محمدصلی الله علیه وسلم خوقرآنکریم اوډېري نوري معجزې راوړي دي
خوتاسوځني راڼده یاست اوله هغوپرته نوري غواړئ اوپه کفراوطغیان کي لاپسي ډوبېږئ بېشکه الله
پاک هغه څوک چي وغواړي ګمراه یې کړي له معجزاتوسره سره هم ګمراه کوي اوچاته چي دهدایت اراده
وکړي پرته له معجزاتویې هم لارښوونه کوي ﴿ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَتَطۡمَئِنُّ قُلُوبُهُم بِذِكۡرِ ٱللَّهِۗ ﴾ (دغه رجوع
کونکي) هغه کسان دي چي ایمان یې راوړی اوزړونه یې دالله په ذکرسره آرام نیسي ) دغه بدل دی
اومعنایې داچي الله پاک رجوع کونکوته هدایت کوي هغوی چي ایمان یې راوړی اودالله په
توحیداویادسره یې زړونه سکون اوالفت مومي دمضارع صیغه یې ددې لپاره غوره کړه چي داطمینان
دوام اواستمرار وښیې ﴿ أَلَا بِذِكۡرِ ٱللَّهِ تَطۡمَئِنُّ ٱلۡقُلُوبُ ﴾ واورئ خبردارشئ چي دالله په ذکرسره آرام
نیسی زړونه دمؤمنانو ) اومطمئن کېږي (بیانوهیڅ اضطراب اوپرېشاني ورته دعذاب په هکله لاره نه
مومي اودادهغوکسانوپه خلاف دي کوم چي دالله جل جلاله یادونه وشي نوددوی زړونه کرکه کوي
﴿ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ طُوبَىٰ لَهُمۡ وَحُسۡنُ مَـَٔابٖ ﴾ (هغه کسان چي ایمان یې راوړی دی او
کړي یې دي ښه (عملونه ) ښه حال دی دوی ته اوښه ځای دهستوګني (جنت) دی ) یعني دنېکو اعمالو
کونکي مؤمنان هغوی له هره حیثه دښه حال خاوندان دي دوی چي کوم سعادت اوغوره حال ویني هغه
دهوسایې اونېمکرغي هستوګنځی جنت دی. ابن عباس رضی الله عنه دطوبی معناپه خوښي او سوکالي
سره کړي ده ﴿ كَذَٰلِكَ أَرۡسَلۡنَٰكَ فِيٓ أُمَّةٖ قَدۡ خَلَتۡ مِن قَبۡلِهَآ أُمَمٞ ﴾ همدارنګه (لکه چي مو پخواله تاانبیاء
لېږلي وو ) لېږلی یې موږ ته ( ای محمده ! ) پداسي یوأمت کي چي په تحقیق تېرشوي دي پخواله دې نه
ډېر أمتونه (نودغه ستاأمت وروستنی أمت اوته خاتم الانبیاء یې ﴿ لِّتَتۡلُوَاْ عَلَيۡهِمُ ٱلَّذِيٓ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ ﴾
چي ولولې ته پردوی هغه (قرآن ) چي موږتاته وحی کړی دی (هغه چي وحی عظیم اوذکرحکیم دی )
﴿ وَهُمۡ يَكۡفُرُونَ بِٱلرَّحۡمَٰنِۚ ﴾ حال داچي دوی کافران دي په رحمن (هغه چي رحمت یې هرڅه ته رسېدلی
دی) ﴿ قُلۡ هُوَ رَبِّي لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ ووایه ( ای محمده ! دې مشرکانوته) چي دغه ( رحمن) رب زمادی
نشته بل هیڅ لائق دعبادت مګریوازي هم دی دی (ماورباندي ایمان راوړی اوله ده پرته بل معبودنلرم)
﴿ عَلَيۡهِ تَوَكَّلۡتُ وَإِلَيۡهِ مَتَابِ ﴾ (پرهم ده ماتوکل کړی دی اوخاص همده ته بیاورتله اورجوع زمادی )
هغه به زمادزیاراو مجاهدې ثواب راکړي غرض له دې نه درسول الله صلی الله علیه وسلم داډېنه
اوتسلیت دی چي دکفاروله انکار، سرغړوني اوتکذیب څخه دي نه خواشینی کېږې خکه ترده
پخواأمتونوهم دخپلوانبیاوو تکذیب کړی دی ﴿ وَلَوۡ أَنَّ قُرۡءَانٗا سُيِّرَتۡ بِهِ ٱلۡجِبَالُ ﴾ اوکه په تحقیق
یوقرآن (آسماني کتاب) داسي وای چي) روان کېدلی ( په لوستلود ) ده سره غرونه (اوله خپله ځایه
خوځېدلای ) ﴿ أَوۡ قُطِّعَتۡ بِهِ ٱلۡأَرۡضُ ﴾ یاځمکه ټوټې ټوټې کېدلای پرې ځمکه ﴿ أَوۡ كُلِّمَ بِهِ ٱلۡمَوۡتَىٰۗ ﴾ یاپه
خبرو راوستلای شوای په هغه سره مړي یعني کله چي ورته خطاب شوی وای نوبه مړو ورته ځواب ویلای
ووچي په تلاوت کولوبه یې راژوندي شوي وو(لو) ځواب محذوف دی چي تقدیریې داسي راځي چي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



هغه دغه قرآن ووځکه چي په لاربنوونه اوهدايت کي ساری نلري په پند ورکولوکي بې مثله دی، په وېرولواوانذارکي يې سيال نشته(١) اوزجاج وايي چي: تقديريې (لماآمنو) دی يعني بياهم دوی به ځکه ايمان نه وو راوړی ځکه چي بېخي يومخ ايزه په ګمراهي کي غوپه اوپه فسادا وسرغړونه کي اوج ته رسېدلي دي ﴿ بَل لِّلَّهِ ٱلْأَمْرُ جَمِيعًا ﴾ (بلکه الله لره دی (اختياردډ ) ټول امر) د(بل) کلمه داضراب لپاره ده اومعناداچي که قرآن همداټول يادشوي کارونه هم ترسره کولای همدغه قرآن به وای خوالله پاک ددوی له غوښتني سره سم ددوی وړانديز ندی منلی ځکه چي الله پاک دټولو امورو اختيارلرونکی خاونددی هغه چي څه وغواړي همغه کوي څوک ورباندي دتحکم اواقتراح تپلو واک نلري ﴿ أَفَلَمْ يَاْيْـَٔسِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَن لَّوْ يَشَآءُ ٱللَّهُ لَهَدَى ٱلنَّاسَ جَمِيعًا ﴾ آيا لانانااميده شوي ندي هغه کسان چي ايمان يې راوړی دی ( له ايمان راوړلو ددغو کسانو پداسي حال کي چي دغه مؤمنان پوهېږي ) که الله دهدايت اراده فرمايلي وای نوخامخابه يې ټولو خلکوته هدايت فرمايلی وای (ځکه چي الله واکمن دی اودالله حکمت داغوښتي چي دتکليف بنسټ دي په اختيار ولاړوي(٢) ﴿ وَلَا يَزَالُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ تُصِيبُهُم بِمَا صَنَعُوا۟ قَارِعَةٌ ﴾ اوهمېشه هغه کسان چي کافران شو ي دي رسېږي دوی ته په سبب دهغوعملونو چي دوی کړي دي ټکونکی عذاب (هسي بلاګاني او مصيبتونه چي ددوی غوږونه ټکوي اوزړونه يې لالهانده کوي ﴿ أَوْ تَحُلُّ قَرِيبًا مِّن دَارِهِمْ ﴾ ياچي ښکته شي نږدې کورونوددوی ته (چي دوی ځني ووېرېږي اوسپرغي بڅرکي يې دوی ته هم ور والوزي ﴿ حَتَّىٰ يَأْتِىَ وَعْدُ ٱللَّهِ ﴾ ترهغه پوري چي راشي وعده دالله ( په نصرت داسلام اوستاپه برياليتوب پردوی باندي (ای محمده ) دمکې په فتح کولوسره) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُخْلِفُ ٱلْمِيعَادَ ﴾ بېشکه چي الله هيڅېري له خپلي وعدې څخه خلاف نه کوي ) کومه چي له انبياوو، اولياووسره يې په دښمنانوباندي دبري ورکولوفرمايلي دي ﴿ وَلَقَدِ ٱسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ ﴾ (اوخامخامسخرې کړی شوي دي له نورو پيمغبرانو (انبياوو) سره (چي وو) پخواله تانه) پدې کي دنبي عليه السلام لپاره داډينه اوتسلاده ﴿ فَأَمْلَيْتُ لِلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ثُمَّ أَخَذْتُهُمْ ﴾ نومهلت مي ورکړی ووهغوکسانوته چي کافران شوي وو( څه موده په امن اوسوکالي کي اوسېدل) بيامي ونيول دوی (په عذاب) سره) ﴿ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ ﴾ نوڅرنګه به ووعقوبت ؟(زما يعني ډېرسخت وو ) معنی دا چي زماعذاب چي دوی ته مي په کفراوتکذيب ورکړڅرنګه وو؟ ﴿ أَفَمَنْ هُوَ قَآئِمٌ عَلَىٰ كُلِّ نَفْسٍۭ بِمَا كَسَبَتْ ﴾ آيانوهغه ذات چي وي دی ولاړ (څارونکی ، ساتونکی) پرهر نفس (صالح او طالح)سره له هغه عمله چي کړی يې وي ؟) يعني هغه ذات

---

(١) دغه دزمخشري غوره دی اوزجاج وايي چي تقديريې (لماآمنوا) دی

(٢) ځيني مفسرينو ويلي چي ددې کلمې چي ﴿ أَفَلَمْ يَاْيْـَٔسِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ ﴾ معنادابللي چي آيادوی ته نه ده معلومه اوڅرګنده ؟ چي دغه دهوازن لغت اوله ځينو سلفوڅخه رانقل شوی دی خود کلمې له خپلي معناڅخه ترهغوپوري دګرزولوڅه اړتيانشته ترڅوچي په متبادرباندي يې ددلالت کولوڅه امکان وي لکه چي موږ وليکل

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



چي دبندګانو اوددوی داعمالوڅارونکی ساتونکی دی اوهرڅه دبندګانوله کړو وړو څخه ورته څرګندوي چي الله تعالی دی؟ ددې خبرپوښتني ځواب حذف کړی شوی اوهغه دا چي آیا دالکه هغه څوک غونډي دی چي داسي صفات نلري بلکه بت وي نه اوري، نهویني نه ګټه رسوي اونه هم تاوان دفع کوي هیڅ واک اواختیارنلري.فرآء وایې چي خبرددې لپاره حذف شوی چي معناېې معلومه ده اوهغه په دې وینابیان شوي چي: ﴿ وَجَعَلُوا۟ لِلَّهِ شُرَكَآءَ ﴾ (اوګرځولی دي (کفارو) الله ته شریکان) لکه چي ویل شوي دي آیا الله لکه ددوی شریکان غونډي دی؟[1] زمخشري وایې چي: دغه پردوی یو ډول احتجاج کول دي چي له الله سره یې شریکان نیولي دي یعني آیا هغه الله چي په هرنفس باندي که صالح وي اوکه طالح څارونکی وي دهغه ټول اعمال څاري اودهغه لپاره یې جزاټاکلي وي داسي دی لکه هغه څوک چي داسي نه وي؟ بلکه داسي نه دی.[2] ﴿ وَجَعَلُوا۟ لِلَّهِ شُرَكَآءَ قُلْ سَمُّوهُمْ ﴾ اومشرکانو ګرزولي خدایان له الله سره شریکان چي عبادت یې کوي هسي بتان چي نهایت عاجزسپک اوناپوهان دي) دوی ته ووایه (ای محمده!) چي واخلئ نوم ونه ددوی (چي وګوروآیاپه ریښتیادوی دعبادت وړ اوله الله سره دشریک کېدلومستحق دي؟ ﴿ أَمْ تُنَبِّـُٔونَهُۥ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ بلکه آیااخبار کوي تاسي ته الله په هغه باطل شریکانوباندي چي الله ته نه دي معلوم په ځمکه کي؟ دغه استفهام دتوبیخ لپاره دی (یعني له سره نشته که وای نوبه الله ته معلوم وو) ﴿ أَم بِظَـٰهِرٍ مِّنَ ٱلْقَوْلِ ﴾ بلکه (مسمی کوي دوی شریکان) په ظاهره ویناسره (چي حقیقت نلري یوازي فاسدګمان دی چي له ډېري ناپوهي اوخوساعقل څخه زېږېدلی دی ﴿ بَلْ زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مَكْرُهُمْ ﴾ (داسي نه دی) بلکه ښایسته کړی شوی دی هغوکسانوته چي کافران شوي دي مکردروغ ددوی یعني شیطان دوی لره کفراوګمراهي ښایسته کړي ده ﴿ وَصُدُّوا۟ عَنِ ٱلسَّبِيلِ ﴾ اوبند(اړول) شوي دي دوی له سمي لاري نه ﴿ وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِنْ هَادٍ ﴾ اوهرڅوک چي الله یې ګمراه کړي نونشته ده لره هیڅ لاربښوونکی (چي ورته لاره وښیې ﴿ لَّهُمْ عَذَابٌ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾ دوی ته عذاب دی په ژوندانه لږ خسیس ددنیاکي (په وژلو، بندي کېدلو، قحط اونوروربړونو سره) ﴿ وَلَعَذَابُ ٱلْـَٔاخِرَةِ أَشَقُّ ﴾ اوخامخاعذاب دآخرت ډېرسخت دی (لِه عذابه ددنیا) په دروندوالي اوملامتیاکي ﴿ وَمَا لَهُم مِّنَ ٱللَّهِ مِن وَاقٍ ﴾ اونه به وي دوی ته له عذابه دالله څخه هیڅ ساتونکی چي دوی وژغوري اویادالله کسات اوغضب ځني دفع کړي.

**بلاغت:**

﴿ أَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَسَالَتْ أَوْدِيَةٌۢ بِقَدَرِهَا ﴾ پدې آیت کي الله تعالی حق اوباطل په خورا خوندوره تشبیه سره څرګند کړی چي ورته تمثیلي تشبیه وایې ځکه چي دشباهت وجه له متعددڅخه اخیستل

---

(1) زادالمسیر ۴ / ۳۳۳
(2) الکشاف.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



شوي نو دحق مثال لکه د رنو اوبو هغه چي په ځمکه کي پاتي او یا هغه صفا معدني جوهر چي خلک ور څخه ګټه اخلي تلپاتي وي او د باطل مثال لکه ځګ او هغه د خړو اوبو په سرخېري وي څرګندوي همداسي لکه داوسپني او یا نورو معادنو د ویلي کولو په وخت کي کوټ راوتل چي سمدستي پوپنا او بې ګټي لیري وغورځول شي دغه انځور د حق او باطل په هکله هم دی او داسي سره په ټکر کي وي چي د اځګ ځپې په یوه بله خوا غورځوي همداسي حق او باطل تل سره یو له بله ډغري وهي ﴿ فَأَمَّا ٱلزَّبَدُ فَيَذْهَبُ جُفَآءً وَأَمَّا مَا يَنفَعُ ٱلنَّاسَ فَيَمْكُثُ فِي ٱلْأَرْضِ ﴾ دغه خورا ښایسته اغلي او خوندور تمثیل دی.

٢ - ﴿ فَسَالَتْ أَوْدِيَةٌۢ بِقَدَرِهَا ﴾ دغه عقلي مجاز او د یو څېز نسبت کول ځای او مکان ته وایي او په اصل کي خود خوړونو او به بهېږي خو دلته یې نسبت پخپله خوړونو ته شوی دی.

٣ - ﴿ كَذَٰلِكَ يَضْرِبُ ٱللَّهُ ٱلْحَقَّ وَٱلْبَٰطِلَ ﴾ دلته ایجاز بالحذف دی یعني د حق او باطل مثالونه بیانوي

٤ - ﴿ كَمَنْ هُوَ أَعْمَىٰٓ ﴾ دلته یې ناپوهي او کفر له ړندوالي سره د تبعیي استعارې په شکل تشبیه کړې ځکه مراد له رانده څخه جاهل او کافر دی.

٥ - ﴿ لِلَّذِينَ ٱسْتَجَابُوا۟ لِرَبِّهِمُ ٱلْحُسْنَىٰ ۚ وَٱلَّذِينَ لَمْ يَسْتَجِيبُوا۟ ﴾ دلته د سلب طباق دی.

٦ - ﴿ سِرًّا وَعَلَانِيَةً ﴾ دلته د طباق صنعت راغلی او همداسي د ﴿ يَبْسُطُ وَيَقْدِرُ ﴾ او ﴿ بِٱلْحَسَنَةِ ٱلسَّيِّئَةَ ﴾ او ﴿ يُضِلُّ وَيَهْدِي ﴾ ترمینځ تضاد راغلی دی.

٧ - ﴿ إِلَّا مَتَٰعٌ ﴾ یعني (الامثل المتاع) هغه څه چي انسان پخپلو مؤقتي اړتیاوو کي ځني ګټه پورته کوي نو پدې کي بلیغه تشبیه ده ځکه چي د تشبیه ادات او د شبه وجه حذف شوي ده.

فائده: الله تعالی پدې قول کي چي فرمایي: ﴿ وَمَن صَلَحَ مِنْ ءَابَآئِهِمْ وَأَزْوَٰجِهِمْ وَذُرِّيَّٰتِهِمْ ﴾ داسي ښیي چي نسب ګټه نه رسوي کله چي ورسره نېک عمل ملګری نه وي او پدې کي د هغو کسانو د تمي او هیلي پرېکول دي چي دوی په انسابو او خپلوي ویاړي.

تنبیه:

امام طیبي د الله جل جلاله ددې قول په هکله چي فرمایي ﴿ أَفَمَنْ هُوَ قَآئِمٌ عَلَىٰ كُلِّ نَفْسٍۭ ﴾ داسي فرمایي چي پدې کي خورا سخت احتجاج دی چي د بیان د علم په تله څو ښکلاوي پکې دي لومړی توبیخ ځکه دوی د غیرالله په عبادت کولو کي له خوسا قیاس څخه کار اخیستی دی دوهم داچي ظاهر د ضمیر پر ځای راغلی چي فرمایي: ﴿ وَجَعَلُوا۟ لِلَّهِ شُرَكَآءَ ﴾ چي د دوی په ګمراهي دلالت کوي چي د واحد فرد او صمد ذات لپاره یې شریکان نیولي دریم داچي په برهاني توګه د شریکانو له وجود څخه انکار ښکاره شوی چي فرمایي: ﴿ قُلْ سَمُّوهُمْ ﴾ څلورم نفي د یو شي په نفي دلازم د هغه څېز چي فرمایي: ﴿ أَمْ تُنَبِّـُٔونَهُۥ بِمَا لَا يَعْلَمُ ﴾ پنځم د تدرج او ورو ورو په توګه پر دوی احتجاج کول چي دوی سوچ کولو ته

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وښځوي چې فرمايي: ﴿ أَم بِظَٰهِرٍ مِّنَ ٱلْقَوْلِ ﴾ يعني آيا تاسو يوازي په ظاهري وينا داسي وايا ست پرته له دې چې ددې وينا د باطل ګڼلو په هکله سوچ وکړئ نو دغه احتجاج پخپله د اعجاز نارې وهي چې دغه د بشر کلام نه دی(۱)

***

## الله تعالى فرمايي:

﴿ مَّثَلُ ٱلْجَنَّةِ ٱلَّتِى وُعِدَ ٱلْمُتَّقُونَ ۖ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ۖ أُكُلُهَا دَآئِمٌ وَظِلُّهَا ۚ تِلْكَ عُقْبَى ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوا ۖ
وَّعُقْبَى ٱلْكَٰفِرِينَ ٱلنَّارُ ﴿٣٥﴾ وَٱلَّذِينَ ءَاتَيْنَٰهُمُ ٱلْكِتَٰبَ يَفْرَحُونَ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ ۖ وَمِنَ ٱلْأَحْزَابِ مَن يُنكِرُ بَعْضَهُۥ ۚ قُلْ
إِنَّمَآ أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ ٱللَّهَ وَلَآ أُشْرِكَ بِهِۦٓ ۚ إِلَيْهِ أَدْعُوا وَإِلَيْهِ مَـَٔابِ ﴿٣٦﴾ وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَٰهُ حُكْمًا عَرَبِيًّا ۚ وَلَئِنِ ٱتَّبَعْتَ
أَهْوَآءَهُم بَعْدَمَا جَآءَكَ مِنَ ٱلْعِلْمِ مَا لَكَ مِنَ ٱللَّهِ مِن وَلِىٍّ وَلَا وَاقٍ ﴿٣٧﴾ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّن قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ
أَزْوَٰجًا وَذُرِّيَّةً ۚ وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ أَن يَأْتِىَ بِـَٔايَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ ٱللَّهِ ۗ لِكُلِّ أَجَلٍ كِتَابٌ ﴿٣٨﴾ يَمْحُوا ٱللَّهُ مَا يَشَآءُ وَيُثْبِتُ ۖ
وَعِندَهُۥٓ أُمُّ ٱلْكِتَٰبِ ﴿٣٩﴾ وَإِن مَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ ٱلَّذِى نَعِدُهُمْ أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِنَّمَا عَلَيْكَ ٱلْبَلَٰغُ وَعَلَيْنَا ٱلْحِسَابُ ﴿٤٠﴾
أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا نَأْتِى ٱلْأَرْضَ نَنقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا ۚ وَٱللَّهُ يَحْكُمُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكْمِهِۦ ۚ وَهُوَ سَرِيعُ ٱلْحِسَابِ ﴿٤١﴾ وَقَدْ مَكَرَ
ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ فَلِلَّهِ ٱلْمَكْرُ جَمِيعًا ۖ يَعْلَمُ مَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ ۗ وَسَيَعْلَمُ ٱلْكُفَّٰرُ لِمَنْ عُقْبَى ٱلدَّارِ ﴿٤٢﴾ وَيَقُولُ ٱلَّذِينَ
كَفَرُوا لَسْتَ مُرْسَلًا ۚ قُلْ كَفَىٰ بِٱللَّهِ شَهِيدًۢا بَيْنِى وَبَيْنَكُمْ وَمَنْ عِندَهُۥ عِلْمُ ٱلْكِتَٰبِ ﴿٤٣﴾ الرعد: ۳۵ - ۴۳

### مناسبت او تړاو:

کله چې الله جل جلاله هغه څه یاد کړل چې کافرانو ته به په آخرت کې ورکول کېږي ورپسې يې د هغه څه يادونه وکړه چې په جنت کې به يې مؤمنان مومي بيايې مشرکانو ته د دردناک عذاب اخطار ورکړ او د دغه مبارک سورت په پای کې يې د رسول الله صلى الله عليه وآله وسلم د رسالت د ربښتنولي په باب د الله جل جلاله شهادت او همداسي د کتابيانو مؤمنانو ګواهي بيان کړه.

### لغتونه:

(الاحزاب) متفرقي طآئفې او ډلې چې له يهودانو او نصرانيانو څخه تشکيل شوي وي څکه ورته احزاب وويل شول چې دوی ډلې ټپلې او ديوې عقيدې خاوندان نه دي (مآب) زما د رجوع ځای (يمحو) محو ورکېدلو ته وايې هغه چې ليکلی توری وي يا نور څه او دغه د اثبات عکس (اپوټه) دی (أم الکتاب) د کتاب بنسټ مراد ورڅخه د الله علم او لوح محفوظ دی (البلاغ) اسم او د تبليغ په معنا دی (مکر) په پټه کې ديو امر تدبير کولو ته وايې او دا کله په خير او کله په شر کې استعمالېږي

### د نزول سبب:

---

(۱) صاوي د جلالين په حاشيه باندي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کلبي رحمه الله وايي چي يهودانو د رسول الله صلى الله عليه وسلم (عيب) بيانول چي دغه سړي پرته له مېرمنو او نکاح کولو بل کار نلري که چېرې لکه چي گمان کوي پيغمبر واى نو به نبوت له مېرمنو څخه را اړولى او د پيغمبري په کار به مشغول واى الله جل جلاله دا آيتونه نازل کړل چي: ﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّن قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ أَزْوَاجًا وَذُرِّيَّةً ﴾ ([1])

تفسير:

﴿ مَّثَلُ ٱلْجَنَّةِ ٱلَّتِى وُعِدَ ٱلْمُتَّقُونَ ۖ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ۖ ﴾ دهغه جنت مثال چي له پرهېزگارانو سره يې وعده کړې شوي ده داده (چي) بهېږي له لاندي د ونو او ماڼيو ) دهغو ويالې ﴿ أُكُلُهَا دَآئِمٌ وَظِلُّهَا ۚ ﴾ مېوې دهغې به همېشه وي او سيورى دهغه ( به هم تل او بې انتهاء ) وي (لمر به ورباندي تېرى نه کوي ﴿ تِلْكَ عُقْبَى ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوا۟ ۖ ﴾ دغه (جنت عاقبت (او ځاى) دهغو کسانو دى چي تقوى کوي ﴿ وَّعُقْبَى ٱلْكَٰفِرِينَ ٱلنَّارُ ﴾ او عاقبت (ځاى) د کافرانو اور د دوزخ دى ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَاتَيْنَٰهُمُ ٱلْكِتَٰبَ يَفْرَحُونَ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ ۖ ﴾ او هغه کسان چي موږ دوى ته کتاب ورکړى دى (تورات او انجيل.هغوى چي پر تا يې ايمان هم راوړى لکه عبدالله ابن سلام ، نجاشي او دهغه ملگري ) خوښحالېږي په هغه (قرآن) چي تا ته نازل شوى دى (ځکه چي د دوى په کتابونو کي د پيغمبر په رښتنولي شواهد او زېرى موجود دى ﴿ وَمِنَ ٱلْأَحْزَابِ مَن يُنكِرُ بَعْضَهُۥ ۚ ﴾ (او ځيني له فرقو (د اهل کتاب) نه هغه دى چي ځيني احکام د دې (قرآن) نه مني ) يعني د دغو ملتونو ځيني ټولى د دغه قرآن ځيني احکام سره له دې چي په رښتنولي يې باور لري ځکه د دوى له کتابونو سره موافق دي خود تکبر او عناد له مخي يې نه مني ﴿ قُلْ إِنَّمَآ أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ ٱللَّهَ وَلَآ أُشْرِكَ بِهِۦٓ ۚ ﴾ ووايه (اې محمده ! دوى ته ) بېشکه ما ته امر شوى دى په دې چي زه د الله عبادت وکړم او شريک ونه نيسم له دغه الله سره هيڅوک ﴿ إِلَيْهِ أَدْعُوا۟ وَإِلَيْهِ مَـَٔابِ ﴾ خاص دهغه لوري ته بلنه کوم او هغه ته ورتله زما دي ﴿ وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَٰهُ حُكْمًا عَرَبِيًّا ۚ ﴾ او لکه چي (پخوانو نورو انبياوو ته د دوى د قومونو په ژبه کتابونه لېږلي وو )نازل کړي (لېږلى) مو دى دغه قرآن حکم کونکى په عربي ژبه ) يعني ترڅو ته دهغه په وسيله د خلکو ترمينځ حکم صادر کړې ﴿ وَلَئِنِ ٱتَّبَعْتَ أَهْوَآءَهُم بَعْدَمَا جَآءَكَ مِنَ ٱلْعِلْمِ ﴾ او که چېرې متابعت وکړې ته ( اې محمده ! ) د خواهشاتو د دغو (مشرکانو ) وروسته له هغه چي راغلى دى تا ته علم (په براهينو او حجتونو ) ﴿ مَا لَكَ مِنَ ٱللَّهِ مِن وَلِىٍّ وَلَا وَاقٍ ﴾ (نو نه به وي تا ته له جانبه د الله څخه هيڅ ولي ( يار او مددگار ) او نه ساتونکى ( له الهي عذابه ) يعني نه به وي تا ته مرستندوى او ژغورونکى د الله له عذابه، د لته مقصد د امت وېرونه ده چي د خلکو د خواهشاتو متابعت دي نه کوي ځکه رسول الله صلى الله عليه وسلم معصوم دى او کله چي معصوم ذات ته د غسي خطاب کول کېږي غرض ځني نور خلک وي.

---

([1]) اسبهب التزول ص: ۱۵۸

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



قرطبي وايي چي: خطاب پيغمبرته او مراد ئني أمت دی (١) ﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّن قَبْلِكَ ﴾ اوخامخا په تحقيق لېږلي وو موږ ډېررسولان پخواله تانه ﴿ وَجَعَلْنَا لَهُمْ أَزْوَٰجًا وَذُرِّيَّةً ﴾ او ورکړي وو موږ دوی ته ښځي او اولادونه ؛ دغه په هغه چاباندي رد دی چي درسول الله صلی الله عليه وسلم په ډېرو مېرمنو درلودلويې عيب لګاوو اوويل به يې که چېري پيغمبراونبي وای نوتارک ددنيا اوزاهدبه وای نوالله ددوی ترديدوفرمايل اودايې وښودله چي محمد صلی الله عليه وسلم يوازي هسي نوی نه دی بلکه پخواهم چي زموږ پيغمبران وو ښځي اولادونه يې درلودل ﴿ وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ أَن يَأْتِيَ بِـَٔايَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ ٱللَّهِ ﴾ اونه ښائېږي لپاره دهيڅ پيغمبر چي راوړي داسي يوه معجزه (چي خلګ يې غواړي )مګر په اذن دالله سره ؛ پدې کي دهغوکسانو ترديد دی چي دمعجزاتو راوړلو وړانديز يې کاوو ﴿ لِكُلِّ أَجَلٍ كِتَابٌ ﴾ دپاره دهروخت يوحکم دی يعني هري تاکلي مودې لره دالله حکم په لوح محفوظ کي کښل شوی اوهرڅه دالله په وړاندي اندازه شوي. طبري وايې: معناداچي دهرحکم لپاره چي الله يې فيصله فرمايلي وي ليکلی مکتوب دده په نزدشته (٢) ﴿ يَمْحُوا۟ ٱللَّهُ مَا يَشَآءُ وَيُثْبِتُ ﴾ (محوه کوي الله هغه چي اراده يې (دامحاء) وفرمايي اوثابتوي (هرهغه چي داثبات اراده يې وفرمايي) يعني الله پاک هغه شرعي احکام چي دمنسوخ کېدلو اراده يې وفرمايي نسخ کوي همداسي هغه دکرام الکاتبين ملائکو صحيفې چي دورکېدلو اراده يې وفرمايي محوه کوي اوچي داثبات اراده يې وشي پرته له کوم تغيرڅخه يې ثابت پاتي کوي. ابن عباس رضی الله عنه وايې چي: الله دهرشي دمحوکولو اراده وفرمايي هغه محوه کوي پرته له ژوند اومرګ اوسعادت اوشقاوت څخه ځکه هغه فيصله شوي اموردي (٣) چاييا ويلي چي مرادله محوي اواثبات څخه عمومي شيان دي لکه چي روايت کېږي عمربن الخطاب په بيت الله باندي طواف کاوو اوژړل يې داسي يې ويل: الهي که دي په ماباندي شقاوت اوګناه ليکلي وي هغه محوه کړې ځکه ته محوه کوې هغه چي ته يې وغواړې اوستاپه نزد أم الکتاب دی او زمالپاره نېکمرغي اومغفرت وليکې (٤) ابوالسعود هم دغه خبري ته ترجيح ورکړي اودابن مسعودرضی الله عنه هم دغه رايه ده.

﴿ وَعِندَهُۥٓ أُمُّ ٱلْكِتَٰبِ ﴾ اوپه نزد دالله اصل د هرکتاب دی (لوح محفوظ) هغه چي الله پاک په هغه کي دهرڅه اندازه ټوله ليکلي ده. ﴿ وَإِن مَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ ٱلَّذِى نَعِدُهُمْ ﴾ اوکه موږ خامخاتاته وښيوځيني له هغه عذابه چي وعده يې کوو موږ له دغوکفارو سره (چي ستاسترګي ورباندي يخي شي ) ﴿ أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ ﴾ ياکه موږ وفات کړو تاپخواله دې تعذيبه دکفارو ﴿ فَإِنَّمَا عَلَيْكَ ٱلْبَلَٰغُ وَعَلَيْنَا ٱلْحِسَابُ ﴾ نوبېشکه هم داخبره ده چي پرتادپيغامونو رسونه ده اوپرموږ حساب (اودوی ته جزا ورکول دي ) ﴿ أَوَلَمْ

(١) القرطبي ٩ / ٣٢٧
(٢) الطبري ١٣ / ١٦٥
(٣) اودغه دمجاهد قول دی چي هغه پرته له ژوند مرګ اوسعادت شقاوت څخه ځکه په هغوی کي بدلون نه راځي.
(٤) الطبري ١٣ / ١٦٧

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



يَرَوۡاْ أَنَّا نَأۡتِي ٱلۡأَرۡضَ نَنقُصُهَا مِنۡ أَطۡرَافِهَاۚ ﴾ (آيا نه ګوري (كفار مشركين ) چي په تحقيق موږ راځو ځمکي ته (ددوی) چي کمووو يې له څنډو (غاړو ) ددې (چي مسلمانانو ته ) يې ورفتح کوو ) يعني آيا دغه مشرکان نه ګوري چي موږ بيغمبرانو مؤمنانو ته داځواک ورکوو چي د کفرځمکي يو په بل پسي لاندي کړي ترڅو چي ددوی ځمکي کمي اود مسلمانانو زياتي شي اودغه ترټولو قوي دليل دی چي الله پاک له پيغمبرسره چي کومه ژمنه کړي هغه ترسره کوي (۱) ﴿ وَٱللَّهُ يَحۡكُمُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكۡمِهِۦۚ ﴾ (اوالله حکم کوي (په هرڅه چي اراده وفرمايي ) نشته هيڅوک ردکونکی لپاره دحکم دالله) يعني هيڅوک دالله جل جلاله حکم ته ماتوالی اوبدلون نشي ورکولی ﴿ وَهُوَ سَرِيعُ ٱلۡحِسَابِ ﴾ اوالله دېرژر ذی حساب (دده ) يعني الله له هغه چانه چي ورڅخه سرغړونه اوعصيان کوي ژرانتقام اخيستونکی دی. ﴿ وَقَدۡ مَكَرَ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ ﴾ اوپه تحقيق مکرکړی وو (له خپلو انبياووسره هغو(کفارو) چي پخواتېرشوي وو له دغو (کفارو) څخه لکه چي دقريشوکافرانو له تاسره مکرکړی وو ﴿ فَلِلَّهِ ٱلۡمَكۡرُ جَمِيعٗاۖ ﴾ اوخاص الله لره دي ( اسباب ) دمکرټول (چي چاته پرته دالله له ارادې تاوان نه رسوي اوالله دوی ته له داسي لوري چي ورباندي نه پوهېږي عذاب راوړي ﴿ يَعۡلَمُ مَا تَكۡسِبُ كُلُّ نَفۡسٖۗ ﴾ معلوم دی الله ته هرهغه (ښه اوبد ) کارچي کوي يې هرڅوک (نوبه جزا ورکړي ) ﴿ وَسَيَعۡلَمُ ٱلۡكُفَّٰرُ لِمَنۡ عُقۡبَى ٱلدَّارِ ﴾ اوژربه پوه شي (په قيامت اوآخرت ) چي چاته به وو (ښه ) عاقبت دآخرت دکور ﴿ وَيَقُولُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَسۡتَ مُرۡسَلٗاۚ ﴾ اووايي هغه کسان چي کافران (دمکې) دي( تاته ای محمده !) چې نه يې ته لېږلی شوی (دالله له لوري ) ﴿ قُلۡ كَفَىٰ بِٱللَّهِ شَهِيدَۢا بَيۡنِي وَبَيۡنَكُمۡ ﴾ ( ووايه ( ای محمده! دوی ته ) چي کافي دی الله شاهد په مينځ زمااوستاسي کي) يعني زمادالله جل جلاله شاهدي چي زمادرښتنولي په هکله يې ماته معجزې راکړې بس اوکافي دی ﴿ وَمَنۡ عِندَهُۥ عِلۡمُ ٱلۡكِتَٰبِ ﴾ اوهغه څوک چي په نزدده علم دکتاب دی (هغه داهل کتابو مؤمنانو علماء).

**بلاغت:**

پدې آيتونو کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته څه يې دادي:

۱- تشبيه دالله تعالى پدې قول کي چي فرمايي: ﴿ كَذَٰلِكَ أَرۡسَلۡنَٰكَ ﴾ ﴿ وَكَذَٰلِكَ أَنزَلۡنَٰهُ ﴾ اودې ته مرسله مجمله تشبيه وايي.

(۱) سيدقطب رحمه الله وايي چي: دالله پاک سترقدرت کله چي کوم کفري دولتونه په ځمکه کي دتکبر، عصيان اوفساد خپرولوته ملاوتړي نوالله يې توان ورماتوي قدرت اوعزت يې پوپناکوي بدايي اوشتمني ځني اخلي اوهيوادېې وروسته له هغه چي خورابدای اوپراخ وو ورکوتی کوي زه وايم دغه نوی تفسير اوپکي دنورخلا اودجمال اوښايست ښکلاده.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۲ - کله چې الله تعالی فرمايي ﴿ أُكُلُهَا دَآئِمٌ وَظِلُّهَا ﴾ دلته ايجاز بالحذف دی چې دلته له (ظلها) څخه (دائم) چې خبردی حذف شوی او پخوانی (دائم) يې دليل دی.

۳ - مقابله لکه چې الله فرمايي: ﴿ تِلْكَ عُقْبَى ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوا۟ ۖ وَّعُقْبَى ٱلْكَٰفِرِينَ ٱلنَّارُ ﴾ او داهم له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

۴ - دالله جل جلاله پدې قول کې چې فرمايي ﴿ أَرْسَلْنَا رُسُلًا ﴾ دلته اشتقاقي جناس شتون لري.

۵ - د طباق صنعت لکه چې الله فرمايي: ﴿ يَمْحُوا۟ وَيُثْبِتُ ﴾ .

۶ - دالله تعالی پدې قول کې چې فرمايي: ﴿ إِنَّمَآ أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ ٱللَّهَ ﴾ اوپه ﴿ فَإِنَّمَا عَلَيْكَ ٱلْبَلَٰغُ ﴾ دواړه ځايه قصر اضافي اوله هغه ډوله څخه ګڼل کېږي چې د موصوف قصرپه صفت پسې راغلی وي يعني ستا لپاره بل څه وصف پرته له تبليغ نه نشته.

۷ - پارونه اوهڅونه لکه چې فرمايي: ﴿ وَلَئِنِ ٱتَّبَعْتَ أَهْوَآءَهُم ﴾ .

۸ - مرسل مجاز لکه چې وايي: ﴿ نَأْتِى ٱلْأَرْضَ ﴾ چې معنا يې دی زموږ حکم ځمکې ته راځي يا زموږ عذاب ورته رادرومي.

## لطيفه:

ځينومفسرينو دالله جل جلاله دا قول چې فرمايي: ﴿ نَنقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا ﴾ پدې تفسير کړی چې د ځمکې نقصان د علماوو او پوهانو په مړينه دی هم داراز د نېکانو کسانو مړينه د ځمکې نقصان دی دغه د مجاهد قول اود ابن عباس يوه وينا هم ده.

دالله جل جلاله په مرسته دالرعد سورت تفسيربشپړشو.

***

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## (۱۴) د (ابراهیم) سورت مکي او دوه پنځوس آيتونه لري.

دغه مبارک سورت د عقيدې بنسټيز موضوعات رااخلي چي ايمان په الله تعالی، ايمان په پيغمبري، ايمان په قيامت او جزاء دی او نږدې د سورت محور دي هم (رسالت او رسول) وبلل شي په سورت کي د پيغمبرانو بلنه او دعوت په تفصيل سره راغلی دی او دهغوی دنده يې څرګنده کړي د آسماني رسالتونو توحيدې په ډاګه کړی چي انبياء عليهم الصلوات ټول د دې لپاره راغلي چي دغه د ايمان مانی ودانه کړي او خلګ په واحد او لاشريک ذات هغه چي برحق او ټول مخلوق ورته محتاج دی وپوهوي، بشريت له توري تيارې څخه د رڼالوري ته راوباسي د دوی بلنه يوه او موخه (هدف) يې يودی که څه هم په ځيني فروعاتو کي اختلاف لري.

* په سورت کي د موسی عليه السلام د رسالت کيسه راغلي چي هغه خپل ټبرته بلنه ورکوله څو د الله عبادت وکړي او شکريې پرځای کړي او دهغو کسانو لپاره چي د پيغمبرانو تکذيب يې کاوو مثالونه بيان شوي دي هغوی چي د پخوانيو اُمتونو وو لکه د نوح عليه السلام قوم، عاديان او ثموديان، او بيا آيتونه د پيغمبرانو کړاوونه چي له خپلو قومونو سره چي په پخوانيو وختونو او . زمانو کي يې ستونزي لرلې راوړي او دهغوی د قومونو چال چلند له خپلو پيغمبرانو سره بيانوي او بيا هغوی ته په‌بش هلاکتونه او عذابونه رااخلي فرمايي: ﴿ وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لِرُسُلِهِمْ لَنُخْرِجَنَّكُم مِّنْ أَرْضِنَآ أَوْ لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَا فَأَوْحَىٰٓ إِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ لَنُهْلِكَنَّ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿۱۳﴾ وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ ٱلْأَرْضَ مِنۢ بَعْدِهِمْ ذَٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِي وَخَافَ وَعِيدِ ﴾.

* بيا سورت د آخرت له مشاهدو څخه يو مشهد راوړي کله چي بدمرغه مجرمان له خپلو ښوزله پلويانو سره يو ځای کېږي او ترمينځ يې اوږدې خبري اتري کېږي چي په وروستي پړاو کي ټول د دوزخ په اورکي غورځول کېږي او د ښوزلو پيروانو ښکنځل او بدي ردي ګڼه نلري کله چي يې مشرانو ته کوي څکه ټول په اورکي غوپه وي، بيا آيتونه د ايمان او ګمراهي لپاره مثالونه په سپېڅلي ونه او پليته ونه باندي راوړي او د ظالمانو د قيامت د ورځي هستوګنځی بيانوي.

* دغه سورت ته ځکه د ابراهيم سورت وويل شوچي د انبياوو د پلار ابراهيم عليه السلام هغه چي د حنفاوو امام او مقتداء يوازنی تن ووچي د بتانو سته يې وايستله او د توحيد بيرغ يې رپاند کړ هغه چي د اسلام سپېڅلی دين يې راووړ کوم چي خاتم المرسلين هم ورباندي راغلی دی قرآنکريم دده هغه دعاګاني هم رااخلي کومي چي د کعبې له ودانولو وروسته يې کړي او ټولې د ايمان او توحيد دعاګاني دي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

## الله تعالى فرمايي:

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ الٓرۚ كِتَٰبٌ أَنزَلۡنَٰهُ إِلَيۡكَ لِتُخۡرِجَ ٱلنَّاسَ مِنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِ بِإِذۡنِ رَبِّهِمۡ إِلَىٰ صِرَٰطِ ٱلۡعَزِيزِ
ٱلۡحَمِيدِ ﴿١﴾ ٱللَّهِ ٱلَّذِي لَهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۗ وَوَيۡلٞ لِّلۡكَٰفِرِينَ مِنۡ عَذَابٖ شَدِيدٍ ﴿٢﴾
ٱلَّذِينَ يَسۡتَحِبُّونَ ٱلۡحَيَوٰةَ ٱلدُّنۡيَا عَلَى ٱلۡأٓخِرَةِ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ وَيَبۡغُونَهَا عِوَجًاۚ أُوْلَٰٓئِكَ فِي ضَلَٰلِۭ
بَعِيدٖ ﴿٣﴾ وَمَآ أَرۡسَلۡنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا بِلِسَانِ قَوۡمِهِۦ لِيُبَيِّنَ لَهُمۡۖ فَيُضِلُّ ٱللَّهُ مَن يَشَآءُ وَيَهۡدِي مَن
يَشَآءُۚ وَهُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡحَكِيمُ ﴿٤﴾ وَلَقَدۡ أَرۡسَلۡنَا مُوسَىٰ بِـَٔايَٰتِنَآ أَنۡ أَخۡرِجۡ قَوۡمَكَ مِنَ
ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِ وَذَكِّرۡهُم بِأَيَّىٰمِ ٱللَّهِۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَٰتٖ لِّكُلِّ صَبَّارٖ شَكُورٖ ﴿٥﴾ وَإِذۡ قَالَ
مُوسَىٰ لِقَوۡمِهِ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَةَ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ إِذۡ أَنجَىٰكُم مِّنۡ ءَالِ فِرۡعَوۡنَ يَسُومُونَكُمۡ سُوٓءَ ٱلۡعَذَابِ
وَيُذَبِّحُونَ أَبۡنَآءَكُمۡ وَيَسۡتَحۡيُونَ نِسَآءَكُمۡۚ وَفِي ذَٰلِكُم بَلَآءٞ مِّن رَّبِّكُمۡ عَظِيمٞ ﴿٦﴾ وَإِذۡ تَأَذَّنَ
رَبُّكُمۡ لَئِن شَكَرۡتُمۡ لَأَزِيدَنَّكُمۡۖ وَلَئِن كَفَرۡتُمۡ إِنَّ عَذَابِي لَشَدِيدٞ ﴿٧﴾ وَقَالَ مُوسَىٰٓ إِن تَكۡفُرُوٓاْ أَنتُمۡ وَمَن فِي
ٱلۡأَرۡضِ جَمِيعٗا فَإِنَّ ٱللَّهَ لَغَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴿٨﴾ أَلَمۡ يَأۡتِكُمۡ نَبَؤُاْ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ قَوۡمِ نُوحٖ وَعَادٖ وَثَمُودَۛ
وَٱلَّذِينَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡۛ لَا يَعۡلَمُهُمۡ إِلَّا ٱللَّهُۚ جَآءَتۡهُمۡ رُسُلُهُم بِٱلۡبَيِّنَٰتِ فَرَدُّوٓاْ أَيۡدِيَهُمۡ فِيٓ أَفۡوَٰهِهِمۡ وَقَالُوٓاْ إِنَّا
كَفَرۡنَا بِمَآ أُرۡسِلۡتُم بِهِۦ وَإِنَّا لَفِي شَكّٖ مِّمَّا تَدۡعُونَنَآ إِلَيۡهِ مُرِيبٖ ﴿٩﴾ ۞ قَالَتۡ رُسُلُهُمۡ أَفِي ٱللَّهِ شَكّٞ فَاطِرِ
ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۖ يَدۡعُوكُمۡ لِيَغۡفِرَ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمۡ وَيُؤَخِّرَكُمۡ إِلَىٰٓ أَجَلٖ مُّسَمّٗىۚ قَالُوٓاْ إِنۡ أَنتُمۡ إِلَّا
بَشَرٞ مِّثۡلُنَا تُرِيدُونَ أَن تَصُدُّونَا عَمَّا كَانَ يَعۡبُدُ ءَابَآؤُنَا فَأۡتُونَا بِسُلۡطَٰنٖ مُّبِينٖ ﴿١٠﴾ قَالَتۡ لَهُمۡ رُسُلُهُمۡ إِن
نَّحۡنُ إِلَّا بَشَرٞ مِّثۡلُكُمۡ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يَمُنُّ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ مِنۡ عِبَادِهِۦۖ وَمَا كَانَ لَنَآ أَن نَّأۡتِيَكُم بِسُلۡطَٰنٍ إِلَّا بِإِذۡنِ
ٱللَّهِۚ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلۡيَتَوَكَّلِ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ ﴿١١﴾ وَمَا لَنَآ أَلَّا نَتَوَكَّلَ عَلَى ٱللَّهِ وَقَدۡ هَدَىٰنَا سُبُلَنَاۚ وَلَنَصۡبِرَنَّ عَلَىٰ
مَآ ءَاذَيۡتُمُونَاۚ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلۡيَتَوَكَّلِ ٱلۡمُتَوَكِّلُونَ ﴿١٢﴾ وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لِرُسُلِهِمۡ لَنُخۡرِجَنَّكُم مِّنۡ أَرۡضِنَآ أَوۡ
لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَاۖ فَأَوۡحَىٰٓ إِلَيۡهِمۡ رَبُّهُمۡ لَنُهۡلِكَنَّ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٣﴾ وَلَنُسۡكِنَنَّكُمُ ٱلۡأَرۡضَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡۚ ذَٰلِكَ لِمَنۡ
خَافَ مَقَامِي وَخَافَ وَعِيدِ ﴿١٤﴾ وَٱسۡتَفۡتَحُواْ وَخَابَ كُلُّ جَبَّارٍ عَنِيدٖ ﴿١٥﴾ مِّن وَرَآئِهِۦ جَهَنَّمُ وَيُسۡقَىٰ مِن مَّآءٖ
صَدِيدٖ ﴿١٦﴾ يَتَجَرَّعُهُۥ وَلَا يَكَادُ يُسِيغُهُۥ وَيَأۡتِيهِ ٱلۡمَوۡتُ مِن كُلِّ مَكَانٖ وَمَا هُوَ بِمَيِّتٖۖ وَمِن
وَرَآئِهِۦ عَذَابٌ غَلِيظٞ ﴿١٧﴾ ﴾ ابراهيم: ١ - ١٧

Bawar.net



لغتونه:

(ويل) هلاكت ته وايي ( يستحبون) غوره كوي خوښوي (يسومونكم) درځكي ويل كيږي (سامه الذل) يعني سپكتيايي ورو ځكله ( تأذن) اعلان يې وكړ چي پكي هيڅ شک پاتي نشو (نبأ) خبري ته وايي جمع يې (أنباء) راځي (سلطان) حجت اوبرهان ته وايه شي ( فاطر) نوی پيداكونكی مخترع (استفتحوا) پخپلو دښمنانو باندي يې طلب دبري وكړ (جبار) متكبرهغه څوک چي دهيچاواک په ځان نه مني (عنيد) معاند سرغړونكی بولي هغه چي له سمي لاري كوږ درومي عربان دغسي اوښ ته (الابل العنود ) وايي (صديد ) خوناب (نوونه)هغه چي ددوزخيانوڅخه بهيږي (يتجرعه) چي په تكليف اوناخوښي يې تيروي (يسيغه) ترګومي تيرولوته وايي.

تفسير:

﴿الٓر﴾ مقطعات حروف دي اودې ته اشاره كوي چي قرآنكريم معجز كتاب دی اوسره له دې چي له همدغو تورو جوړشوی دی خوڅوک يې په مثل يوسورت هم جوړولای نشي ﴿كِتَٰبٌ أَنزَلۡنَٰهُ إِلَيۡكَ﴾ دا(قرآن) يوكتاب دی چي ليږلی دی موږتاته ( ای محمده !) تاله ځانه نه دی جوړكړی بلكه زموږ وحی ده) ﴿لِتُخۡرِجَ ٱلنَّاسَ مِنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِ﴾ دپاره ددې چي راوباسې خلګ له تيارو (دجهل كفراوګمراهي نه ) رڼا(دايمان اوعلم) ته ﴿بِإِذۡنِ رَبِّهِمۡ إِلَىٰ صِرَٰطِ ٱلۡعَزِيزِ ٱلۡحَمِيدِ﴾ په اذن درب ددوی طرف دلاري دالله ته هغه الله چي ښه غالب ښه ثناويلی شوی دی (يعني هغه پروردګارچي په هره ژبه يې ثناويلي شوي اوترټولو زورور دی ﴿ٱللَّهِ ٱلَّذِي لَهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۗ﴾ هغه الله چي خاص ده ته دي هغه څه چي په آسمانونوكي دي اوهرهغه څه چي په ځمكي كي دي (يعني مالک دعلوياتو اوسفلياتو مسيطر دټولو كائناتو دی) ﴿وَوَيۡلٌ لِّلۡكَٰفِرِينَ مِنۡ عَذَابٖ شَدِيدٍ﴾ (اوعذاب اوهلاكت لپاره دكفارو له عذابه سخته ) (ويل) داسي كلمه ده چي دعذاب او هلاكت لپاره استعماليږي [1] بياوروسته دكافرانو صفات هسي راوړي چي: ﴿ٱلَّذِينَ يَسۡتَحِبُّونَ ٱلۡحَيَوٰةَ ٱلدُّنۡيَا عَلَى ٱلۡأٓخِرَةِ﴾ هغه كسان چي خوښوي (غوره كوي) ژوندون (فاني) ذدنياپه (باقي) دآخرت باندي ﴿وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ او اړوي (بندوي) خلګ له لاري دالله (اسلام ) نه ﴿وَيَبۡغُونَهَا عِوَجًاۚ﴾ اولټوي دوی دغي لاري ته كوږوالی (چي ددوی له خواهشاتوسره سمه شي ) ﴿أُوْلَٰٓئِكَ فِي ضَلَٰلِۭ بَعِيدٖ﴾ دغه كسان په ګمراهي ليري كي دي) يعني په دغوصفتونو سره موصوف كسان له ځركند حق څخه په ګمراهي كي دي چي هيڅ دسمون اوبري ځرک يې نه بريښي ﴿وَمَآ أَرۡسَلۡنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا بِلِسَانِ قَوۡمِهِۦ﴾ اوندی ليږلی موږ هيڅ پيمغبرمګرخوپه ژبه دقوم دده ﴿لِيُبَيِّنَ لَهُمۡۖ﴾ دپاره ددې چي دوی ته بيان كړي، شريعت دالله اودوی

[1] القرطبي ۹/ ۳۹۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وپوهوي دالله په مراد ترڅو درسالت موخه ترسره شي ﴿ فَيُضِلُّ ٱللَّهُ مَن يَشَآءُ وَيَهۡدِي مَن يَشَآءُۚ ﴾ (نوګمراه کوي الله هرهغه چي (دګمراهي) اراده يې وفرمايې اوهدايت کوي الله هرهغه ته چي (دهدايت) اراده يې وفرمايې ) يعني دپيغمبرانو دنده يوازي دامراونهی تبليغ کول دي اودهدايت اوايمان واک دالله جل جلاله په لاس کي دی څوک چي فيصله يې شوي وي ګمراه اوچاته لاره ښيې ﴿ وَهُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡحَكِيمُ ﴾ اوهم دی ښه قوي غالب دی (پخپله پاچهي کي) ښه حکمت والادی (پخپلو کړو وړو کي)

﴿ وَلَقَدۡ أَرۡسَلۡنَا مُوسَىٰ بِـَٔايَٰتِنَآ ﴾ او خامخا په تحقيق لېږلی وو موږ موسی په څرګندو معجزاتو زموږ (په ربښتنولي دده) ﴿ أَنۡ أَخۡرِجۡ قَوۡمَكَ مِنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِ ﴾ چي را وباسه قوم خپل له تيارو (دجهل اوکفر) رڼا (دايمان اوتوحيد) ته ! ابوحيان وايي چي : پدې کلمه کي چي : فـــــرمايې ﴿ قَوۡمَكَ ﴾ دحضرت موسی عليه السلام ځانګړتيايوازي دخپل ټبرلپاره وه هسي نه لکه دمحمدصلی الله عليه وسلم چي ټول بشريت ته مبعوث دی اوالله ورته فرمايې ﴿ لِتُخۡرِجَ ٱلنَّاسَ ﴾ چي درسالت په عموم دلالت کوي (۱) ﴿ وَذَكِّرۡهُم بِأَيَّىٰمِ ٱللَّهِۚ ﴾ او ورياد کړه دوی ته نعمتونه دالله ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَٰتٖ لِّكُلِّ صَبَّارٖ شَكُورٖ ﴾ ببشکه په دغه يادونه کي پندونه اودلالتونه دي هرډېرصبرکونکي ډېرشکر کونکي ته ﴿ وَإِذۡ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوۡمِهِ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَةَ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ ﴾ اوياد کړه ) هغه وخت چي موسی خپل قوم ته وويل : يادکړئ دالله نعمت پرتاسي ﴿ إِذۡ أَنجَىٰكُم مِّنۡ ءَالِ فِرۡعَوۡنَ ﴾ کله چي خلاص يې کړی (نيکونه د )تاسي له تابعانو دفرعون څخه (چي په ذلت اواستعباد کي يې ښکېل کړي وی ﴿ يَسُومُونَكُمۡ سُوٓءَ ٱلۡعَذَابِ ﴾ چي رساووبه يې تاسي ته سخت بدعذاب ﴿ وَيُذَبِّحُونَ أَبۡنَآءَكُمۡ وَيَسۡتَحۡيُونَ نِسَآءَكُمۡۚ ﴾ اوذبح کول به يې واړه زامن ستاسي اوژوندي به يې پرېښودې (لپاره دخدمت )لوني ښځي ستاسي (چي ورباندي چوپړ ووهي) ﴿ وَفِي ذَٰلِكُم بَلَآءٞ مِّن رَّبِّكُمۡ عَظِيمٞ ﴾ اوپدې (محنت اوابتلاء) کي ازموېښت وو له جانبه دډېرلوی رب ستاسي . مفسرين وايي چي: دنارينه وو دوژلو سبب داووچي کاهنانو فرعون ته ويلي ووچي په بني اسرائيلوکي يوماشوم زېږېدونکی دی چي ستادپاچهي زوال به دهغه په لاسونو کېدونکی وي نويې دهرزېږېدوکي ماشوم په وژلو لاس پوري کړ اوامريې وفرمايه ﴿ وَإِذۡ تَأَذَّنَ رَبُّكُمۡ لَئِن شَكَرۡتُمۡ لَأَزِيدَنَّكُمۡۖ ﴾ (اوياد کړه هغه وخت چي خبر درکړ تاسي ته رب ستاسي پدې چي که چېري شکر وويست تاسي (په تېرونعمتونو زما) نوخامخابه زيات کړم تاسي ته نعمت) دغه دموسی عليه السلام دوينابشپړونکی دی يعني همداسي يادکړئ کله چي الله تاسي ته داسي ببشکه خبره درکړه چي هيڅ شبه پکي نه وه که مود تېرونعمتونو شکرپرځای کړ

Bawar.net



نو خامخا به نعمت درزيات کړم ﴿ وَلَئِن كَفَرۡتُمۡ إِنَّ عَذَابِي لَشَدِيدٞ ﴾ ( او که مو ناشکري وکړه تاسي نو بېشکه عذاب زما ډېر سخت دی ) يعني که مو په کفر او عصيان د دغو نعمتونو بې قدري وکړه بېشکه زما عذاب ډېر سخت دی دوی ته يې په کفر د عذاب وعيد ورکړی همدغسي يې په شکر باندي د زيات والي وعده کړې ده ﴿ وَقَالَ مُوسَىٰٓ إِن تَكۡفُرُوٓاْ أَنتُمۡ وَمَن فِي ٱلۡأَرۡضِ جَمِيعٗا ﴾ او وويل: موسی که کافران شئ تاسي او هر هغه څوک چي په ځمکه کي دي (له انسانانو او پېريانانو) ټول) يعني موسی عليه السلام بني اسرائيلو ته کله چي له ايمان راوړلو يې ناهيلی شو داسي وويل چي: ستاسو ايمان نه راوړل به الله ته هيڅ تاوان ونه رسوي ﴿ فَإِنَّ ٱللَّهَ لَغَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴾ نو بېشکه الله خامخا غني (بې پروا ) دی (د بندګانو له شکرنه) مستحق د حمد (او ثنا ) دی که څه هم څوک کفران کوي ﴿ أَلَمۡ يَأۡتِكُمۡ نَبَؤُاْ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ قَوۡمِ نُوحٖ وَعَادٖ وَثَمُودَ ﴾ آيا نه دی راغلی تاسو ته خبر د هغو کسانو چي (تېرشوي دي ) پخوا له تاسي نه چي قوم د نوح او عاد (چي د هود قوم) وو او ثمود (چي د صالح عليه السلام قوم وو چي پردوی څه راغلل کله چي يې د خپلو انبياوو تکذيب وکړ؟ ﴿ وَٱلَّذِينَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡ ﴾ او هغه کسان چي پس له دوی نه وو ﴿ لَا يَعۡلَمُهُمۡ إِلَّا ٱللَّهُ ﴾ چي نه دي خبر پر دوی هيڅوک پرته له يو الله ﴿ جَآءَتۡهُمۡ رُسُلُهُم بِٱلۡبَيِّنَٰتِ ﴾ چي راوړي وو دوی ته د دوی پيغمبرانو ښکاره دلائل او څرګند حجتونه ﴿ فَرَدُّوٓاْ أَيۡدِيَهُمۡ فِيٓ أَفۡوَٰهِهِمۡ ﴾ نو ردکړل (ونيول) دغو (کفارو) لاسونه خپل په خولو خپلو يعني د پيغمبرانو تکذيب يې وکړ . ابن مسعود رضی الله عنه د دې جملې معنا داسي کوي چي دوی خپلي ګوتي له قهر او غصې نه چيچلې (١) ﴿ وَقَالُوٓاْ إِنَّا كَفَرۡنَا بِمَآ أُرۡسِلۡتُم بِهِۦ ﴾ او وويل: دوی چي بېشکه موږ کافران يو په هغه چي تاسي په هغه سره لېږلی شوي ياست (يعني په هغه څه چي تاسو ګمان کوئ د الله له لوري ورباندي را استول شوي ياست موږ ايمان نلرو . ﴿ وَإِنَّا لَفِي شَكّٖ مِّمَّا تَدۡعُونَنَآ إِلَيۡهِ مُرِيبٖ ﴾ او بېشکه موږ خامخا په شک شبه (لويه) کي يو له هغه (دين) څخه چي موږ تاسي هغه ته بولئ (پداسي شک کي ) چي واقع کونکی (زموږ دی په اضطراب کي ) ﴿ قَالَتۡ رُسُلُهُمۡ أَفِي ٱللَّهِ شَكّٞ ﴾ (وويل رسولانو د دوی آيا په (وجود د ) الله کي شبه شته ؟) يعني انبياوو دوی ته هسي وويل چي: آيا د الله په وحدانيت او شتون کي شک شته ؟ استفهام لپاره د انکار او توبيخ دی يعني دغه خبره خود شک شبهې کوم احتمال هم نلري ځکه دلائل موجود دي نو انبياوو عليهم السلام د دوی پام لرنه د الله په وجود باندي دلائلو ته راواړوله چي فرمايې: ﴿ فَاطِرِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ ﴾ (هسي الله) چي پيدا کونکی د آسمانو او د ځمکي دی (بې له پخواني مثاله)

---

(١) دد وهم قول بناپر مجاز ولاړه ده او مثال يې لکه دا چي ﴿ عَضُّواْ عَلَيۡكُمُ ٱلۡأَنَامِلَ مِنَ ٱلۡغَيۡظِ ﴾ دی او لو مرنی وينا په حقيقت بنا ده او وضاحت يې دا چي کله به دوی د انبياوو عليهم السلام خبري واورېدې تعجب به يې وکړ او د ملندو په توګه به يې و خندل نو بيا به يې په خولو لاسونه ونيول لکه څوک چي د خندا کبو کول غواړي.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿يَدۡعُوكُمۡ لِيَغۡفِرَ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمۡ﴾ الله بولي تاسي (زموږ په ژبه ايمان ته) ددې لپاره چې وبښي تاسي ته (گناهونه ستاسي) ﴿وَيُؤَخِّرَكُمۡ إِلَىٰٓ أَجَلٖ مُّسَمًّىۚ﴾ (اوچې مهلت درکړي تاسي ته (له عذابه) ترټاکلي مودې پوري) يعني که موايمان راووړ نوستاسي دعمرونو ترپايه به عذاب نه درکوي چې عاجل موهلاک کړي ﴿قَالُوٓاْ إِنۡ أَنتُمۡ إِلَّا بَشَرٞ مِّثۡلُنَا﴾ وويل: (کفارو) چې نه يی تاسي مگرآدميان په شان زموږ (تاسوپرموږ څه بهتري نلرئ) ﴿تُرِيدُونَ أَن تَصُدُّونَا عَمَّا كَانَ يَعۡبُدُ ءَابَآؤُنَا فَأۡتُونَا بِسُلۡطَٰنٖ مُّبِينٖ﴾ تاسي اراده لرئ ددې چې موږله هغه څه منع کړئ له هغوشيانوڅخه چې ووپلرونه زموږ چې (دهغو) عبادت به يې کاوو نوراوړئ موږته کوم ښکاره برهان (ستاسوپه رښتنولي اونبوت) ﴿قَالَتۡ لَهُمۡ رُسُلُهُمۡ إِن نَّحۡنُ إِلَّا بَشَرٞ مِّثۡلُكُمۡ﴾ وويل: دوی ته رسولانو ددوی (هولکه چې تاسي واياست) نه يو موږ مگرادميان يوستاسي په شان ﴿وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يَمُنُّ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ مِنۡ عِبَادِهِۦ﴾ ولکن الله احسان کوي (په نبوت اورسالت )په هرچاچي اراده وفرمايې (داحسان دهغوی) له بندگانوخپلو څخه؛ زمخشري وايې دوی خپله بهتري دتواضع له کبله ځرگنده نکړه اودهغوی وينايې ورسره ومنله چې دوی غوندي بنيادمان دي خوله دې وروسته بيادوی په شان نه دي(ځکه الله دوی ته نبوت ورکړی دی[1]) ﴿وَمَا كَانَ لَنَآ أَن نَّأۡتِيَكُم بِسُلۡطَٰنٍ إِلَّا بِإِذۡنِ ٱللَّهِۚ﴾ (اونه ښايې موږ ته داچې راوړوتاسي ته کوم برهان (معجزه) مگرپه حکم دالله سره) يعني ستاسي وړانديز شوي معجزه موږ پخپل سر درته راوړلای نشو ترڅوالله يې اذن ونه فرمايې ﴿وَعَلَى ٱللَّهِ فَلۡيَتَوَكَّلِ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ﴾ اوخاص پرالله دي مؤمنان توکل وکړي (په ټولوچاروکي) ﴿وَمَا لَنَآ أَلَّا نَتَوَكَّلَ عَلَى ٱللَّهِ﴾ اوڅه (عذر) دی موږ ته پدې کي چې توکل به نه کووپر الله ؟ (دغه دانبياوو قول دی) ﴿وَقَدۡ هَدَىٰنَا سُبُلَنَاۚ﴾ حال داچي ښودلي يې دي موږ ته لاري (دنجات دعذاب) زموږ ﴿وَلَنَصۡبِرَنَّ عَلَىٰ مَآ ءَاذَيۡتُمُونَاۚ﴾ (اوقسم دی چې صبربه وکړو خامخاپه ضرر رسولودتاسي موږلره ) ابن الجوزي وايې ددې لپاره دغه کيسه اودې ته ورته نوري کيسې محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم ته وفرمايلې ترڅو چې په ړومبنيو نبيانو پسي اقتداء وکړي زغم اوصبرخپل کړي اوپه هغه څه خبرشي چې دوی ته څه رسېدلي وو؟[2] ﴿وَعَلَى ٱللَّهِ فَلۡيَتَوَكَّلِ ٱلۡمُتَوَكِّلُونَ﴾ (اوخاص پرالله نودي تل ترتله توکل وکړي متوکلان) دغه جمله تکرارنه دی بلکه معنايې په توکل باندي ثبات اودوام دی اودلته يې دطغيان له مخي پلو پورته کړي چې دوی په مادي زور او توان وياړي (افتخارکوي) هغه زور چې سرکښان اوجبابره يې لري داسي وايې: ﴿وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لِرُسُلِهِمۡ لَنُخۡرِجَنَّكُم مِّنۡ أَرۡضِنَآ

---

(۱) الکشاف ۲/ ۵۴۴

(۲) زادالمسير ۴/ ۳۵۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿أَوْ لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَا﴾ (او وويل: هغو كسانو چي كافران شوي وو رسولانو خپلوته چي خامخاموږ به تاسي وباسو ارو مرو له ځمكي خپلي ، يابه خامخا وګرزئ تاسي خامخا په دين زموږ كي) يعني كفارو به خپلو سپېڅلو پيغمبرانوته په ګواښ ويل: قسم دی يابه مو له خپله هيواده وشړو اويابه زموږ دين ته راستانه شئ ﴿فَأَوْحَىٰ إِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ لَنُهْلِكَنَّ الظَّالِمِينَ﴾ (پس وحی وكړه دوی ته رب ددوی چي خامخاموږ به ظالمان هلاك كړو) يعني الله پاك نبيانوته داسي وحی وفرمايله چي ستاسودښمنان كافران مجرمين به هرومرو هلاك كړم ﴿وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ الْأَرْضَ مِن بَعْدِهِمْ﴾ اوخامخابه و اوسوو موږ تاسوپه ځمكه ددوی كي وروسته (له هلاكته) ددوی ﴿ذَٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِي وَخَافَ وَعِيدِ﴾ دغه (مرسته دپيغمبرانو اواهلاك دظالمانو) لپاره دهغه چاچي وېرېږي له درېدلو زماپه مخ كي او وېرېږي له وعدې (دعذاب زما) په البحركي وايې كله چي دوی قسم وخوړ په ايستلو دپيغمبرانو اويادوی په دين كښي د ورستنېدلو نوالله پاك قسم وكړ چي خامخا به دوی هلاك اوددغه دهلاكت ايستل بياداسي دی چي هيڅ ستنېدل يې نشته (۱) ﴿وَاسْتَفْتَحُوا وَخَابَ كُلُّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ﴾ اونصرت( فتح) وغوښتله (أنبياووپه خپلو قومونوباندي) اونامراده شول هريومتكبرسركښ حق نه منونكی ﴿مِّن وَرَائِهِ جَهَنَّمُ وَيُسْقَىٰ مِن مَّاءٍ صَدِيدٍ﴾ چي وړاندي دده دوزخ دی پس له مرګه او ورڅښلی به شي (په دوزخ كي) له اوبوچي زوي ويني وي ﴿يَتَجَرَّعُهُ وَلَا يَكَادُ يُسِيغُهُ﴾ چي غوړپ غوړپ به يې څښي اونه به وي نژدې چي هغه په آساني سره تېركړي (له ډېره تريخوالي اوبدبويې څخه چي كركه ځني كېږي) ﴿وَيَأْتِيهِ الْمَوْتُ مِن كُلِّ مَكَانٍ وَمَا هُوَ بِمَيِّتٍ﴾ اورابه شي ده ته (اسباب د) مرګ له هره لوري حال داچي نه به وي دی مړكېدونكی ﴿وَمِن وَرَائِهِ عَذَابٌ غَلِيظٌ﴾ اوپه مخ دده كي به عذاب ډېرسخت وي (ترهغه چي پخوايې ليدلی وو).

**بلاغت:**

پدې آيتونوكي دبلاغت ، بديع اوبيان لاندني ښكلاوي نغښتل شوي چي لنډيزيې دادی:

۱- استعاره دالله تعالی پدې قول كي چي فرمايې: ﴿لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ﴾ ځكه چي تاريكي يې دكفر اوضلالت لپاره استعاره كړې اورڼايې دهدايت اوايمان لپاره راوړې ده اوهمداراز په دې قول كي چي: ﴿وَيَأْتِيهِ الْمَوْتُ﴾ څكه سختي اوستونزي يې په مړينه استعاره كړي اوڅوك چي خوراپه غم اودرد اخته وي ورته ويل كېږي چي دغه دمرګ په اسبابومبتلادي چي دهغه دستونزو او دردونوپه هكله يې مبالغه كول كېږي.

---

(۱) البحره /۴۱۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۲ - د طباق صنعت د ﴿ يُضِلُّ وَيَهْدِي ﴾ او همدا راز د ﴿ شَكَرْتُمْ ﴾ او ﴿ كَفَرْتُمْ ﴾ او ﴿ لَنُخْرِجَنَّكُم ﴾ او ﴿ لَتَعُودُنَّ ﴾ ترمینځ شتون لري.

۳ - د مبالغې صيغه لکه چې په ﴿ صَبَّارٍ شَكُورٍ ﴾ او ﴿ جَبَّارٍ عَنِيدٍ ﴾ کښې ده.

۴ - اشتقاقي جناس پدې دوارو جملو کې چې: ﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ ﴾ او ﴿ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُونَ ﴾

۵ - د سجع صنعت لکه په ﴿ شَدِيدٍ ، بَعِيدٍ ، عَنِيدٍ ﴾ او نورو کې.

فائده:

الله تعالی د البقرة په سورت کې ﴿ يُذَبِّحُونَ ﴾ له واو توري پرته ذکر کړی او دلته یې ﴿ وَيُذَبِّحُونَ ﴾ په واو سره راوړی پدې کې راز دادی چې د البقرة په سورت کې دغه لفظ د تفسیر لپاره راوړل شوی چې رومبی ﴿ سُوٓءَ الْعَذَابِ ﴾ ذکر شوی لکه چې ویل شوي وي: (یسومونکم سوء العذاب) بیا یې دهغه تفسیر په ﴿ يُذَبِّحُونَ أَبْنَآءَكُمْ ﴾ سره فرمایلی وي او پدغه سورت کې تفسیر نه دی ځکه چې معنا داده چې دوی ته په ډول ډول عذابونه ور وويني او په حلالولو هم عذاب ورکوي چې دغه له پخواني عذاب نه یو بل ډول عذاب دی والله اعلم.

***

الله تعالی فرمایي:

﴿ مَّثَلُ الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ ۖ أَعْمَالُهُمْ كَرَمَادٍ اشْتَدَّتْ بِهِ الرِّيحُ فِي يَوْمٍ عَاصِفٍ ۖ لَّا يَقْدِرُونَ مِمَّا كَسَبُوا
عَلَىٰ شَيْءٍ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ الضَّلَالُ الْبَعِيدُ ﴿١٨﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ ۚ إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَيَأْتِ
بِخَلْقٍ جَدِيدٍ ﴿١٩﴾ وَمَا ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ بِعَزِيزٍ ﴿٢٠﴾ وَبَرَزُوا لِلَّهِ جَمِيعًا فَقَالَ الضُّعَفَاءُ لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا إِنَّا كُنَّا لَكُمْ
تَبَعًا فَهَلْ أَنتُم مُّغْنُونَ عَنَّا مِنْ عَذَابِ اللَّهِ مِن شَيْءٍ ۚ قَالُوا لَوْ هَدَانَا اللَّهُ لَهَدَيْنَاكُمْ ۖ سَوَاءٌ عَلَيْنَا أَجَزِعْنَا أَمْ
صَبَرْنَا مَا لَنَا مِن مَّحِيصٍ ﴿٢١﴾ وَقَالَ الشَّيْطَانُ لَمَّا قُضِيَ الْأَمْرُ إِنَّ اللَّهَ وَعَدَكُمْ وَعْدَ الْحَقِّ وَوَعَدتُّكُمْ
فَأَخْلَفْتُكُمْ ۖ وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُم مِّن سُلْطَانٍ إِلَّا أَن دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ لِي ۖ فَلَا تَلُومُونِي وَلُومُوا أَنفُسَكُم ۖ مَّا
أَنَا بِمُصْرِخِكُمْ وَمَا أَنتُم بِمُصْرِخِيَّ ۖ إِنِّي كَفَرْتُ بِمَا أَشْرَكْتُمُونِ مِن قَبْلُ ۗ إِنَّ الظَّالِمِينَ لَهُمْ عَذَابٌ
أَلِيمٌ ﴿٢٢﴾ وَأُدْخِلَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا بِإِذْنِ رَبِّهِمْ ۖ
تَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَامٌ ﴿٢٣﴾ أَلَمْ تَرَ كَيْفَ ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا كَلِمَةً طَيِّبَةً كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ أَصْلُهَا ثَابِتٌ وَفَرْعُهَا فِي
السَّمَاءِ ﴿٢٤﴾ تُؤْتِي أُكُلَهَا كُلَّ حِينٍ بِإِذْنِ رَبِّهَا ۗ وَيَضْرِبُ اللَّهُ الْأَمْثَالَ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴿٢٥﴾
وَمَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيثَةٍ كَشَجَرَةٍ خَبِيثَةٍ اجْتُثَّتْ مِن فَوْقِ الْأَرْضِ مَا لَهَا مِن قَرَارٍ ﴿٢٦﴾ يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar net



بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ وَيُضِلُّ اللَّهُ الظَّالِمِينَ وَيَفْعَلُ اللَّهُ مَا يَشَاءُ (۲۷) ۞ أَلَمْ تَرَ
إِلَى الَّذِينَ بَدَّلُوا نِعْمَتَ اللَّهِ كُفْرًا وَأَحَلُّوا قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ (۲۸) جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا وَبِئْسَ الْقَرَارُ (۲۹) وَجَعَلُوا
لِلَّهِ أَندَادًا لِّيُضِلُّوا عَن سَبِيلِهِ قُلْ تَمَتَّعُوا فَإِنَّ مَصِيرَكُمْ إِلَى النَّارِ (۳۰) قُل لِّعِبَادِيَ الَّذِينَ آمَنُوا يُقِيمُوا الصَّلَوٰةَ
وَيُنفِقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خِلَالٌ (۳۱) اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَٰوَاتِ
وَالْأَرْضَ وَأَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَّكُمْ وَسَخَّرَ لَكُمُ الْفُلْكَ لِتَجْرِيَ فِي الْبَحْرِ
بِأَمْرِهِ وَسَخَّرَ لَكُمُ الْأَنْهَارَ (۳۲) وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ دَائِبَيْنِ وَسَخَّرَ لَكُمُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ (۳۳)
وَآتَاكُم مِّن كُلِّ مَا سَأَلْتُمُوهُ وَإِن تَعُدُّوا نِعْمَتَ اللَّهِ لَا تُحْصُوهَا إِنَّ الْإِنسَانَ لَظَلُومٌ كَفَّارٌ (۳۴) ﴾

ابراهيم: ۱۸ – ۳۴

## مناسبت اوتړاو:

کله چي الله تعالی دکفارو ملنډي چي په پيغمبرانو يي وهلي بيان کړي او بيادوی ته يي دتيار شوي عذاب ښودنه وکړه ، ددوی دعملونو لپاره يي مثالونه راوړل او بيادددوی دړئيسانو او پيشوايانو ترمينځ په ځرګندونو يي رڼاواچوله ورپسي يي دخپلو نعمتونو يادونه وکړه ترڅوچي بندګان دالله شکرپرځای اوعبادت ته يي چمتوشي.

## لغتونه:

(عاصف) سخت باد ( برزوا) بروز له خفا وروسته ظهورته وايي (براز) هغه پراخ ځای ته ويل کېږي ځکه چي ځرګندوي اوويل کېږي چي: ( امرأة برزة ) هغه مېرمن چي خلکوته ځرګند بېږي (محيص) دتېښتني ځای ويل کېږي (حاص عن شئ) يعني وتښتېدوله شي نه اووايي دتېښتني اراده ورڅخه وکړه (جزعنا) زغم نه درلودلو ته (جزع) وايي. (مصرخکم) مصرخ دمُغيث په معنافريادرس ته ويل کېږي (أجتُثت) له بېخه ايستل شوی (البوار) هلاکت (خلال) د(خلت ) جمع اوملګرتيا,صداقت ته وايي. (دائبين) دؤب په لغت کي شامل عادت ته وايه شي ويل کېږي: ( دأب دؤبا).

## تفسير:

﴿ مَّثَلُ الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ أَعْمَالُهُمْ كَرَمَادٍ اشْتَدَّتْ بِهِ الرِّيحُ ﴾ (مثال دهغو کسانوچي پخپل رب باندي کافران شوي دي عملونه ددوی په شان د(ايرې) دی چي پرې سخت باد راوالوزي ) يعني دکافرانو دعملونو مثال دډېری دايرودی هغه عملونه چي دوی په دنياکي کړي لکه صدقه، صله رحمي او نور اوپردې داجرهيله کوي لکه ايرې دی کله چيورباندي سخت بادرا والوزي اوهغه دوري دوري کړي ﴿ فِي يَوْمٍ عَاصِفٍ ﴾ په هغه ورځ کي چي باديې سخت اوښورونکی وي قرطبي وايي : الله پاک دغه آيت دکافرانودعملونو لپاره متل راوړی دی چي ددوی عملونه به داسي ابته کېږي لکه چي سخت باد ايرې په

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


سخته ورځ کي دوړوي څکه دوی پخپلو اعمالو کي له الله جل جلاله سره شریک نیولی دی(۱) ﴿لَّا يَقْدِرُونَ مِمَّا كَسَبُوا۟ عَلَىٰ شَىْءٍ﴾ نه به قادر ربږي دوی دهغو عملونو چي دوی کړي دي یعني ثواب به یې نه مومي څکه چي په کفریي ابته کړي دي لکه څنګه چي خوک په الوتلو ایرو ګټه نشي اخیستلای ﴿ذَٰلِكَ هُوَ ٱلضَّلَٰلُ ٱلْبَعِيدُ﴾ (دغه ګمان دنېکي ددوی لیري ګمراهي ده ) سترخسران دی ﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ بِٱلْحَقِّ﴾ (آیانهویني چي ببشکه الله پیداکړي دي آسمانونه او ځمکه په حقه سره ) یعني ای مخاطبه ته دزړه په سترګونه ویني چي یوازي الله پاک دپیدا ایښت او پنځولو مالک دی اوهغه ځمکي اوآسمانونه اومافیهاپیداکړي ترڅودده په قدرت باندي دلیل شي مفسرین کرام وایي: معناداچي دغه یې عبث نه دي پیداکړي بلکه دیو سترامرلپاره یې پیداکړي دي ﴿إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَيَأْتِ بِخَلْقٍ جَدِيدٍ﴾ که الله (ستاسي دهلاکولو ) اراده وفرمایي نوتاسي به بوزي (په مړینه سره ) اونورنوي خلک به راولي. ابن عباس رضی الله عنهما وایي: معناداچي که الله وغواړي ای کفارو ! تاسوبه ووژني اونور خلک چي ترتاسوبه بهتر غوره اوفرمان منونکي وي راولي ﴿وَمَا ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ بِعَزِيزٍ﴾ اونه دی دغه ( هلاکول ستاسواوپیداکول دنورو ) په الله باندي سخت اومشکل ) څکه په زورور الله باندي هیڅ هم مشکل نه دی ﴿وَبَرَزُوا۟ لِلَّهِ جَمِيعًا﴾ (اوظاهر به شي دوی الله ته ټول ) یعني دمحشرپه ورځ به ټول دحساب لپاره الله ته څرګند ودرېږي هیڅ پټونکی به دوی پټولای نشي. امام فخرالرازي وایي چي: دماضي په لفظ ﴿وَبَرَزُوا۟﴾ باندي ذکرشوی که څه هم معنایې داستقبال ده څکه له هرڅیز څخه چي الله اخبارفرمایې هغه حق اوربښتیادی نوهسي وګرزېدولکه په وجودکي راغلی وي ددې مثال بل آیت هم شته لکه: ﴿وَنَادَىٰٓ أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ أَصْحَٰبَ ٱلنَّارِ﴾ (۲) ﴿فَقَالَ ٱلضُّعَفَٰٓؤُا۟ لِلَّذِينَ ٱسْتَكْبَرُوٓا۟﴾ نوویه وایي کمزوري (دکفارو ) هغوکسانوته چي کبرلویي به یې کوله (اودوی یې ګمراهان کړي وو ) ﴿إِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا فَهَلْ أَنتُم مُّغْنُونَ عَنَّا مِنْ عَذَابِ ٱللَّهِ مِن شَىْءٍ﴾ ببشکه وو موږ تاسي ته تابعان (چي ستاسوحکم مومانوپه دنیاکي نوآیاتاسي اوس دفع کونکي یاست له موږ نه ددغه (أخروي) عذابه دالله څخه څه شي، استفهام دتوبیخ اوتکوني لپاره راغلی دی ﴿قَالُوا۟ لَوْ هَدَىٰنَا ٱللَّهُ لَهَدَيْنَٰكُمْ﴾ نو وبه وایي دغه (مشران په معذرت سره ) که هدایت کړی وای موږ ته الله (دایمان) نوخامخابه موږ لارښوونه کړي وه تاسي ته (دهغه خوموږ ته ګمراهي اوضلالت حاصل شوی دی اوموږ بیاتاسوګمراه کړئ نوملامتیااوفریاد کول ګټه نلري ﴿سَوَآءٌ عَلَيْنَآ أَجَزِعْنَآ أَمْ صَبَرْنَا﴾ (برابر دی (اوس) پرموږ چي

---

(۱) القرطبي ۹/ ۳۵۳
(۲) الفخرالرازي ۱۹/ ۱۰۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



آیاشور، فریاد وکړو یاکه صبروکړو ) طبري وایې چي: دوزخیان به سره راغونډ شي ځیني به ځیني نوروته وایې چي: جنتیانو خوخپل مراد په ژړا زاري موندلی دی راشئ چي موږ هم الله ته وژاړو اوزاري جګي ورته وړاندي کړو نوبه وژاړي خو کله چي پوه شي دغه ژړا ورته ګټه نه رسوي نو وایې راشئ چي صبر وکړو نوبیاصبرخپل کړي داسي صبرچي چایې مثال هم لیدلی نه وي اوچي ووینې داهم ورته ګټورنه دی نو ووایې ﴿ سَوَآءٌ عَلَيۡنَآ أَجَزِعۡنَآ أَمۡ صَبَرۡنَا ﴾ (۱) مقاتل وایې چي پنځه سوه کاله ژړافریادوکړي اوبیاپنځه سوه کاله صبروکړي (۲)﴿ مَا لَنَا مِن مَّحِيصٍ ﴾ نشته موږ ته هیڅ ځای دخلاصون (اوتېښتي) ﴿ وَقَالَ ٱلشَّيۡطَٰنُ لَمَّا قُضِيَ ٱلۡأَمۡرُ ﴾ (اووبه وایې: شیطان کله چي امرفیصله وشي) دغه هغه بدمرغه دشیطان خطبه ده چي ابلیس لعین به یې دبدمرغانواشقیاوو په محفل کي هله ایرادوي کله چي حساب سرته ورسېږي جنتیان جنت ته اودوزخیان دوزخ ته لاړشي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ وَعَدَكُمۡ وَعۡدَ ٱلۡحَقِّ ﴾ بېشکه چي الله له تاسي سره وعده کړي (په دنیاکي) وعده دحق (چي مطیع ته به ثواب ورکوي اوعاصي ته عذاب هماغه وعده یې بشپړه کړه) ﴿ وَوَعَدتُّكُمۡ فَأَخۡلَفۡتُكُمۡ ﴾ (اوماله تاسي سره وعده کړې وه بیانو خلاف مي وکړ له تاسي سره) یعني ماله تاسوسره داوعده کړې وه چي نه پاڅېدل شته اونه ثواب اوعذاب خومادرته دروغ ویلي اوخلاف مي وکړ ﴿ وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيۡكُم مِّن سُلۡطَٰنٍ ﴾ اونه ووماته پرتاسي هیڅ حکومت (چي تاسي مي په زور کفراوګناهونو ته راکاږلي وای) ﴿ إِلَّآ أَن دَعَوۡتُكُمۡ فَٱسۡتَجَبۡتُمۡ لِي ﴾ مګردومره چي وبللی ماتاسي (ګمراهي ته) نوقبول کړي تاسي (په غولولو) زمابلنه) یعني کله چي ماتاسوته وسوسې اوډګمراهي سینګاراوسمبالښت وړاندي کړې نوتاسو پخپله خوښه هغه زمابلنه ومنله ﴿ فَلَا تَلُومُونِي وَلُومُوٓاْ أَنفُسَكُم ﴾ نوتاسومامه ملامتوئ او ملامت کړئ ځانونه خپل (ځکه داستاسوګناه ده) ﴿ مَّآ أَنَا۠ بِمُصۡرِخِكُمۡ وَمَآ أَنتُم بِمُصۡرِخِيَّ ﴾ نه یم زه اوس فریادرس ستاسي اونه یاست تاسي زمافریادرس (له عذابه دالله نه) ﴿ إِنِّي كَفَرۡتُ بِمَآ أَشۡرَكۡتُمُونِ مِن قَبۡلُ ﴾ (بېشکه زه کافر(بېزاره یم) له هغه اشراکه ستاسي (له الله سره په عبادت کي) ماله پخوا) ﴿ إِنَّ ٱلظَّٰلِمِينَ لَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٞ ﴾ (الله فرمايې) بېشکه چي مشرکانوته شته دردناک عذاب) مفسرین کرام وایې چي: دغه خطبه به هغه وخت چي جنتیان جنت ته اودوزخیان دوزخ ته لاړشي اودوزخیان ابلیس ملامتول شروع کړي نوابلیس دخطابي لپاره اوچت شي اوهغه څه چي قرآنکریم یې حکایت کړي ایراد کړي(۳) حسن بصري رحمه الله وایې: ابلیس به دقیامت په ورځ په دوزخ کي داورپه منبر ودرېږي ،خطبه

---

(۱) الطبري ۱۳/ ۳۰۰

(۲) زادالمسیر۴ / ۳۵۲

(۳) الفخرالرازي ۱۹/ ۱۱۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



به ورکوي چې ګرد خلګ به يې اوري (١) ﴿ وَأُدْخِلَ الَّذِينَ ءَامَنُوا وَعَمِلُوا الصَّلِحَتِ جَنَّتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَرُ خَلِدِينَ فِيهَا بِإِذْنِ رَبِّهِمْ ﴾ (او داخل به کړی شي هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او کړي يې دي ښه عملونه (په هسي) جنتونو کې چې بهېږي لاندي (له مانيوونو) د هغو ويالې پدې حال چې همېشه به وي دوی په دغو کې په اذن د رب د دوی) کله چې الله پاک د بد مرغه کسانو احوال ياد کړل ورپسې يې د نېکمرغه خلګو بيان راوړ چې بنده د ترغيب او ترهيب او خوف او رجا په پړاوکي واوسي نو يې وفرمايل: چې مؤمنان به الله هغو جنتونو ته داخل کړي چې له مانيولاندي يې جنتي ويالې بهېږي د الله په امر به تل هلته اوسي او دا به د الله په هدايت او توفيق مومي ﴿ تَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَمٌ ﴾ (پېشکش د دوی به په دغه جنت کې (د ملکو د ملاقات په وخت کې لفظ د) سلام وي) يعني پرښتې به دوی ته د اجلال او لويي له پلوه د تعظيم لپاره سلام وايي ﴿ أَلَمْ تَرَ كَيْفَ ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا كَلِمَةً طَيِّبَةً كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ ﴾ (آيا نه وينې ته (اې بنده) څرنګه بيانوي الله يو مثال؟ پاکيزه کلمه په شان د هغې پاکيزې ونې دی) دا هغه مثال دی چې الله پاک د ايمان کلمه د پاکيزې ونې په مثال ښودلې ده او د شرک کلمه يې د پليتې ونې په شان بللې ده. ابن عباس رضی الله عنه وايي چې: طيبه کلمه (لااله الا الله) دی او پاکيزه ونه مؤمن دی (٢) ﴿ أَصْلُهَا ثَابِتٌ وَفَرْعُهَا فِي السَّمَآءِ ﴾ چې بېخ د دې ټينګ دی (په ځمکه کې) او څانګې يې (پورته) په (لوري د) آسمان اوږدې) دي ﴿ تُؤْتِي أُكُلَهَا كُلَّ حِينٍ بِإِذْنِ رَبِّهَا ﴾ چې ورکوي خوراک (مېوه) خپله هر وخت په حکم د رب خپل) يعني د الله په تکوين او آسانتيا همداسې د ايمان د کلمې مثال دی چې د مؤمن په زړه کې ټينګه او عمل يې آسمان ته پورته کېږي هر وخت يې ثواب او برکت مومي ﴿ وَيَضْرِبُ اللَّهُ الْأَمْثَالَ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴾ او بيانوي الله مثالونه لپاره د خلګو د دې لپاره چې دوی پند پرې واخلي (او ايمان راوړي) ﴿ وَمَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيثَةٍ كَشَجَرَةٍ خَبِيثَةٍ ﴾ او مثال د خبيثې کلمې (چې د کفر کلمه ده) په شان د هغې خبيثې ونې دی (لکه د مرغوني (خبيث بوټی) ﴿ اجْتُثَّتْ مِن فَوْقِ الْأَرْضِ ﴾ چې د ځمکې له سرڅخه (له بېخه) ايستل شوی دی (څکه چې بېخ يې ثبات نلري) ﴿ مَا لَهَا مِن قَرَارٍ ﴾ چې نه وي دې ته هيڅ قرار (استحکام) (همداسې د کفر کلمه ده چې هيڅ ثبات او ټينګار نلري نه يې ښاخونه شته او نه برکت پکې دی. ابن جوزي رحمه الله وايي چې: د مؤمن هغه اعمال چې د ايمان له برکته څخه هر وخت ترسره کوي له يو ډول مېوې سره مشابه وګڼل چې هر وخت يې راټولوي نو کله چې مؤمن مسلمان (لااله الاالله) ولولي هغه آسمان ته پورته کېږي او بيايې خير او منفعت ده ته راستنېږي او د کافر عمل د منلو وړ نه وي او نه هم (الله) ته اوچتېږي څکه هغه په ځمکه ثابت بېخ نلري او نه هم د آسمان لوري ته ښاخونه

---

(١) القرطبي ٩ / ٣٥٢
(٢) المختصر ٢ / ٢٩٦

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کوي(۱) ﴿ يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ ءَامَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا ﴾ مضبوطوي الله هغه کسان چي ايمان يې راوړی دی په خبره ثابته سره په ژوند د دنياکي) يعني هغوی د توحيد په کلمه باندي چي (لااله الاالله) دی د دنيا په ژوندانه کي ثابت پاتي کوي او په وخت د فتنو کي (د مرګ) کي يې له ايمان څخه نه اړوي ﴿ وَفِي الْآخِرَةِ ﴾ (او په آخرت کي) يعني په قبرکي کله چي دوه پرښتي ورڅخه پوښتنه کوي لکه چي په حديث شريف کي راخي وايې: کله چي مسلمان په قبرکي وپوښتل شي نو هغه په خواب کي وايې چي: (لااله الاالله وان محمداً رسول الله) همدغه د الله جل جلاله وېناده چي فرمايي ﴿ يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ ءَامَنُوا ﴾ (۲) ﴿ وَيُضِلُّ اللَّهُ الظَّالِمِينَ ﴾ او ښويوي الله ظالمان يعني الله نه دوی ته په ژوند کي لارښوونه کوي او نه هم د نکېر منکر د پوښتني په وخت کي کله چي په قبرکي کښېښودل شي ﴿ وَيَفْعَلُ اللَّهُ مَا يَشَاءُ ﴾ او الله کوي هرهغه څه چي اراده وفرمايي له هدايت د مؤمن او اضلال د کافر نه له الله ﷻ څخه څوک پوښتلای نشي خو الله له خلکو پوښتونکی دی ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ بَدَّلُوا نِعْمَتَ اللَّهِ كُفْرًا ﴾ (آيا نه ګورې ته هغو کسانو ته چي د الله نعمت يې په ناشکري سره بدل کړی دی استفهام د تعجب لپاره دی يعني ای اورېدونکي ! ته تعجب نه کوې هغو ته چي دوی د الله نعمت په کفر بدل کړی او دروغ يې ګڼلی.
مفسرين وايي چي: دوی د مکې کفار دي ځکه چي الله پاک دامن او هوسايي خاوند حرم کي مېشت کړی، پراخه روزي يې ورکړي محمد صلی الله عليه وسلم يې پکي مبعوث کړی خو دوی د دغه نعمت قدر نه دی کړی او ورباندي کافران شوي دي نو الله دوی په کاختي او وچکالي اخته کړل ﴿ وَأَحَلُّوا قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ ﴾ او راښکته کړی دوی خپل قوم ځای د هلاکت ته (په خپل کفراو طغيان سره بيا يې پدې قول تفسير وفرمايو چي ﴿ جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا وَبِئْسَ الْقَرَارُ ﴾ (چي دوزخ دی داخل به شي دوی په هغه کي او بد ځای د قرار او هستوګني دی) يعني دوی خپل تبر دوزخ ته غورځولی چي او ربه يې څکي او دوزخ بد هستوګنځی دی ﴿ وَجَعَلُوا لِلَّهِ أَندَادًا لِّيُضِلُّوا عَن سَبِيلِهِ ﴾ (او ګرزولي وو دوی الله ته شريکان لپاره ددې چي ګمراه کړي ( واړوي خلګ ) له لاري دده نه) يعني دوی له الله سره شريکان منلي و وچي د هغوی به يې هسي عبادت کاوو لکه د الله ترڅو خلګ له دين څخه واړوي ﴿ قُلْ تَمَتَّعُوا فَإِنَّ مَصِيرَكُمْ إِلَى النَّارِ ﴾ ووايه (ای محمده دوی ته !) چي نفعه واخلئ تاسي ) په شهواتو سره په دنياکي ) نو بېشکه بيرته ورتله ستاسي اور د دوزخ ته دي ( او دغه وعيد او تهديد دی ) ﴿ قُل لِّعِبَادِيَ الَّذِينَ ءَامَنُوا يُقِيمُوا الصَّلَوٰةَ ﴾ ووايه ( ای محمده !) هغو بندګانو زما ته چي ايمان يې راوړی دی چي ودي دروي لمنځونه (په

---

(۱) زادالمسير ۴ / ۳۶۰.
(۲) أخرجه البخاري او همدغه رايه د ط... هم غوره ده.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



بشپړه توګه له ټولو احکامو سره سم دي اداکړي ) ﴿ وَيُنفِقُوا۟ مِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً ﴾ او ورکړه دي کوي له هغه ماله چي موږ دوی ته ورکړی دی په پټه او ښکاره ﴿ مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِىَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خِلَٰلٌ ﴾ (پخواله راتلو دهغي ورځي چي نشته سودا پلورل او پېرودل اونه دوستي په هغې کي ) يعني پخواله راتلو دهغي ورځي چي نه هلته خپلوي ، ملګرتيا او شفاعت چلېږي اونه هم سودا راکړه ورکړه کېدای شي ځرنګه چي کلام دنېکمرغه اوبدمرغه کسانو په حال احوال کي اوږد شو نو په پای کي يې هغه دلائل چي دخالق اوحکيم ذات په وجود دلالت کوي راوړل اوداسي يې وفرمايل :﴿ ٱللَّهُ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ ﴾ الله هغه ذات دی چي ځمکه اوآسمانونه يې پيداکړي دي يعني الله جل جلاله دغه آسمان اوځمکه داختراع اوابداع په توګه چي پخوايې مثال نه درلود پنځولي دي ﴿ وَأَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً ﴾ اوتازلي کړي يې دي دآسمان له لوري اوبه (باران) ﴿ فَأَخْرَجَ بِهِۦ مِنَ ٱلثَّمَرَٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ ﴾ (۱)نو راايستلي يې دي په دې اوبوسره له هرقسمه مېوو څخه روزي تاسي ته (چي بندګان يې وخوري ) ﴿ وَسَخَّرَ لَكُمُ ٱلْفُلْكَ لِتَجْرِىَ فِى ٱلْبَحْرِ بِأَمْرِهِۦ ﴾ اوتابع کړی يې ده تاسي ته بېړۍ دپاره ددې چي ګرزي په سيندکي په امر(حکم) ددغه الله (تاسو پکي سپرېږئ ، مالونه پکي باروئ اوله يوهيوادنه بل ته يې لېږدوئ ) ﴿ وَسَخَّرَ لَكُمُ ٱلْأَنْهَٰرَ ﴾ اومسخرکړي يې دي تاسي ته ويالې (دخوړو اوبو چي ويې څښئ اوکښتونه ورباندي اوبه کړئ ) ﴿ وَسَخَّرَ لَكُمُ ٱلشَّمْسَ وَٱلْقَمَرَ دَآئِبَيْنِ ﴾ اومسخرکړي يې دي تاسي ته لمراوسپوږمی (ستاسي دګټولپاره) پداسي حال کي چي سم له دستورسره ګرځېدونکي دي اونه ستومانه کېږي ﴿ وَسَخَّرَ لَكُمُ ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ ﴾ اوپه کارکي يې لګولي دي تاسي شپه او ورځ (ترڅو په شپه کي آرام وکړئ اود ورځي دالله روزي ومومئ يوه مود آرام اوخوب اوبله مودمعاش اوژواک لپاره ده ﴿ وَءَاتَىٰكُم مِّن كُلِّ مَا سَأَلْتُمُوهُ ﴾ اودرکړی دی تاسي ځيني ځيني له هرهغه څيزڅخه چي تاسي غوښتی هغه يعني ټول هغه ستاسي دارتياوړشيان چي ستاسو داحوال اومعاش لپاره په کارېږي اوتاسو دحال ياقال په ژبه غوښتی وي درکول شوي دی ﴿ وَإِن تَعُدُّوا۟ نِعْمَتَ ٱللَّهِ لَا تُحْصُوهَآ ﴾ اوکه وشمېرئ تاسي (ګردانواع د ) نعمت دالله نو وبه نه شمېرلی شئ تاسي دادالله نعمتونه (ځکه داترحصر

---

(۱) شهيد سيد قطب رحمه الله وايي چي: همدلته دکائناتو دکتاب دروازه دواړه پلې پرانستل کېږي اوکرښې يې له ورايه دالله جل جلاله دبېشمېره نعمتونو څخه غړېږي ، ځمکي آسمانونه ، لمراوسپوږمی ، شپه او ورځ ، رودونه اوسيندونه ، مېوې شکراداکوي (ان الانسان لظلوم کفار ) همدغه انسان له الله سره شريکان نيسي اوالله هغه خالق اورازق ذات دی چي دانسان لپاره يې دغه کائنات تابع کړي دي کله چي دغه دالله دسترو نعمتونو کاروانونه ګوري اونه يې لولي نه پکي سوچ کوي اونه يې ددغه واړه مخلوق (بشر) لپاره الله مسخر کړي ؟ له آسمانونو باران وربېږي ځمکه مېوې زرغونوي ، په درياب کي بېړۍ چلېږي ، رودونه بهېږي اوانسان ته يې ګټه رسېږي لمر او سپوږمی شپه او ورځ ټول دانسان په چوپړ کي بياهم انسانان شکرنه کوي ؟في ظلال القرآن ۱۳ / ۱۲۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اوشمېرتېردي چي سترتوب اوزياتوالى يې دومره دى چي څوک يې ګڼلاى نشي ﴿إِنَّ ٱلۡإِنسَٰنَ لَظَلُومٞ كَفَّارٞ﴾ بېشکه انسان خامخا لوى ظالم ، ډېرناشکره دى (دخپل ځان لپاره پدې ظالم دى چي دالله له حدودو څخه يې تجاوز کړى اوناشکره پدې چي دالله دنعمتونو انکار يې کړى دى اوچاېياويلي چي ظالم پدې دى چي په سختي کي شکايت کوي اوژاړي خوپه سوکالي کي بيانعمتونه ټولوي اوبل چاته يې نه ورکوي بخيل دى.

**بلاغت:**

پدې آيتونوکي چي دبيان اوبديع کومي ښکلاوي شته په لاندي ډول دي:

۱- تمثيلي تشبيه پدې آيت کي چي: ﴿أَعۡمَٰلُهُمۡ كَرَمَادٍ ٱشۡتَدَّتۡ بِهِ ٱلرِّيحُ﴾ ځکه دتشبيه وجه له متعددڅخه اخيستل شوي ده.

۲- مرسله مجمله تشبيه چي فرمايي: ﴿وَمَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيثَةٖ كَشَجَرَةٍ خَبِيثَةٍ﴾ اودا ﴿مَثَلٗا كَلِمَةٗ طَيِّبَةٗ﴾ .

۳- پدې کلماتوکي چي الله تعالى فرمايي: ﴿أَصۡلُهَا ..... وَفَرۡعُهَا﴾ او ﴿طَيِّبَةٗ ..... خَبِيثَةٍ﴾ او ﴿يُذۡهِبۡكُمۡ ..... وَيَأۡتِ﴾ او ﴿سِرّٗا ..... وَعَلَانِيَةٗ﴾ ﴿أَجَزِعۡنَآ أَمۡ صَبَرۡنَا﴾ پدې ټولو کي دطباق صنعت راغلى دى.

۴- دطباق سلب صنعت پدې کلام کي چي: ﴿فَلَا تَلُومُونِي وَلُومُوٓاْ أَنفُسَكُم﴾ .

۵- تعجب پدې کلام کي چي فرمايي: ﴿أَلَمۡ تَرَ كَيۡفَ ضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلٗا﴾ .

۶- پدې کلام کي تهديد اووعيد راغلى چي فرمايي: ﴿قُلۡ تَمَتَّعُواْ﴾ .

۷- دمبالغي صيغه چي پدې کلماتوکي افاده کېږي ﴿لَظَلُومٞ كَفَّارٞ﴾ ځکه فعول اوفعال دمبالغې صيغې دي.

۸- پدې کلماتوکي چي: ﴿ٱلۡبَوَارِ ،ٱلۡقَرَارُ ،ٱلنَّارِ﴾ مرصع سجع شته چي پرته له څه تکلفه راغلي ده.

***

الله تعالى فرمايي:

﴿وَإِذۡ قَالَ إِبۡرَٰهِيمُ رَبِّ ٱجۡعَلۡ هَٰذَا ٱلۡبَلَدَ ءَامِنٗا وَٱجۡنُبۡنِي وَبَنِيَّ أَن نَّعۡبُدَ ٱلۡأَصۡنَامَ ﴿٣٥﴾ رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضۡلَلۡنَ كَثِيرٗا مِّنَ ٱلنَّاسِۖ فَمَن تَبِعَنِي فَإِنَّهُۥ مِنِّيۖ وَمَنۡ عَصَانِي فَإِنَّكَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴿٣٦﴾ رَّبَّنَآ إِنِّيٓ أَسۡكَنتُ مِن ذُرِّيَّتِي بِوَادٍ غَيۡرِ ذِي زَرۡعٍ عِندَ بَيۡتِكَ ٱلۡمُحَرَّمِ رَبَّنَا لِيُقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ فَٱجۡعَلۡ أَفۡـِٔدَةٗ مِّنَ ٱلنَّاسِ تَهۡوِيٓ إِلَيۡهِمۡ وَٱرۡزُقۡهُم مِّنَ ٱلثَّمَرَٰتِ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُونَ ﴿٣٧﴾ رَبَّنَآ إِنَّكَ تَعْلَمُ مَا نُخْفِي وَمَا نُعْلِنُ ۗ وَمَا يَخْفَىٰ عَلَى ٱللَّهِ مِن شَيْءٍ فِي ٱلْأَرْضِ وَلَا فِي ٱلسَّمَآءِ ﴿٣٨﴾
ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ٱلَّذِي وَهَبَ لِي عَلَى ٱلْكِبَرِ إِسْمَٰعِيلَ وَإِسْحَٰقَ ۚ إِنَّ رَبِّي لَسَمِيعُ ٱلدُّعَآءِ ﴿٣٩﴾ رَبِّ ٱجْعَلْنِي مُقِيمَ ٱلصَّلَوٰةِ
وَمِن ذُرِّيَّتِي ۚ رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَآءِ ﴿٤٠﴾ رَبَّنَا ٱغْفِرْ لِي وَلِوَٰلِدَيَّ وَلِلْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ يَقُومُ ٱلْحِسَابُ ﴿٤١﴾ وَلَا
تَحْسَبَنَّ ٱللَّهَ غَٰفِلًا عَمَّا يَعْمَلُ ٱلظَّٰلِمُونَ ۚ إِنَّمَا يُؤَخِّرُهُمْ لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيهِ ٱلْأَبْصَٰرُ ﴿٤٢﴾ مُهْطِعِينَ مُقْنِعِي
رُءُوسِهِمْ لَا يَرْتَدُّ إِلَيْهِمْ طَرْفُهُمْ ۖ وَأَفْـِٔدَتُهُمْ هَوَآءٌ ﴿٤٣﴾ وَأَنذِرِ ٱلنَّاسَ يَوْمَ يَأْتِيهِمُ ٱلْعَذَابُ فَيَقُولُ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ رَبَّنَآ
أَخِّرْنَآ إِلَىٰٓ أَجَلٍ قَرِيبٍ نُّجِبْ دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ ٱلرُّسُلَ ۗ أَوَلَمْ تَكُونُوٓا۟ أَقْسَمْتُم مِّن قَبْلُ مَا لَكُم مِّن زَوَالٍ
﴿٤٤﴾ وَسَكَنتُمْ فِي مَسَٰكِنِ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ وَتَبَيَّنَ لَكُمْ كَيْفَ فَعَلْنَا بِهِمْ وَضَرَبْنَا لَكُمُ
ٱلْأَمْثَالَ ﴿٤٥﴾ وَقَدْ مَكَرُوا۟ مَكْرَهُمْ وَعِندَ ٱللَّهِ مَكْرُهُمْ وَإِن كَانَ مَكْرُهُمْ لِتَزُولَ مِنْهُ ٱلْجِبَالُ ﴿٤٦﴾
فَلَا تَحْسَبَنَّ ٱللَّهَ مُخْلِفَ وَعْدِهِۦ رُسُلَهُۥٓ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ ذُو ٱنتِقَامٍ ﴿٤٧﴾ يَوْمَ تُبَدَّلُ ٱلْأَرْضُ غَيْرَ ٱلْأَرْضِ وَٱلسَّمَٰوَٰتُ ۖ
وَبَرَزُوا۟ لِلَّهِ ٱلْوَٰحِدِ ٱلْقَهَّارِ ﴿٤٨﴾ وَتَرَى ٱلْمُجْرِمِينَ يَوْمَئِذٍ مُّقَرَّنِينَ فِي ٱلْأَصْفَادِ ﴿٤٩﴾ سَرَابِيلُهُم مِّن قَطِرَانٍ وَتَغْشَىٰ
وُجُوهَهُمُ ٱلنَّارُ ﴿٥٠﴾ لِيَجْزِيَ ٱللَّهُ كُلَّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ سَرِيعُ ٱلْحِسَابِ ﴿٥١﴾ هَٰذَا بَلَٰغٌ لِّلنَّاسِ
وَلِيُنذَرُوا۟ بِهِۦ وَلِيَعْلَمُوٓا۟ أَنَّمَا هُوَ إِلَٰهٌ وَٰحِدٌ وَلِيَذَّكَّرَ أُو۟لُوا۟ ٱلْأَلْبَٰبِ ﴿٥٢﴾ ﴾ ابراهيم: ٣٥ – ٥٢

**مناسبت اوتړاو:**

کله چي الله پاک دخپل وحدانيت په هکله حسي اوسمعي دلائل بيان کړل اودايې وفرمايل چي له الله پرته بل معبودنشته نودلته يې دانبياوو دپلارحضرت ابراهيم عليه السلام هغه څوک چي دتوحيد منار بلل کېږي اودشرک اوبت پرستي سته يې ايستلي يادونه وکړه وروسته يې بيا د ظالمانو دقيامت دورځي دريزاو هغه سپکاوی اوخواري چي دوی به ورسره په قيامت کي لاس اوګريوان وي راوړل

**لغتونه:**

(أجنبنی) ليري کړې ماپه اصل کي داله ( جنب) څخه اخيستل شوي چي پلواوطرف ته وايي اومقصد يې ګوښه کېدل دي (تشخص) دسترګوږ ختل اوکتل چي سترګي له ډېره هيبته پرانستلي پاتي شي (مهطعين) په منډه تلونکي (مقنعی) مقنع اوچت سرچي څوک مخامخ څيزته ګوري (هوآء) خالي (مقرنين) تړلي (الاصفاد) هتکړی اوقيدونه يوېي (صفد ) دی (سرابيلهم) دسربال جمع اوکميس جامې ته وايي (تغشى) پټوي نغاړي.

**تفسير:**

﴿ وَإِذْ قَالَ إِبْرَٰهِيمُ رَبِّ ٱجْعَلْ هَٰذَا ٱلْبَلَدَ ءَامِنًا ﴾ او(يادکړه ) هغه وخت چي وويل ابراهيم ای زمارببه وګرځوه دابښار(مکه) دامن (ښار) چي اوسېدونکي يې په امن کي وي ﴿ وَٱجْنُبْنِي وَبَنِيَّ أَن نَّعْبُدَ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ ٱلْأَصْنَامَ ﴾ اوليري وساته ما او زامن زماله دې نه چي دبتانو عبادت به کوو (غرض له دې دعانه دوام او تثبيت دی چي هغه په توحيد او اسلام کي ټينګ کړي) ﴿ رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضْلَلْنَ كَثِيرًا مِّنَ ٱلنَّاسِ ﴾ ای زماربه ! دغو (بتانو) ښويولي دي ډېر خلک (چي له ايمان څخه يې د کفرلوري ته ګمراه کړي) ﴿ فَمَن تَبِعَنِي فَإِنَّهُۥ مِنِّي ﴾ نو چاچي متابعت کړی دی زما (په توحيد کي) نو بېشکه هغه له (اهل ددين) زما څخه دی ﴿ وَمَنْ عَصَانِي فَإِنَّكَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ او هرچاچي نافرماني کړي ده زما بېشکه ته ښه بخښونکی (دګناهونو) يې ډېر رحم والا يې (په بندګانو) ﴿ رَّبَّنَآ إِنِّيٓ أَسْكَنتُ مِن ذُرِّيَّتِي ﴾ ای زموږ ربه ! بېشکه ما اوسولي دي ځيني له اولادونو (زمازوی اسماعيل او مېرمن هاجره) (۱) نداء يې تکرار د تذلل لپاره راوړه او داچي دمنلو رغبت يې وو ﴿ بِوَادٍ غَيْرِ ذِي زَرْعٍ عِندَ بَيْتِكَ ٱلْمُحَرَّمِ ﴾ پداسي يوه ناوه کي چي د کښت خاوند نه ده په نزد د کوټې ستاچي عظمت والاده ﴿ رَبَّنَا لِيُقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ فَٱجْعَلْ أَفْـِٔدَةً مِّنَ ٱلنَّاسِ تَهْوِىٓ إِلَيْهِمْ ﴾ ای زموږ ربه ددې لپاره مي دوی په دې وادي کي مېشت کړي ) چي سم ودروي (اداکړي) لمونځ نو (مائل) وګرزوه زړونه دځينو خلګو په مينه چي راخغلي دوی ته (په شوق) ابن عباس رضی الله عنه وايي: که چېري يې ويلي وای چي (أفئدة الناس) نو به دفارس او روم او ټولو خلګو ورته راخغاسته او ګڼه ګونه وه خو ويې ويل ( أفئدة من الناس) نو دا يوازي مسلمانان دي. (۲) ﴿ وَٱرْزُقْهُم مِّنَ ٱلثَّمَرَٰتِ لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُونَ ﴾ او روزي ورکړه دوی ته له هرډول مېوو څخه د پاره ددې چي دوی شکر وباسي يعني دوی ته پدغه بې کښته ناوه کي ډول ډول مېوې ورکړه ترڅو ستادنعمتونو شکر پرځای کړي او همداسي الله پاک يې دعا ومنله او مکه يې دامن ځای حرم جوړ کړ چي دهرڅېز مېوې دالله له لوري رزق روزي ورته رادرومي ﴿ رَبَّنَآ إِنَّكَ تَعْلَمُ مَا نُخْفِى وَمَا نُعْلِنُ ﴾ ای زموږ ربه ! بېشکه چي تاته معلوم دي هغه چي موږ يې پټوو او په هغه چي موږ يې ښکاره کوو يعني ای زموږ ربه ته دزړونو په پټو رازونو خبريې ﴿ وَمَا يَخْفَىٰ عَلَى ٱللَّهِ مِن شَىْءٍ فِى ٱلْأَرْضِ وَلَا فِى ٱلسَّمَآءِ ﴾ اونه دی پټ په الله باندي هيڅ څېز (نه) په ځمکه او (نه) په آسمان کي (او څرنګه به ورڅخه پټ شي پداسي حال کي چي الله يې پيدا کونکی او موجود کوونکی دی) ؟ ﴿ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ٱلَّذِى وَهَبَ لِى عَلَى ٱلْكِبَرِ إِسْمَٰعِيلَ وَإِسْحَٰقَ ﴾ ټول ثناصفت هغه الله لره دی چي رابښلي يې دی ماته سره له زوړوالي اسماعيل او اسحاق ؛ ابن عباس رضی الله عنهما وايي چي: کوم وخت اسماعيل عليه السلام زېږېدلو دابراهيم عليه السلام عمر (۹۹) نه نوي کاله وو او اسحاق عليه السلام بيا په يو سل او

(۱) روايت کېږي کله چي حضرت اسماعيل عليه السلام له خپلي موري هاجرې رضی الله عنهانه پيدا شو حضرت ساره رضی الله عنهاته چي دابراهيم عليه السلام مېرمن وه غيرت ودرېدو نو الله جل جلاله ابراهيم عليه السلام ته امر وفرمايو چي اسماعيل عليه السلام او موريې له شام څخه مکې ته ولېږدوي ده ﷺ همغسي وکړل او د زمزم په ځای يې دوی پرېښودل.
(۲) القرطبي ۹ / ۳۷۳

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دوولس كلني (۱۱۲) كي الله پاک وركړ(۱) ﴿إِنَّ رَبِّى لَسَمِيعُ ٱلدُّعَآءِ﴾ بېشكه چي رب زما خامخا بنه اورېدنكى ددعادى (چي څوک يې بولي) ﴿رَبِّ ٱجْعَلْنِى مُقِيمَ ٱلصَّلَوٰةِ وَمِن ذُرِّيَّتِى رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَآءِ﴾ اى ربه زما او ګرزوې ما همېشه اداكونكى دلمانځه (سره له ټولو حقوقو) اوځيني له اولادې زمانه او دعا مى ومنى (دغه دحضرت خليل عليه السلام شپږمه دعاده اودمسلمان لپاره هم دغه غوره دعا ده چي دخپلي اولادې لپاره يې وكړي ځكه ترديې بل بنه كارنشته چي سړى پخپله اواولاد يې دلمانځه اداكونكى وي ځكه چي لمونځ ددين ستنه ده. ﴿رَبَّنَا ٱغْفِرْ لِى وَلِوَٰلِدَىَّ وَلِلْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ يَقُومُ ٱلْحِسَابُ﴾ اى ربه څمور ببنسنه وكړې ماته اومور او پلار زما ته اومؤمنانو ته په هغه ورځ (دقيامت) چي حساب قائمېږي؛ دغه اوومه دعاده اوپدې باندي ابراهيم عليه السلام هغه دعجز اوزاري نه ډكه دمغفرت دعابشپړه كړه چي پكي خپل ځان، مور او پلار اومؤمنان ګرديې يادكړل مفسرين وايې چي: مور اوپلارته يې دغه ببنسنه هغه وخت وغوښتله چي لاورته څرګنده شوي نه وه چي پلاريې دالله دښمن دى قشيري وايې چي دغه ليري نه ده چي مور يې مسلمانه وي ځكه الله پاک دده عذر دهغه دپلارلپاره دببنني په هكله يادكړي دي اودمور يادونه يې نده كړي اودلته خبره دقيامت دورځي دهيبت نه دكوصحنوته اوړدېږي هلته چي زړونه اوقدمونه لړزېږي الله فرمايې: ﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ ٱللَّهَ غَٰفِلًا عَمَّا يَعْمَلُ ٱلظَّٰلِمُونَ﴾ اوګمان مكوه (اى محمده!) چي الله بې خبره دى له هغو كارونو چي ظالمان يې كوي (ځكه دالله جل جلاله سنت داسي دى چي عاصيانوته مهلت وركوي اوبيايې په سخته نيونه سره نيسي ميمون بن مهران وايې: چي دغه دظالم لپاره وعيد اودمظلوم لپاره تعزيت اوغم رازي ده (۲) ﴿إِنَّمَا يُؤَخِّرُهُمْ لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيهِ ٱلْأَبْصَٰرُ﴾ بېشكه هم داخبره ده چي دوى وروستي كوي هغي ورځي ته چي خلاصي به پاتي وي (له ډېري وېري) په هغې كي سترګي (ابوالسعود وايې چي سترګي به خلاصي پاتي وي اوبانوګان به يې له ډېري وېري څخه نه رپېږي (۳) ﴿مُهْطِعِينَ مُقْنِعِى رُءُوسِهِمْ﴾ چي منډي وهونكي به وي دا(مخلوقات) هيچاته به نه ګوري) جګ نيونكي به وي دسرونو خپلو. حسن رحمه الله وايې دخلګو مخونه به پدغي ورځ كي دآسمان لوري ته اوچت وي هيڅوک به هيچاته نه ګوري (۴) ﴿لَا يَرْتَدُّ إِلَيْهِمْ طَرْفُهُمْ﴾ بيرته به نه ګرزي دوى ته رپول دسترګو ددوى (له ډېري وېري او هيبته) ﴿وَأَفْـِٔدَتُهُمْ هَوَآءٌ﴾ اوزړونه ددوى به تش وي (له عقل اوفهمه له جهته دډېرهيبت نه ﴿وَأَنذِرِ ٱلنَّاسَ يَوْمَ يَأْتِيهِمُ ٱلْعَذَابُ﴾ او ووېروه (اى پيغمبره) خلګ له هغي ورځي څخه چي رابه شي دوى ته عذاب (چي دقيامت سخت عذاب

(۱) زادالمسير ۴ / ۳۶۷
(۲) الطبري ۱۳ / ۲۳۶
(۳) ابوالسعود ۳ / ۱۳۳
(۴) القرطبي ۹ / ۳۷۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دی ) ﴿ فَيَقُولُ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓا۟ رَبَّنَآ أَخِّرْنَآ إِلَىٰٓ أَجَلٍ قَرِيبٍ ﴾ نو وبه وايي هغه کسان چي ظلم يې کړی دی ای ربه زموږ وروستی کړه (مهلت راکړه) موږ ته ترنږدې نژدې پوري (چي د تېرو ګناهونو تدارک وکړو) ﴿ نُّجِبْ دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ ٱلرُّسُلَ ﴾ چي قبوله کړو بلنه ستا (دايمان لپاره) اودرسولانو متابعت وکړو (چي موږ ته يې څه راوړي دي ﴿ أَوَلَمْ تَكُونُوٓا۟ أَقْسَمْتُم مِّن قَبْلُ مَا لَكُم مِّن زَوَالٍ ﴾ (دوی ته به توبيخاوويل شي ) آيانه وی تاسي چي تاسي به پخوا (په دنياکي) قسم کاوو چي نشته تاسي ته هيڅ زوال (له دنياڅخه آخرت ته ؟ ( اومراد دلته ددوی له آخرت څخه انکار اودبعث اونشور نه منل دي ﴿ وَسَكَنتُمْ فِى مَسَـٰكِنِ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ ﴾ (اوسېدلي وی تاسي په کورونودهغوکسانوکي چي ظلم يې کړی وو په ځانونو خپلو يعني تاسودهغو ظالمانو په هستوګنځي کي اوسېدلي وی چي موږ هغوی هلاک کړي وو نوآياله دوی څخه موپندنه واخيستل ؟ ﴿ وَتَبَيَّنَ لَكُمْ كَيْفَ فَعَلْنَا بِهِمْ ﴾ اوښکاره شوي وه تاسي ته دغه خبره (په مشاهده اواخبار) چي موږ پردوی باندي څرنګه کارکړی وو ؟ دهلاکت اوانتقام له مخي ﴿ وَضَرَبْنَا لَكُمُ ٱلْأَمْثَالَ ﴾ اوبيان کړي وو موږتاسي ته مثالونه (په دنياکي خوبياهم تاسي عبرت نه واخيست ) ﴿ وَقَدْ مَكَرُوا۟ مَكْرَهُمْ وَعِندَ ٱللَّهِ مَكْرُهُمْ وَإِن كَانَ مَكْرُهُمْ لِتَزُولَ مِنْهُ ٱلْجِبَالُ ﴾ اوپه تحقيق سره کوښښ دمکراوفريب وکړ دوی دمکر اوفريب خپل حال داچي له الله سره ده جزاددغه مکر (چي الله ورباندي محيط دی) اوکه څه هم وو مکرددوی (په توان اواغيزه کي (آن دومره) چي له ځايه به بيرته شي له دغه مکره ددوی غرونه (خوبياهم الله خپل استازي ته ژغورنه اونجات ور وبانبه هغه وخت چي دوی يې دوژلو تکل کړی وو ﴿ فَلَا تَحْسَبَنَّ ٱللَّهَ مُخْلِفَ وَعْدِهِۦ رُسُلَهُۥٓ ﴾ نوپه الله باندي دخلاف کونکي ګمان مه کوه (ای مخاطبه !) چي له خپلو استازوسره به خلاف وکړي (اونصرت به ورونه بښي دوی ته اوظالمان به هلاک نکړي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ ذُو ٱنتِقَامٍ ﴾ بېشکه الله ډېرغالب بنه قوي څښتن دانتقام دی (له هغه چاڅخه چي دده عصيان کوي ) ﴿ يَوْمَ تُبَدَّلُ ٱلْأَرْضُ غَيْرَ ٱلْأَرْضِ وَٱلسَّمَـٰوَٰتُ ﴾ (انتقام اخلي په) هغه ورځ چي بدل به کړی شي دغه ځمکه په بلي ځمکي اوآسمانونه به هم بدل کړی شي (په نورو آسمانونو باندي؛ ابن مسعود رضی الله عنه وايي چي ځمکه به په بله ځمکه چي لکه خالص دسپينو زرو وي بدله کړه شي چي نه به ورباندي وينه توی شوي وي اونه به ورباندي ګناه شوي وي (۱) ﴿ وَبَرَزُوا۟ لِلَّهِ ٱلْوَٰحِدِ ٱلْقَهَّارِ ﴾ او راوبه وزي (خلګ له قبرونو اوپه ښکاره ميدان به) الله ته چي واحد ذات بنه غالب اوقوي دی ودرېږي (يعني ټول خلګ به له خپلو قبرونو راپاڅي

---

(۱) الطبري ۱۳ / اوله ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت دی چي همداځمکه به وي خوغرونه به يې هوار وني به يې له بېخه وابستل شي او رودونه به يې وران اوستوري وشيندل شي داسي ويل شوي : وماالناس بالناس الذی عهدتهم * وماالدار بالدار التی کنت تعلم. داهغه خلګ نه دي چي تاپېژندل اونه هم داهغه کوردی چي تاته معلوم وو.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دالله په وړاندي به ودرېږي نه به يې له الله نه څوک پټولای او نه به يې ژغورلای شي نه به په کورونو او نه په ګورونو کي وي بلکه د محشر په ښکاره ميدان به ولاړ وي ﴿ وَتَرَى ٱلۡمُجۡرِمِينَ يَوۡمَئِذٖ مُّقَرَّنِينَ فِي ٱلۡأَصۡفَادِ ﴾ او وينې به ته دغه ګنهګاران (کافران) چي تړل شوي به وي (له خپلو شيطانانو سره) په دغه ورځ کي) په ځولنو د ځنځيرونو باندي؛ طبري وايي چي ددوی لاسونه او پښې به ددوی له غاړو سره په ځنځيرونو او قيدونو باندي تړلي وي ﴿ سَرَابِيلُهُم مِّن قَطِرَانٖ ﴾ د دوی قميصونه به له زرنو (نانزړو) وي داهغه ماده ده چي ډېر ژر اور اخلي او ښان کله چي پمن شي په همدغو زرنو يې غوړوي او دهغوی تپ بياوچ شي بل ځای ته سرايت نکوي توربخون رنګ او بد بوی لري ﴿ وَتَغۡشَىٰ وُجُوهَهُمُ ٱلنَّارُ ﴾ او پټ به کړي مخونه ددوی اور (ددوزخ) ځکه چي دوی به مکر او تکبر کاوو ﴿ لِيَجۡزِيَ ٱللَّهُ كُلَّ نَفۡسٖ مَّا كَسَبَتۡۚ ﴾ لپاره ددې چي جزاء ورکړي الله هريوه نفس ته (جزاء) دهغه عمل چي کړی يې دی (نېکوکارته نېکي او ګنهګارته د ګناه جزاء ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ سَرِيعُ ٱلۡحِسَابِ ﴾ بېشکه الله ډېر ژر دی حساب دده ) خوراژر به په لنډه موده کي له ټولو خلګو سره حساب وکړي لکه چي په اثر کي راغي ددنيا دورځي په نيمايي ورځ موده کي به يې حساب بشپړ شي ﴿ هَٰذَا بَلَٰغٞ لِّلنَّاسِ ﴾ دغه قرآن خبر رسونه ده لپاره د خلګو (هغه که پېريان او که انسانان دي ددوی دخبرتيا لپاره قرآن نازل شوی چي ډول ډول پندونه او عبرتونه پکښې دي ﴿ وَلِيُنذَرُواْ بِهِۦ ﴾ او لپاره ددې چي وویرولی شي (له عذابه دالله نه ) او دده نصيحت ومني) ﴿ وَلِيَعۡلَمُوٓاْ أَنَّمَا هُوَ إِلَٰهٞ وَٰحِدٞ ﴾ او چي دوی په دې و پوهېږي چي بېشکه خبره هم داده چي الله واحد معبود دی يعني ترڅو دوی ته په ښکاره دلائلو وبريښي چي الله پاک واحد، أحد او فرد، صمد دی ﴿ وَلِيَذَّكَّرَ أُوْلُواْ ٱلۡأَلۡبَٰبِ ﴾ او چي پند واخلي ترې خاوندان د (سليمو) عقلونو (هغه چي صالح او نېکمرغه انسانان دي

بلاغت:

پدې مبارکو آيتونو کي چي د بديع او بيان کومي ښکلاوي شته په لاندي ډول دي:

۱ – بليغه تشبيه پدې کلام کي: ﴿ وَأَفۡـِٔدَتُهُمۡ هَوَآءٞ ﴾ د تشبيه ادات او د شبه وجه حذف شوي يعني زړونه يې لکه هواء له هرڅه نه تش دي نو بليغه تشبيه ده.

۲- پدې کلام کي چي: ﴿ يَوۡمَ تُبَدَّلُ ٱلۡأَرۡضُ غَيۡرَ ٱلۡأَرۡضِ وَٱلسَّمَٰوَٰتُۖ ﴾ دلته ايجاز بالحذف راغلی ځکه داسي ندي ذکر شوي چي ( والسماوات غير السماوات ) او پخواني تبديل وړاندي دلالت کوي.

۳ – د طباق صنعت پدې کلماتو کي چي: ﴿ تَبِعَنِي ..... عَصَانِي ﴾ او ﴿ نُخۡفِي ... نُعۡلِنُ ﴾ او ﴿ ٱلۡأَرۡضِ ... ٱلسَّمَآءِ ﴾ کي راغلی دی.

۴ – اشتقاقي جناس لکه پدې جملو کي ﴿ مَكَرُواْ مَكۡرَهُمۡ ﴾ .

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۵-له مضارع څخه ماضي ته عدول چي پدې کلمه کي راغلی ﴿ وَبَرَزُواْ ﴾ د(یتبرزون) پرځای دی ترڅو په یقیني وقوع باندي دلالت وکړي لکه چي بل ځای هم الله تعالی فرمايلي دي ﴿ أَتَىٰٓ أَمْرُ ٱللَّهِ ﴾ لکه چي واقع شوي اوپه ماضي باندي ورڅخه اخبارکول کېږي.

۶-د استعارې صنعت چي الله فرمايلي: ﴿ فَٱجْعَلْ أَفْـِٔدَةً مِّنَ ٱلنَّاسِ تَهْوِىٓ إِلَيْهِمْ ﴾ شريف رضي وايې چي دغه د استعارې له محاسنو څخه دی او د(هُوِیَ) حقيقت خوله لوړ څخه خوړ ته راکوزېدلو ته وايه شي اومرادځني داچي په منډه اومينه ورته رادرومي لکه چي له ميني ورته را الوزي اوکه يې داسي فرمايلي وای چي: (تحن اليهم) نودومره ښکلالکه چي په ﴿ تَهْوِىٓ إِلَيْهِمْ ﴾ کي شته نه راتله ځکه (حنين) کله دغه چاهم وي چي په مکان کي مقيم وي(۱)

لطيفه:

دلته چي الله پاک (البلد) معرفه راووړ چي: ﴿ ٱجْعَلْ هَٰذَا ٱلْبَلَدَ ءَامِنًا ﴾ اوپه البقرة سورت کي يې نکره ذکرکړچي: ﴿ ٱجْعَلْ هَٰذَا بَلَدًا ءَامِنًا ﴾ حکمت پکي دادی چي په البقره کي ترجوړېدلو (بناء) دمخه دعاوه نويې لومړی دادعاوکړه چي ښار وي اوبيادامن ځای خودلته يې بياله جوړېدلو وروسته دعاده چي دغه ځای د امن اواستقرار کړه(۲) اوهم دغه ددواړو آيتونو ترمينځ دتوپير رازدی. اللهم ارزقنا فهم اسرارکتابک العظيم ووفقنا لاقامة بيتک الکريم آمين

دالله په مرسته دابراهيم د سورت تفسيربشپړشو.

***

(۱) تلخيص البيان ۱۸۴

(۲) حاشية الصاوی علی الجلالين ۲ / ۲۸۶

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



# (۱۵) د الحجر سورت مکي او نه نوي آيتونه لري

## د سورت په وړاندي:

* د الحجر سورت له مکي سورتونو څخه يو دی هغه چي د اسلامي عقيدې بنسټيزي موخي (أهداف) څرګندوي چي وحدانيت ، نبوت او بعث او جزاء دی د سورت محور د سرغړونکو دروغ ګڼونکو او مجرمانو چي د تاريخ په اوږدو کي راغلي په انجام راڅرخي خکه نو د سورت پيل په ويرونه او تهديد کېږي چي د هيبت او ترهي سيوری وربانديي پروت دی فرمايي: ﴿ رُّبَمَا يَوَدُّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَوْ كَانُوا۟ مُسْلِمِينَ ذَرْهُمْ يَأْكُلُوا۟ وَيَتَمَتَّعُوا۟ وَيُلْهِهِمُ ٱلْأَمَلُ ۖ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴾ د آيتونو ترپايه

* سورت د انبياو و دعوت او د هغوی په وړاندي د بدمرغه کسانو او ګمراهانو دريخ را اخلي چي هيڅ نبي نه دی راغلی مګر د تېر ګمراهانو يې وربانديي ملنډي وهلي دي له شيخ الانبياء حضرت نوح عليه السلام څخه راونيسه ترخاتم الانبياء محمد صلی الله عليه وسلم پوری او ګواکي دغه د مکذبينو په هر وخت او زمانه کي تېره لاره ده ﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ فِى شِيَعِ ٱلْأَوَّلِينَ وَمَا يَأْتِيهِم مِّن رَّسُولٍ إِلَّا كَانُوا۟ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴾.

* ورپسې سورت هغه څرګندي نښي چي د دغه کون په پانه کي شته او د مبدع او مقتدر ذات په جلال او عظمت ګواهي ورکوي بيانوي ړومبی د آسمان منظر ، بيا د ځمکي ، ورپسې د ښېرازه کونکو بادونو بيا د ژوند او مرګ ، ورپسې د حشر او نشر لکه چي ټول د الله په عظمت ، جلال او کبريا ګويادي او په وحدانيت او قدرت يې اقرار کوي ﴿ وَلَقَدْ جَعَلْنَا فِى ٱلسَّمَآءِ بُرُوجًا وَزَيَّنَّـٰهَا لِلنَّـٰظِرِينَ وَحَفِظْنَـٰهَا مِن كُلِّ شَيْطَـٰنٍ رَّجِيمٍ ﴾ د آيتونو ترپايه

* د لته سورت لوی د بشريت کيسه را اخلي د هدايت او ضلالت کيسه چي د حضرت آدم عليه السلام په پيدا ينښت او د هغه د سرکښ او مخکښ دښمن ابليس لعين او هغه چي د پرښتو د سجدې کولو آدم ته امر شوی او ابليس سرغړونه کړي او د الله په امر يې اعتراض کړی او د آدم اولادته يې ګوت ځنډنه کړي بيانوي چي: ﴿ وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَـٰٓئِكَةِ إِنِّى خَـٰلِقٌۢ بَشَرًا مِّن صَلْصَـٰلٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ﴾ ترپايه.

* د آدم عليه السلام له کيسې څخه سورت د نورو انبياو و کسټوته لېږدي او رسول الله ﷺ ته د ادېنه ورکوي د هغه زړه ته د لاساينه او تثبيت وربښي چي ناهيلي ورته مخه نکړي نو د حضرت لوط عليه السلام ، شعيب عليه السلام ، صالح عليه السلام کيسې او څه چي د هغوی قومونو ته وروپېښ شوي بيانوي.

* په پای کي سورت رسول الله صلی الله عليه وسلم ته د ستر نعمت د پېرزو کولو يادونه کوي چي الله پاک دغه مجيد معجز کتاب ورته رالستولی او ورته داسي مارېينه کوي چي له صبر څخه کار واخلي د مشرکانو له خوا په تکاليفو دي زغم ولري او ددې زېری ورکوي چي د الله جل جلاله مرسته او نصرت له ده او مؤمنانو سره رانژدې دی فرمايي: ﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَـٰكَ سَبْعًا مِّنَ ٱلْمَثَانِى وَٱلْقُرْءَانَ ٱلْعَظِيمَ ﴾ د سورت ترپايه پوري

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## تسمیه او نوم ول یې:

سورة الحجر یې ځکه بولي چې الله پاک پدې سورت کې هغه څه یاد کړي چې صالح علیه السلام قوم ته ورپېښ شوي او دغه د ثمود یانو قبیله وه د دوی مېشت ځای (حجر وو) چې د مدینې او شام ترمینځ دی دوی ډېر زورور خلک وو له غرونو څخه به یې پرښې سکښتلې او کوټې به یې ښکې جوړولې چې پکې و اوسي لکه چې دوی انګیرله پدې ژوندکې به تل ترتله وي، ورته مرګ او فنانه راځي دوی هم داسې ګلالي بېغمه وو چې د عذاب چیغه د سباوون په وخت کې ورته راغله ﴿فَأَخَذَتۡهُمُ ٱلصَّيۡحَةُ مُصۡبِحِينَ﴾ .

الله تعالی فرمایي:

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿الٓرۚ تِلۡكَ ءَايَٰتُ ٱلۡكِتَٰبِ وَقُرۡءَانٖ مُّبِينٖ (١) رُّبَمَا يَوَدُّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَوۡ كَانُواْ مُسۡلِمِينَ (٢) ذَرۡهُمۡ
يَأۡكُلُواْ وَيَتَمَتَّعُواْ وَيُلۡهِهِمُ ٱلۡأَمَلُۖ فَسَوۡفَ يَعۡلَمُونَ (٣) وَمَآ أَهۡلَكۡنَا مِن قَرۡيَةٍ إِلَّا وَلَهَا كِتَابٞ مَّعۡلُومٞ (٤) مَّا
تَسۡبِقُ مِنۡ أُمَّةٍ أَجَلَهَا وَمَا يَسۡتَـٔۡخِرُونَ (٥) وَقَالُواْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِي نُزِّلَ عَلَيۡهِ ٱلذِّكۡرُ إِنَّكَ لَمَجۡنُونٞ (٦) لَّوۡ مَا تَأۡتِينَا
بِٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ (٧) مَا نُنَزِّلُ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةَ إِلَّا بِٱلۡحَقِّ وَمَا كَانُوٓاْ إِذٗا مُّنظَرِينَ (٨) إِنَّا نَحۡنُ نَزَّلۡنَا
ٱلذِّكۡرَ وَإِنَّا لَهُۥ لَحَٰفِظُونَ (٩) وَلَقَدۡ أَرۡسَلۡنَا مِن قَبۡلِكَ فِي شِيَعِ ٱلۡأَوَّلِينَ (١٠) وَمَا يَأۡتِيهِم مِّن رَّسُولٍ إِلَّا كَانُواْ بِهِۦ
يَسۡتَهۡزِءُونَ (١١) كَذَٰلِكَ نَسۡلُكُهُۥ فِي قُلُوبِ ٱلۡمُجۡرِمِينَ (١٢) لَا يُؤۡمِنُونَ بِهِۦ وَقَدۡ خَلَتۡ سُنَّةُ ٱلۡأَوَّلِينَ (١٣) وَلَوۡ فَتَحۡنَا
عَلَيۡهِم بَابٗا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ فَظَلُّواْ فِيهِ يَعۡرُجُونَ (١٤) لَقَالُوٓاْ إِنَّمَا سُكِّرَتۡ أَبۡصَٰرُنَا بَلۡ نَحۡنُ قَوۡمٞ مَّسۡحُورُونَ (١٥) وَلَقَدۡ جَعَلۡنَا
فِي ٱلسَّمَآءِ بُرُوجٗا وَزَيَّنَّٰهَا لِلنَّٰظِرِينَ (١٦) وَحَفِظۡنَٰهَا مِن كُلِّ شَيۡطَٰنٖ رَّجِيمٍ (١٧) إِلَّا مَنِ ٱسۡتَرَقَ ٱلسَّمۡعَ فَأَتۡبَعَهُۥ
شِهَابٞ مُّبِينٞ (١٨) وَٱلۡأَرۡضَ مَدَدۡنَٰهَا وَأَلۡقَيۡنَا فِيهَا رَوَٰسِيَ وَأَنۢبَتۡنَا فِيهَا مِن كُلِّ شَيۡءٖ مَّوۡزُونٖ (١٩) وَجَعَلۡنَا لَكُمۡ فِيهَا
مَعَٰيِشَ وَمَن لَّسۡتُمۡ لَهُۥ بِرَٰزِقِينَ (٢٠) وَإِن مِّن شَيۡءٍ إِلَّا عِندَنَا خَزَآئِنُهُۥ وَمَا نُنَزِّلُهُۥٓ إِلَّا بِقَدَرٖ مَّعۡلُومٖ (٢١) وَأَرۡسَلۡنَا
ٱلرِّيَٰحَ لَوَٰقِحَ فَأَنزَلۡنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءٗ فَأَسۡقَيۡنَٰكُمُوهُ وَمَآ أَنتُمۡ لَهُۥ بِخَٰزِنِينَ (٢٢) وَإِنَّا لَنَحۡنُ نُحۡيِۦ وَنُمِيتُ وَنَحۡنُ
ٱلۡوَٰرِثُونَ (٢٣) وَلَقَدۡ عَلِمۡنَا ٱلۡمُسۡتَقۡدِمِينَ مِنكُمۡ وَلَقَدۡ عَلِمۡنَا ٱلۡمُسۡتَـٔۡخِرِينَ (٢٤) وَإِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَحۡشُرُهُمۡۚ إِنَّهُۥ حَكِيمٌ عَلِيمٞ (٢٥)
وَلَقَدۡ خَلَقۡنَا ٱلۡإِنسَٰنَ مِن صَلۡصَٰلٖ مِّنۡ حَمَإٖ مَّسۡنُونٖ (٢٦) وَٱلۡجَآنَّ خَلَقۡنَٰهُ مِن قَبۡلُ مِن نَّارِ ٱلسَّمُومِ (٢٧) وَإِذۡ قَالَ رَبُّكَ لِلۡمَلَٰٓئِكَةِ
إِنِّي خَٰلِقُۢ بَشَرٗا مِّن صَلۡصَٰلٖ مِّنۡ حَمَإٖ مَّسۡنُونٖ (٢٨) فَإِذَا سَوَّيۡتُهُۥ وَنَفَخۡتُ فِيهِ مِن رُّوحِي فَقَعُواْ لَهُۥ سَٰجِدِينَ (٢٩)
فَسَجَدَ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ كُلُّهُمۡ أَجۡمَعُونَ (٣٠) إِلَّآ إِبۡلِيسَ أَبَىٰٓ أَن يَكُونَ مَعَ ٱلسَّٰجِدِينَ (٣١) قَالَ يَٰٓإِبۡلِيسُ مَا لَكَ أَلَّا تَكُونَ
مَعَ ٱلسَّٰجِدِينَ (٣٢) قَالَ لَمۡ أَكُن لِّأَسۡجُدَ لِبَشَرٍ خَلَقۡتَهُۥ مِن صَلۡصَٰلٖ مِّنۡ حَمَإٖ مَّسۡنُونٖ (٣٣) قَالَ فَٱخۡرُجۡ مِنۡهَا فَإِنَّكَ رَجِيمٞ
(٣٤) وَإِنَّ عَلَيۡكَ ٱللَّعۡنَةَ إِلَىٰ يَوۡمِ ٱلدِّينِ (٣٥) قَالَ رَبِّ فَأَنظِرۡنِيٓ إِلَىٰ يَوۡمِ يُبۡعَثُونَ (٣٦) قَالَ فَإِنَّكَ مِنَ ٱلۡمُنظَرِينَ (٣٧)

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْوَقْتِ ٱلْمَعْلُومِ ﴿٣٨﴾ قَالَ رَبِّ بِمَآ أَغْوَيْتَنِى لَأُزَيِّنَنَّ لَهُمْ فِى ٱلْأَرْضِ وَلَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٣٩﴾ إِلَّا عِبَادَكَ
مِنْهُمُ ٱلْمُخْلَصِينَ ﴿٤٠﴾ قَالَ هَٰذَا صِرَٰطٌ عَلَىَّ مُسْتَقِيمٌ ﴿٤١﴾ إِنَّ عِبَادِى لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَٰنٌ إِلَّا مَنِ ٱتَّبَعَكَ مِنَ
ٱلْغَاوِينَ ﴿٤٢﴾ وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمَوْعِدُهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٤٣﴾ لَهَا سَبْعَةُ أَبْوَٰبٍ لِّكُلِّ بَابٍ مِّنْهُمْ جُزْءٌ مَّقْسُومٌ ﴿٤٤﴾

الحجر ۱- ۴۴

## لغتونه:

(ربما) (ربّ) دتقليل لپاره او(ما) نكره موصوفه ده (لوما) لكه (لولا) او(هلا) غوندي دتحضيض اوهڅوني لپاره ده (شيع) دشيعة جمع اوتولى (فرقې) ته وايې (نسلكه) موږ پكي داخلېږو(سلك) يوشى په بل كي دننې كولوته وايې (يعرجون) لوړخېژي له (عروج) څخه اخيستل شوى دى (سكرت) منع شوي (بروجا) دبرج جمع اودستورومنزلونوته بروج وايې اصل يې له (برج) يعني ښكاره كېدلو څخه اخيستل شوى وايې چي (تبرج المرأة) كله چي زينت ښكاره كړي (لواقح) د(لاقح) جمع اوهغو بادونو ته ويل كېږي چي باران راولي اوهغه بادونه چي خيرپكي نه وي (الريح العقيم) يې بولي يعني شنډ بادونه او دونولپاره چي (ملقحة) راځي هغه بادونه دي چي ونې ښېرازه (بارداره) كوي (صلصال) هغه وچه خټه چي غږ ځني خېژي (حمأ) توره خټه (مسنون) بوى لرونكي متغيره فراء وايې چي: دغه متغيرته وايې اوله (سننت الحجر) څخه اخيستل شوي كله چي وګرول شي (السموم) تېزهلاكوني بادته وايې.

## دنزول سبب:

له ابن عباس رضى الله عنهما څخه روايت شوى ، وايې چي: يوې مېرمنې په رسول الله ﷺ پسي لمونځ كاوودزيات حسن اوښكلاخښتنه وه نوځيني خلګو به ښكاوو چي په لومړني صف كي ځاى ونيسي ترڅوچي هغه ونه ويني اوځينونورو بيادوروستي صف زيار يوست اوكله چي په ركوع شول نو دبغل لاندي به يې ورته كتل نو الله جل جلاله دغه آيت شريف نازل كړچي ﴿وَلَقَدْ عَلِمْنَا ٱلْمُسْتَقْدِمِينَ مِنكُمْ وَلَقَدْ عَلِمْنَا ٱلْمُسْتَـْٔخِرِينَ﴾ (۱)

## تفسير:

﴿الٓر﴾ پدې كي دقرآنكريم اعجازته اشاره ده چي دغه عجيب كتاب دالله جل جلاله كلام اوله همداسي هجايې حروفو اوتورو څخه اخيستل شوى چي تاسوهم ورباندي ګرېږئ او الف ، لام ، راء دي ﴿تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْكِتَٰبِ﴾ دغه (چي وروسته راځي ) آيتونه دكتاب دي هغه چي په فصاحت اوبلاغت كي بشپړ اوله بشري توان څخه پورته دى ﴿وَقُرْءَانٍ مُّبِينٍ﴾ اوڅرګند قرآن دى عظيم الشان دى چي خلل اواضطراب ورته لاره نه لري ﴿رُّبَمَا يَوَدُّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟﴾ دېرځله به آرزوكوي هغه كسان چي كافران

(۱) اسباب النزول ۱۸۵ والقرطبى ۱/ ۱۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



شوي دي ﴿ لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ ﴾ کاشکي دوی مؤمنان وای (په دنیاکي ) داپه هغه وخت کي چي دآخرت کړاوونه خپل احوال اود مؤمنانو حال ويني ﴿ ذَرْهُمْ يَأْكُلُوا وَيَتَمَتَّعُوا ﴾ دوی پرېږده ای (محمده !) چي وخوري (لکه چارپايان) اوګټي اخلي (په فاني دنياکي) ﴿ وَيُلْهِهِمُ الْأَمَلُ ﴾ او مشغول کړي دوی اوږد اميد( له سوچ کولو دالله له عذاب څخه په نجات موندلو باندي ﴿ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴾ نوژر دی چي دوی به پوه شي (په خپل عاقبت ) کله چي قيامت ويني اود خپل عمل وبال وځکي پدې کي ددوی لپاره وعيد اوتهديد نغښتی دی ﴿ وَمَا أَهْلَكْنَا مِن قَرْيَةٍ ﴾ اوندی هلاک کړی موږ له (أهل) د هيڅ کلي (له هغوکليونه چي دالله د پيغمبرانو تکذيب يې کاوو ﴿ إِلَّا وَلَهَا كِتَابٌ مَّعْلُومٌ ﴾ مګرخولپاره د(هلاک ) ددوی به يو معلوم وخت وو﴿ مَا تَسْبِقُ مِنْ أُمَّةٍ أَجَلَهَا ﴾ نه ړومبی کېږي هيڅ أمت له وخته دهلاک خپل ﴿ وَمَا يَسْتَأْخِرُونَ ﴾ اونه وروسته کېږي ؛ ابن کثير وايي چي: پدې کي داهل مکې لپاره تنبيه ده او ورته لارښوونه کوي چي خپل ناوړه کړه وړه دي پرېږدي عناد او الحاددي نه کوي ځکه چي دهلاکت موجب دی (۱)﴿ وَقَالُوا يَا أَيُّهَا الَّذِي نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ ﴾ (اوويل: دوی (کفارو محمدته) ای هغه سړيه چي درباندي ذکر نازل شوی دی ) يعني دمکې کفارو به محمدصلی الله عليه وسلم ته دملنډو او استهزآء په ډول ويل: ای هغه سړيه چي ته ګمان کوي اودعوی لري چي پرتاقرآن نازل شوی دی ﴿ إِنَّكَ لَمَجْنُونٌ ﴾ بېشکه ته خامخا لېونی يې ! دلته يې خبرپه اِن اولام سره مؤکدراوړل ترڅو دمحمدصلی الله عليه وسلم په سپکاوي او ملنډوکي يې مبالغه څرګنده شوي وي (العياذبالله) ﴿ لَّوْ مَا تَأْتِينَا بِالْمَلَائِكَةِ إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ﴾ ولي نه راولې موږته ملائکي (ترڅوستاپه رسالت شاهدي ووايي که چېري ته پخپله دعوی کي رښتونی يې چي پيغمبريې الله پاک ددوی په رد کي وفرمايل: ﴿ مَا نُنَزِّلُ الْمَلَائِكَةَ إِلَّا بِالْحَقِّ ﴾ چي نه نازلوو موږ ملائکي مګرپه حق (عذاب) سره (دهغه چالپاره چي دتعذيب اوهلاک اراده يې وکړو ) ﴿ وَمَا كَانُوا إِذًا مُّنظَرِينَ ﴾ اونه به وي پدې وخت کي دوی ته مهلت ورکړل شوی (په تاخيرسره اوغرض دلته دادی چي دالله جل جلاله عادت پدي جاري شوی دی چي الله پاک ملائکي نه نازلوي مګردهغه چالپاره چي يومخ ايزه يې دهلاکت اراده ورته شوي وي خودغه له ببخه ايستل په هلاک سره يې دمحمدي أمت لپاره اراده نشته ځکه الله پدې علم لري چي ددوی له پشته به ډاسی کسان پيداکېږي چي دالله جل جلاله عبادت به کوي نوپدې کي ددوی د وړانديز خواب راغلی دی ﴿ إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ﴾ بېشکه موږ پخپله نازل کړی دی ذکر(پند قرآن په تاباندي ای محمد !) اوبېشکه موږ خامخا ده ساتونکي يو (له تغييراوتبديل نه . مفسرين کرام وايي چي الله پاک دقرآنکريم دساتني تکفل په

(۱) المختصر ۲ / ۳۰۸

Bawar.net



خپله اخیستی نو هیڅوک نشي کولای چي پکي زیادت او نقصان وکړي او یا هم پکي تغیر او تبدیل راولي لکه چي په نورو آسماني کتابونو کي یې راوړی وو ځکه دهغوی ساتنه یې همغو اُمتونو ته حواله کړې وه چي الله فرمایلي: ﴿ بِمَا ٱسْتُحْفِظُوا۟ مِن كِتَٰبِ ٱللَّهِ ﴾ وګوره ددې آیت او هغه آیت ترمینځ څومره فرق دی ؟ دلته الله فرمایي ﴿ وَإِنَّا لَهُۥ لَحَٰفِظُونَ ﴾ چي دلته یې الله پخپله ساتنه کوي او هلته یې دوی ته سپارلې هغوی هم پکي تبدیل او تغیر راوستی دی ﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ فِى شِيَعِ ٱلْأَوَّلِينَ ﴾ او خامخا په تحقیق لیږلي وو موږ ( رسولان) په خواله تا (ای محمده) په ټولیو دپخوانیو (اُمتونو) کي ﴿ وَمَا يَأْتِيهِم مِّن رَّسُولٍ إِلَّا كَانُوا۟ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴾ او نه به راتو هغوی ته هیڅ پیغمبر مګر حال دا چي وو به دوی (دکبر او عناده) په هغه پوري به یې مسخرې کولې (پدې کي درسول الله صلی الله علیه وسلم لپاره ډاډینه او تسلا ده او معنا دا چي لکه څرنګه چي په تا پسي دغه مشرکان ملنډې وهي هغسي په پخوانیو پیغمبرانو باندې هم ملنډې وهل شوي دي نو ته مه خفه کېږه ! ﴿ كَذَٰلِكَ نَسْلُكُهُۥ فِى قُلُوبِ ٱلْمُجْرِمِينَ ﴾ هم داسي ننې باسو (باطل ، ضلالت او تمسخر په انبیاوو ) په زړونو دمجرمینو (دزماني ستا هم لکه چي نني ایستلی مو وو دپخوا زماني دکفارو په زړونو کي چي په انبیاوو به یې تمسخر کاوو ﴿ لَا يُؤْمِنُونَ بِهِۦ ۖ وَقَدْ خَلَتْ سُنَّةُ ٱلْأَوَّلِينَ ﴾ چي ایمان نه راوړي په دغه (قرآن) او په تحقیق تېره شوې ده لاره دالله په (هلاکت دکفارو ) ړومبنیو (نو دغه دزماني کفار هم هلاک ته خوراتږدې دي وروسته بیا الله جل جلاله فرمایې چي دمکې کفاروته دایماني دلائلو کمی نشته خو دوی عناد او تکبر کوي او پخپله ګمراهي کي غوپه دي فرمایې: ﴿ وَلَوْ فَتَحْنَا عَلَيْهِم بَابًا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ فَظَلُّوا۟ فِيهِ يَعْرُجُونَ ﴾ او که پرانستلی وی موږ په دغو(کفارو )دروازه له آسمانه پس تل ګرزېدلي وای دوی په هغه دروازه کي چي ختلای آسمان ته (ځویې پرښتې او ملکوت لیدلي وای ﴿ لَقَالُوٓا۟ إِنَّمَا سُكِّرَتْ أَبْصَٰرُنَا ﴾ نو خامخا به یې (له ډېره عناده ) ویلي وای بېشکه هم دا خبره ده چي تړلې شوي دي سترګي زموږ( او موږ غولېدلي یو په دې ختلو او پورته کېدلو باندې ﴿ بَلْ نَحْنُ قَوْمٌ مَّسْحُورُونَ ﴾ بلکه موږ یو قوم یو چي جادو راباندې شویدی (ددوی له خوا) یعني پرموږ محمد کوډې کړې او هسي راته ځرګند کړي چي دغه له سحرنه پرته بل هیڅ نه دی. امام رازي وایې: که مشرکان تل په دغو زینو آسمان ته ختلای او دالله ملکوت او سلطان یې پخپلو سترګو لیدلای چي څرنګه پرښتې دالله په عبادت کي لګیاو دالله نه وېرېږي خو بیا به هم دوی په دغه رؤیت کي شک او شبه کوله او په کفر او عناد کي به پاتي کېدل لکه چي د نورو ټولو معجزاتو څخه منکر شوي دي لکه دسپوږمۍ چاودېدل او د معجز قرآن نازلېدل هغه چي انسانان او پېریانان یې په مثل یو وړوکی سورت هم راوړلای نشي (۱) بیا الله تعالی پخپل قدرت او وحدانیت دلائل راوړي ، فرمایې: ﴿ وَلَقَدْ جَعَلْنَا فِى ٱلسَّمَآءِ بُرُوجًا ﴾ او خامخا په تحقیق سره پیدا کړي دي موږ په آسمان کي برجونه (چي هلته پکي (افلاک او

---

(۱) الفخرالرازي ۱۹ / ۱۶۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



كواكب ګرزي) ﴿ وَزَيَّنَّـٰهَا لِلنَّـٰظِرِينَ ﴾ اوښايسته كړي دي موږ دغه( آسمانونه په ستورو ) لپاره دكتونكو(چي ورباندي خوشحال شي ) ﴿ وَحَفِظْنَـٰهَا مِن كُلِّ شَيْطَـٰنٍ رَّجِيمٍ ﴾ اوساتلى دى موږ دغه (آسمان ددنيا )له هره شيطانه ويشتلى شوي (رټلى شوي دالله له رحمته ) ﴿ إِلَّا مَنِ ٱسْتَرَقَ ٱلسَّمْعَ فَأَتْبَعَهُۥ شِهَابٌ مُّبِينٌ ﴾لېكن هغه (شيطان ختونكى آسمان ته) چي غلا كړي (خبره اورېدلي شوي له (ملائكو ) پس وروپسې شي ښكاره ستورى (نوپخپلي لمبې سره يې وسوځوي) ﴿ وَٱلْأَرْضَ مَدَدْنَـٰهَا وَأَلْقَيْنَا فِيهَا رَوَٰسِىَ ﴾ اوځمكه غځولي( غوړولي ) ده موږ دغه ځمكه اوغورځولي وه موږ په دغه (ځمكه) كي غرونه (مضبوط )(١)﴿ وَأَنۢبَتْنَا فِيهَا مِن كُلِّ شَىْءٍ مَّوْزُونٍ ﴾ اوزرغون كړي دي موږ پكي له هرشي اندازه كړى شوي څخه (دحكمت اوتقديرپه باريكه كچه سره له مېوو ، كښتواوهرڅېزنه ﴿ وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيهَا مَعَـٰيِشَ ﴾اوپيداكړي مودي تاسي لره پدې (ځمكه) كي (اسباب د ) دمعيشت ( له خوراك ،څښاك نه) ﴿ وَمَن لَّسْتُمْ لَهُۥ بِرَٰزِقِينَ ﴾ اوهغه شيان چي نه ياست تاسي هغوى ته روزي وركونكي لكه عيال اولاد اوحيوانات اونورچي موږ يې خوراک پيداكوو ، تاسي نه ياست ) ﴿ وَإِن مِّن شَىْءٍ إِلَّا عِندَنَا خَزَآئِنُهُۥ ﴾ (اونشته هيڅ څيزمګرزموږ په نزددي دهغه خزانې ) يعني نشته هيڅ روزي دبندګانو او منافع دهغوى مګرله موږ سره يې خزانې اوګوداموند دي ﴿ وَمَا نُنَزِّلُهُۥٓ إِلَّا بِقَدَرٍ مَّعْلُومٍ ﴾ اونه نازلوو هغه شى مګرپه معلومي اندازې سره (چي دخلګوارتيااو مصالح موځنګه چي غواړو او اراده لرو په نظركي نيولي دي ) ﴿ وَأَرْسَلْنَا ٱلرِّيَـٰحَ لَوَٰقِحَ ﴾ اوراليږلي دي موږ بادونه بلاربوونكي يعني وريځ ښېرازه كړي اوباران واوروي ونې ښېرازه كړي اوپاڼي ، اوښكي وغوړوي نوبادته څكه بلاربونكى وويل شو ﴿ فَأَنزَلْنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَأَسْقَيْنَـٰكُمُوهُ ﴾ (پس نازله كړي دي اوبه له آسمان څخه نو دروڅښلې موږ تاسي ته دغه اوبه )يعني موږ له آسمانه څوږ اوبه تاسي ته راولېږلې چي ستاسو او حيواناتو دڅښاک او د ځمكو دخړوبولولپاره موپه كارشي ﴿ وَمَآ أَنتُمْ لَهُۥ بِخَـٰزِنِينَ ﴾ (اونه يې تاسي دغواوبو لره خزانه كونكي ، ساتونكي) يعني تاسودغواوبوپه خزانه كولو اوساتلوتوان نلرئ بلكه موږ يې پخپل قدرت درته زېرمه كوو چي په كوهيو، څاګانواو رودونوكي وي اوكه موږ وغواړو دغه اوبه ژوري دځمكي تل ته تني باسو اوتاسوبه له تندي ومرئ لكه چي الله فرمايي: ﴿ قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ أَصْبَحَ مَآؤُكُمْ غَوْرًا فَمَن يَأْتِيكُم بِمَآءٍ مَّعِينٍ ﴾ الملک: ٣٠

(١) امام فخررازي وايي: چي دغه ځمكه خوراستره ګرده اودستري كرې هري كوچنى توټې ته چي يې وګوري لكه مستوي سطح غوندي ځرګند يږي نودځمكي دغوړولو په هكله كوم اشكال نه راځي اوپدې باندي دالله جل جلاله داقول هم دليل كيداى شي چي الله فرمايي: ﴿ وَٱلْجِبَالَ أَوْتَادًا ﴾ النبأ: ٧ غرونه يې اوتاد(مېخونه) وبلل سره له دي چي دغرونو ستري مستوي سطحي شته دلته دځمكې په هكله هم داسي ده. الفخرالرازي ١٩/١٧٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ وَإِنَّا لَنَحْنُ نُحْيِۦ وَنُمِيتُ وَنَحْنُ ٱلْوَٰرِثُونَ ﴾ (او بېشکه موږ خامخا هم راژوندي کول او هم وژل کوو او هم دا موږ وارث پاتي کېدونکي يو) يعني ژوند او مرګ زموږ په لاس کي دی او موږ د خلګو له فنا کېدلو څخه وروسته پاتي کېدونکي او د ټولو راتګ بيرته موږ ته دی ﴿ وَلَقَدْ عَلِمْنَا ٱلْمُسْتَقْدِمِينَ مِنكُمْ وَلَقَدْ عَلِمْنَا ٱلْمُسْتَـْٔخِرِينَ ﴾ (او خامخا په تحقيق معلوم دي موږ ته رومبني له تاسي او خامخا په تحقيق معلوم دي موږ ته وروستني خلګ) يعني زموږ علم په ټولو خلګو که مړه او که ژوندي دي محيط دی. ابن عباس رضی الله عنهما وايي چي: (مستقدمين) ټول هغه کسان چي د آدم عليه السلام له وخته مړه شوي او مستأخرين بيا هغه کسان چي ژوندي او د قيامت تر ورځي پوري راتلونکي دي [1] مجاهد رحمه الله وايي چي: مستقدمين پخواني اُمتونه او مستأخرين محمدي اُمت غرض دا چي د الله جل جلاله علم او پوهه په پخوانيو او وروستنيو باندي احاطه کړي د بندګانو احوال له الله څخه پټ او الونيانه دي او دغه ګواکي د الله په بشپړ علم باندي وروسته له بشپړ قدرت څخه دليل نيول دي ﴿ وَإِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَحْشُرُهُمْ ﴾ او بېشکه رب ستا هم دی به را ټولوي دوی (په محشر کي د حساب او جزاء لپاره) ﴿ إِنَّهُۥ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴾ بېشکه چي دغه الله ښه حکمت والا دی (په خپل صنعت کي) ښه علم والا دی (په خپل مخلوق باندي کله چي الله مرګ او فنا راوړه بعث او جزايې ذکر کړه نو دوی يې د خپلي مبدأ او تکوين خواته متوجه کړل چي له يوه ذات څخه يې پنځولي دي تر څو دې لوري اشاره وکړي چي په پيدا ايښنت باندي قادر ذات په فنا او اعاده هم توان لري او بيا يې د ابليس لعين د ښمني چي د دوی له پلار آدم سره يې کړي وه په ياد کړه تر څو يې ځني وېروي ويې فرمايل: ﴿ وَلَقَدْ خَلَقْنَا ٱلْإِنسَٰنَ مِن صَلْصَٰلٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ﴾ او خامخا په تحقيق موږ پيدا کړی دی انسان له وچي ختې چي کړنګېده (کله چي وګرول شي لکه کودري) له توري ختې خُساشوي نه ﴿ وَٱلْجَآنَّ خَلَقْنَٰهُ مِن قَبْلُ مِن نَّارِ ٱلسَّمُومِ ﴾ (او د پېريانو پلار موږ پخوا له انسانه له بې لوګي اوره پيدا کړی دی) يعني تر آدم رومبی موږ (جان) يعني شيطانان او د دوی رئيس ابليس له هغه سخته اوره پيدا کړي هغه وژونکی اور. مفسرين کرام وايي چي: له (جان) څخه مراد دلته ابليس دی د پېريانانو پلار ځکه له هغه څخه پېريانان زېږېدلي نو هغه يې پلار دی لکه چي آدم د انسان پلار دی ﴿ وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّي خَٰلِقٌۢ بَشَرًا مِّن صَلْصَٰلٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ﴾ (او ياد کړه) هغه وخت چي وويل: رب ستا ملائکو ته چي بېشکه زه پيدا کونکی يم ديوه بشر له کودرو کړنګېدونکو وچو څخه چي (جوړ شوي دي) له توري ختي خوساشوي څخه) يعني او ياد کړه ای محمده! وخت دو ينا د رب ستا چي پرښتوته يې هسي ويل. ابن کثير وايي چي: پدې کي ددې څرګندونه ده چي د آدم عليه السلام يادونه يې ملائکو ته پخوا له پيدا ايښنت دده څخه کړې او دهغه تشريف يې پدې فرمايلی چي پرښتوته يې دده په وړاندي د سجدې کولو امر کړی

[1] دغه د طبري غوره دی او آيت په اته دوله تأويل سره راغلی دی چي په بحر کي شته او بيا يې ويلي چي دغه تمثيل دی حصر نه دی البحر ٥/٤٥١

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دی اوهمداسي چي ابليس دحسد اوکفرله مخي له سجدې کولوڅخه ممانعت وکړ[1] ﴿ فَإِذَا سَوَّيْتُهُۥ ﴾ نوکله چي برابرمي کړ دغه بشر(اوکامل انسان معتدل الاعضآء مي کړ) ﴿ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِن رُّوحِى فَقَعُوا لَهُۥ سَٰجِدِينَ ﴾ اوپومي کړپه ده کي روح خپل نوپرېوزئ تاسي ده ته پدې حال کي چي سجده کونکي يئ؛ په سجده دتکريم اوتحيې سره نه دعبادت سجده مفسرين وايي چي: دروح نسبت الله ته دشرافت اوتکريم له لوري دی لکه چي وايي: (بيت الله، ناقة الله، شهر الله) اودغه دملک نسبت خپل مالک ته دی اودصنعت نسبت خپل صانع ته دی ﴿ فَسَجَدَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ ﴾ نوسجده وکړه ملائکوټولو ددوی تمامو(هيچاهم ممانعت ونکړ) ﴿ إِلَّآ إِبْلِيسَ أَبَىٰٓ أَن يَكُونَ مَعَ ٱلسَّٰجِدِينَ ﴾ مګرخوابليس چي منع يې راوړه له دې نه چي شي دی سره له سجده کونکو(آدم ته) استثناء منقطع دی ځکه ابليس خوله ملائکوڅخه نه دی ([2]) هغه له اوره پيداشوی اودوی له نورڅخه دوی هغه څوک دي چي دالله له امرڅخه سرغړونه نکوي اوهغه وکړه نويقيني ده چي شيطان ددوی له ډلي څخه نه دی اوځرنګه چي دی دهغوی دصفونو په مينځ کي وو ځکه خطاب ورته راغی ﴿ قَالَ يَٰٓإِبْلِيسُ مَا لَكَ أَلَّا تَكُونَ مَعَ ٱلسَّٰجِدِينَ ﴾ (وفرمايل (الله) ای ابليسه! څه (مانع دی) تالره په دې کي) چي نه شوې ته سره له سجده کونکو؟) اوڅه شي تاته دممانعت بلنه درکړه؟ دغه استفهام د توبيخ اوتبکيت لپاره دی ﴿ قَالَ لَمْ أَكُن لِّأَسْجُدَ لِبَشَرٍ خَلَقْتَهُۥ مِن صَلْصَٰلٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ﴾ (وويل (ابليس) چي زه نه يم (لائق) ددې کارچي سجده وکړم (داسي) بشرته چي تاپيداکړی دی له کودرو ګړنګېدونکو وچ له توري ختې څخه شوي) هغه له ختي اوزه له اوره يم نوځرنګه ستردوروکي اوبهتر د کهترلپاره سرپه سجده شي؟ دالله دښمن خپل ځان تردې لوړ وګاڼه چي آدم ته سجده وکړي اودده کبراورخې (کينې) هغه دالله جل جلاله دامرله امتثال اوپرځای کولو څخه راوګرزاوو ﴿ قَالَ فَٱخْرُجْ مِنْهَا فَإِنَّكَ رَجِيمٌ ﴾ نو وفرمايل (الله ابليس ته) نو ووزه ته له (آسمانه) نوبېشکه ته رټلی شوی يې (زماله رحمت نه) ﴿ وَإِنَّ عَلَيْكَ ٱللَّعْنَةَ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلدِّينِ ﴾ نوبېشکه پرتاباندي دي لعنت وي ترورځي دجزاء پوري ﴿ قَالَ رَبِّ فَأَنظِرْنِىٓ إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴾ وويل: (ابليس لعين) ای زماربه! پس مهلت راکړه ماته ترهغې ورځي پوري چي بياپورته کولی شي (خلګ) ﴿ قَالَ فَإِنَّكَ مِنَ ٱلْمُنظَرِينَ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْوَقْتِ ٱلْمَعْلُومِ ﴾ وفرمايل: (الله) نوبېشکه چي ته له مهلت ورکول شويوڅخه يې ترهغې ورځي دمعلوم وخت (قيامت) پوري (چي دخلګومرګ راځي. قرطبي وايي چي شيطان ځکه

---

([1]) المختصر ۲/۲۱۱

([2]) موږېدې هکله په سورة البقره اوهم داسي په الاعراف کي تحقيق اوڅېړنه کړي اودحسن بصري رحمه الله ويناموپخوالاراوړي چي هغه وايي: زمادي په الله سوګندوي که به ابليس دسترګوپه رپ کي هم دملائکوڅخه شوی وي زمونږ کتاب النبوة والانبيآء ۱۲۸ مخ وګورئ هلته بشپړبيان شته

Bawar.net



ترقیامته پوری مهلت وغوښت چي ونه مري ځکه چي له بعث نه وروسته مرګ هم‌ونشته نو الله پاک هغه ته دخلګوترمړيني پوري وخت ورکړنوبه ابليس مړشي اوبيرته به راپاڅي (١) ﴿ قَالَ رَبِّ بِمَآ أَغْوَيْتَنِي لَأُزَيِّنَنَّ لَهُمْ فِي ٱلْأَرْضِ ﴾ وويل: (ابليس) اى زماربه قسم دى مالره په ګمراه کولو دتامالره چي خامخاښايسته به کړم هرومرو ګناهونه دوى ته په ځمکه کي يعني دآدم اولادې ته به ګناهونه ښايسته کړم ﴿ وَلَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ﴾ اوخامخازه به هرومرو ګمراهان کړم دوى ټول (له سمي لاري) ﴿ إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ ٱلْمُخْلَصِينَ ﴾ مګرخو هغه بندګان ستاله دوى څخه چي(له ګناهونو) خالص کړى شوي دي (ستادطاعت اورضالپاره زماپه هغوى باندي دګمراه کولو وس نه رسېږي ﴿ قَالَ هَٰذَا صِرَٰطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيمٌ ﴾ نو وفرمايل: (الله) دغه لاره ده ترماپوري برابره (هغه داچي: ) ﴿ إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَٰنٌ ﴾ ببشکه خاص بندګان زما(مؤمنان) چي دي تاته پردوى باندي هيڅ تسلط نشته (چي ګمراهان يې کړې) ﴿ إِلَّا مَنِ ٱتَّبَعَكَ مِنَ ٱلْغَاوِينَ ﴾ (مګرهغه څوک چي متابعت کوي ستاله ګمراهانو) دلته استثناء منقطع ده يعني (غاوين) له مخلصومؤمنانوڅخه نه دي ځکه دي ورباندي زور رسېږي؛ دشيطان په هغوخلګوچي له الله نه ليري او تښتېدلي دي زور بردى اولېوه هغه مېږه خوري چي ليري اوګوښه ځري ﴿ وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمَوْعِدُهُمْ أَجْمَعِينَ ﴾ نوبېشکه چي دوزخ خامخاځاى دوعدې ددغوټولو تابعانوستادى ﴿ لَهَا سَبْعَةُ أَبْوَٰبٍ لِّكُلِّ بَابٍ مِّنْهُمْ جُزْءٌ مَّقْسُومٌ ﴾ چي دي دوزخ لره اوه دروازې دي دهري دروازې به له دغوګمراهانوڅخه معلومه ونډه وي؛ يعني ددوزخ اوه دروازې دي، دوى به له دې ټولو ورته رادرومي ځکه چي دوى زيات دي اوله علي رضى الله عنه نه ثابته شوي چي دوزخ پوړ پوړدى اوځيني يې ترځينوسخت اوتکليفي دي. ابن کثيروايې چي: دوى به دعمل په تله ټول له خپلي خپلي دروازې دوزخ ته ورلوېږي اوهلته به دخپل عمل په اندازه ددوزخوپه اطباقوکي پراته وي(٢)

**بلاغت:**

پدې آيتونوکي چي دبديع اوبيان ښکلاوي شته هغه دادي:

١- مرسل مجازلکه: ﴿ وَمَآ أَهْلَكْنَا مِن قَرْيَةٍ ﴾ چي دلته ذکرد محل اومراد ځني حال دى.

٢- تخيليه استعاره لکه پدې قول دالله کي چي راځي ﴿ عِندَنَا خَزَآئِنُهُۥ ﴾ دغه دالله جل جلاله دبشپړقدرت لپاره تمثيل دى دالله قدرت يې په هرڅه باندي له خوندي خزانوسره مشابه کړچي دهرڅه راايستل له حکمت سره صورت نيسي او داهم داستعارې په ډول.

٣- اشتقاقي جناس لکه: ﴿ خَزَآئِنُهُۥ ﴾ ﴿ بِخَٰزِنِينَ ﴾.

---

(١) القرطبي ١٠/٢٧

(٢) المختصر ٢/٣١٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


۴- سجع کله چي په اورېدلو کي خورا تاثیر لري لکه: ﴿ٱلۡمُجۡرِمِینَ ... ٱلۡأَوَّلِینَ ... ٱلۡمُنظَرِینَ﴾.

لطیفه:

وایې چي یوتن غوښتل ټول ادیان وازمویې چي کوم یودین ښه اوسم دی نو یې تورات ، انجیل اوقرآن ته مخه کړه هغه پخپله خطاط وو له دریو سره کتابونو څخه یې یوه یوه نسخه ولیکله ډېره ښایسته خو پکي زیاتوالی او کمبود یې هم وکړ بیایې تورات دیهودانو علماوو ته تقدیم کړ هغوی چي واړاوو ، راواړاوو نو یې ده ته مال دولت ورکړ بیایې انجیل قسیسانو ته وړاندي کړ دهغوی هم خوښ شو او په ډېرو روپو یې ځني رانیول ، وروسته یې قرآنکریم دمسلمانانو سپین روبو عالمانو ته وښودل هغوی وکتل نو یې زیاتوالی او کمبود پکي وموندل دی یې وتړل او بیایې جوړ وډبول پاچاته یې لاس تړلی بوت او هغه یې هم په وژلو حکم صادر کړ او کله چي یې واژو نو اسلام یې راوور او خپله کیسه یې ورته واوروله نو پدې وپوهېدو چي اسلام حق دین دی (۱)

***

الله تعالی فرمایي:

﴿إِنَّ ٱلۡمُتَّقِينَ فِي جَنَّٰتٖ وَعُيُونٍ (٤٥) ٱدۡخُلُوهَا بِسَلَٰمٍ ءَامِنِينَ (٤٦) وَنَزَعۡنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنۡ غِلٍّ إِخۡوَٰنًا
عَلَىٰ سُرُرٖ مُّتَقَٰبِلِينَ (٤٧) لَا يَمَسُّهُمۡ فِيهَا نَصَبٞ وَمَا هُم مِّنۡهَا بِمُخۡرَجِينَ (٤٨) ۞ نَبِّئۡ عِبَادِيٓ أَنِّيٓ أَنَا ٱلۡغَفُورُ
ٱلرَّحِيمُ (٤٩) وَأَنَّ عَذَابِي هُوَ ٱلۡعَذَابُ ٱلۡأَلِيمُ (٥٠) وَنَبِّئۡهُمۡ عَن ضَيۡفِ إِبۡرَٰهِيمَ (٥١) إِذۡ دَخَلُواْ عَلَيۡهِ فَقَالُواْ سَلَٰمٗا
قَالَ إِنَّا مِنكُمۡ وَجِلُونَ (٥٢) قَالُواْ لَا تَوۡجَلۡ إِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلَٰمٍ عَلِيمٖ (٥٣) قَالَ أَبَشَّرۡتُمُونِي عَلَىٰٓ أَن مَّسَّنِيَ ٱلۡكِبَرُ فَبِمَ
تُبَشِّرُونَ (٥٤) قَالُواْ بَشَّرۡنَٰكَ بِٱلۡحَقِّ فَلَا تَكُن مِّنَ ٱلۡقَٰنِطِينَ (٥٥) قَالَ وَمَن يَقۡنَطُ مِن رَّحۡمَةِ رَبِّهِۦٓ إِلَّا
ٱلضَّآلُّونَ (٥٦) قَالَ فَمَا خَطۡبُكُمۡ أَيُّهَا ٱلۡمُرۡسَلُونَ (٥٧) قَالُوٓاْ إِنَّآ أُرۡسِلۡنَآ إِلَىٰ قَوۡمٖ مُّجۡرِمِينَ (٥٨) إِلَّآ ءَالَ لُوطٍ إِنَّا
لَمُنَجُّوهُمۡ أَجۡمَعِينَ (٥٩) إِلَّا ٱمۡرَأَتَهُۥ قَدَّرۡنَآ إِنَّهَا لَمِنَ ٱلۡغَٰبِرِينَ (٦٠) فَلَمَّا جَآءَ ءَالَ لُوطٍ ٱلۡمُرۡسَلُونَ (٦١) قَالَ
إِنَّكُمۡ قَوۡمٞ مُّنكَرُونَ (٦٢) قَالُواْ بَلۡ جِئۡنَٰكَ بِمَا كَانُواْ فِيهِ يَمۡتَرُونَ (٦٣) وَأَتَيۡنَٰكَ بِٱلۡحَقِّ وَإِنَّا لَصَٰدِقُونَ (٦٤)
فَأَسۡرِ بِأَهۡلِكَ بِقِطۡعٖ مِّنَ ٱلَّيۡلِ وَٱتَّبِعۡ أَدۡبَٰرَهُمۡ وَلَا يَلۡتَفِتۡ مِنكُمۡ أَحَدٞ وَٱمۡضُواْ حَيۡثُ تُؤۡمَرُونَ (٦٥) وَقَضَيۡنَآ إِلَيۡهِ ذَٰلِكَ
ٱلۡأَمۡرَ أَنَّ دَابِرَ هَٰٓؤُلَآءِ مَقۡطُوعٞ مُّصۡبِحِينَ (٦٦) وَجَآءَ أَهۡلُ ٱلۡمَدِينَةِ يَسۡتَبۡشِرُونَ (٦٧) قَالَ إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ ضَيۡفِي فَلَا
تَفۡضَحُونِ (٦٨) وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَلَا تُخۡزُونِ (٦٩) قَالُوٓاْ أَوَلَمۡ نَنۡهَكَ عَنِ ٱلۡعَٰلَمِينَ (٧٠) قَالَ هَٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِيٓ إِن كُنتُمۡ فَٰعِلِينَ
(٧١) لَعَمۡرُكَ إِنَّهُمۡ لَفِي سَكۡرَتِهِمۡ يَعۡمَهُونَ (٧٢) فَأَخَذَتۡهُمُ ٱلصَّيۡحَةُ مُشۡرِقِينَ (٧٣) فَجَعَلۡنَا عَٰلِيَهَا سَافِلَهَا وَأَمۡطَرۡنَا عَلَيۡهِمۡ حِجَارَةٗ
مِّن سِجِّيلٍ (٧٤) إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَٰتٖ لِّلۡمُتَوَسِّمِينَ (٧٥) وَإِنَّهَا لَبِسَبِيلٖ مُّقِيمٍ (٧٦) إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَةٗ لِّلۡمُؤۡمِنِينَ (٧٧) وَإِن

(۱) تفسیر القرطبي ۱۰/ ۲.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



كَانَ أَصْحَٰبُ ٱلْأَيْكَةِ لَظَٰلِمِينَ ﴿٧٨﴾ فَٱنتَقَمْنَا مِنْهُمْ وَإِنَّهُمَا لَبِإِمَامٍ مُّبِينٍ ﴿٧٩﴾ وَلَقَدْ كَذَّبَ أَصْحَٰبُ ٱلْحِجْرِ ٱلْمُرْسَلِينَ ﴿٨٠﴾
وَءَاتَيْنَٰهُمْ ءَايَٰتِنَا فَكَانُوا۟ عَنْهَا مُعْرِضِينَ ﴿٨١﴾ وَكَانُوا۟ يَنْحِتُونَ مِنَ ٱلْجِبَالِ بُيُوتًا ءَامِنِينَ ﴿٨٢﴾ فَأَخَذَتْهُمُ ٱلصَّيْحَةُ مُصْبِحِينَ
﴿٨٣﴾ فَمَآ أَغْنَىٰ عَنْهُم مَّا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ ﴿٨٤﴾ وَمَا خَلَقْنَا ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ إِلَّا بِٱلْحَقِّ ۗ وَإِنَّ ٱلسَّاعَةَ لَءَاتِيَةٌ ۖ
فَٱصْفَحِ ٱلصَّفْحَ ٱلْجَمِيلَ ﴿٨٥﴾ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ ٱلْخَلَّٰقُ ٱلْعَلِيمُ ﴿٨٦﴾ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَٰكَ سَبْعًا مِّنَ ٱلْمَثَانِى وَٱلْقُرْءَانَ ٱلْعَظِيمَ ﴿٨٧﴾
لَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلَىٰ مَا مَتَّعْنَا بِهِۦٓ أَزْوَٰجًا مِّنْهُمْ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَٱخْفِضْ جَنَاحَكَ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿٨٨﴾ وَقُلْ إِنِّىٓ أَنَا
ٱلنَّذِيرُ ٱلْمُبِينُ ﴿٨٩﴾ كَمَآ أَنزَلْنَا عَلَى ٱلْمُقْتَسِمِينَ ﴿٩٠﴾ ٱلَّذِينَ جَعَلُوا۟ ٱلْقُرْءَانَ عِضِينَ ﴿٩١﴾ فَوَرَبِّكَ لَنَسْـَٔلَنَّهُمْ
أَجْمَعِينَ ﴿٩٢﴾ عَمَّا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿٩٣﴾ فَٱصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنِ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴿٩٤﴾ إِنَّا كَفَيْنَٰكَ ٱلْمُسْتَهْزِءِينَ ﴿٩٥﴾
ٱلَّذِينَ يَجْعَلُونَ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ ۚ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿٩٦﴾ وَلَقَدْ نَعْلَمُ أَنَّكَ يَضِيقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُولُونَ ﴿٩٧﴾ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ
رَبِّكَ وَكُن مِّنَ ٱلسَّٰجِدِينَ ﴿٩٨﴾ وَٱعْبُدْ رَبَّكَ حَتَّىٰ يَأْتِيَكَ ٱلْيَقِينُ ﴿٩٩﴾ الحجر: ٤٥ – ٩٩

### مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالی د دوزخیانو حال بیان کړنو ورپسې يې د لته د نېکمرغه کسانو جنتیانو ذکر وفرمایو د هغوی نعمتونه يې وشمېرل او بیا يې د ځينو پیغمبرانو کیسې راوړې چي له خپل قوم او ټبر سره يې څه حال وو لکه د لوط ، شعيب او صالح عليهم السلام یادونه او دغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم لپاره تسلیت او دا چي د هغوی په پله پل کېږدي او صبر خپل کړي بیا الله رب العالمين د خپل وحدانيت په هکله دلائل څرګند کړل او په پای کي الله تعالی خپل نازولي استازي ته زېری ورکوي چي دغه دښمنان چي ملنډي وهونکي دي دوی به هلاک کېږي.

### لغتونه:

(نصب) ستړيا او تکليف (وجلون) وېرېدونکي (الغابرين) په عذاب کي پاتي (القانطين) د ناهيلي بشپړ توب یو مخه ايزه يأس (تفضحون) رسوا کېدل د فضاحت معناده او دا د هسي یو څيز څرګندېدلو ته وايې چي له هغه څخه شرم احساس کېږي ويل کېږي سهار رسوا کړ کله چي يې خلګو ته څرګند کړي (لعمرک) د رسول الله په ژوندانه سوګند دی (سکرتهم) ضلالت او غوايت ته ويل کېږي (يعمهون) له لاربنووني څخه حيران اولالهاند ، وایې چي (عمه) د زړه ړوند والی او (عمی) د سترګو ړوند والي ته وايې (المتوسمين) له توسم څخه اخيستل شوی او علامې ته وايې چي په مطلوب دلالت کوي لکه چي وايې (توسم فيه الخير) يعني خيرپکي ليدلی شي او اصل يې (تثبت) او لکه (تفرس) غوندي دی په حديث شريف کي راغي: ( اتقوا فراسة المؤمن فانه ينظر بنور الايمان ) د مسلمان له ځيراکتنه ووېرېږئ ځکه هغه د ايمان په روښنايې ليدل کوي[1] (الأيكة ) هغه د ډېرو پاڼو تته ونه او جمع يې (أيک ) راغي (الحجر) د هغې وادي نوم دی چي ثموديان پکي اوسېدل (عضين) تيت او پرک غړي (اليقين) مرګ ته وايي ځکه چي هغه يقيني دی.

---

(١) رواه الترمذی .

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دنزول سبب:

روایت کېږي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم یووخت راووت ویې لیدل چي اصحابان رضوان الله علیهم په خندادي نوېې ورته وویل: آیاتاسو خاندی، پداسي حال کي چي ستاسي په وړاندي جنت اواوردی نودغه خبره په دوی ډېره سخته شوه نودا آیت نازل شو: ﴿ نَبِّئْ عِبَادِيٓ أَنِّيٓ أَنَا ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ ۝ وَأَنَّ عَذَابِي هُوَ ٱلْعَذَابُ ٱلْأَلِيمُ ﴾ (۱)

تفسیر: ﴿ إِنَّ ٱلْمُتَّقِينَ فِي جَنَّٰتٍ وَعُيُونٍ ﴾ بېشکه متقیان (له شرک او کفرنه به په آخرت کي) په جنتونو (ښایسته وو) او چینو (بهېدونکو په اوبو، سلسبیل، شرابو او شاتو) کي وي ﴿ ٱدْخُلُوهَا بِسَلَٰمٍ ءَامِنِينَ ﴾ (او وبه ویلی شي دوی ته) ننوزئ دغو جنتونو ته په سلامتي له هر آفته پداسي حال کي چي په امن به یې (له مړیني او د نعمت له زوال نه) ﴿ وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنْ غِلٍّ ﴾ او وبه باسو (لیري به کړو) هر هغه چي په زړونو د دغو جنتیانو) کي له کینې (حسد او بغض) څخه وي ﴿ إِخْوَٰنًا عَلَىٰ سُرُرٍ مُّتَقَٰبِلِينَ ﴾ حال دا چي (لکه) ورونه به وی مخامخ ناست په تختونو باندي یعني دوی به لکه ورونه غوندي خوښ خوښحاله مخامخ په تختونو ناست وي. مجاهد رحمه الله وايي څیني ددوی د څینو روشاته نه ګوري او دغه به د انس او اکرام له مخي وي او ابن عباس رضی الله عنهما وايي: چي دوی به د سروزرو په تختونو چي په لعلونو، زبرجد و ملغلرو به ښایسته شوي وی مخامخ یو بل ته ناست وي (۲) ﴿ لَا يَمَسُّهُمْ فِيهَا نَصَبٌ ﴾ نه به رسېږي دغو (جنتیانو) ته په جنت کي هیڅ قدر تکلیف (او ستړیا) ﴿ وَمَا هُم مِّنْهَا بِمُخْرَجِينَ ﴾ او نه به وي دوی له دغه جنته ایستلی شوي؛ ددوی نعمتونه به تل ترتله وي څکه دغه د خوښي او بقا ځای دی ﴿ نَبِّئْ عِبَادِيٓ أَنِّيٓ أَنَا ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ خبر کړه (ای محمده!) بندګان زما (په دې) چي بېشکه همدا زه ښه بخښونکی (د ګناهونو) ډېر رحم والایم (هغه چاته چي توبه ګارشي او رجوع وکړي) ﴿ وَأَنَّ عَذَابِي هُوَ ٱلْعَذَابُ ٱلْأَلِيمُ ﴾ او (خبرېې کړه پدې چي) زما عذاب هم دغه عذاب ډېر دردناک دی (هغه چالره چي په ګناهونو اصرار کوي. ابو حیان وايي چي: دغه کلام چي ویې فرمایل ﴿ وَأَنَّ عَذَابِي ﴾ خوراله لطف او مهرباني څخه څرګند و نه کوي څکه هسي یې ونه فرمایل چي: زه دردناک عذاب ور کونکی یم او پدې کړو کي د ښېګني او مهرباني لوري ته لورونه ده (۳) ﴿ وَنَبِّئْهُمْ عَن ضَيْفِ إِبْرَٰهِيمَ ﴾ (او خبردار کړه دوی له (احواله) د مېلمنو د ابراهیم) یعني دوی ته خبرور کړه له کیسې د مېلمنو د ابراهیم هغه پرښتې چي الله تعالی د لوط علیه السلام د قوم د هلاکت لپاره رااستولي اولس تنه د زلمو ښایسته ځوانانو په شکل وو

(۱) القرطبي ۲۴/۱۰

(۲) زاد المسیر ۴۰۴/۴

(۳) البحر ۴۵۷/۵

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



له دوی سره یو حضرت جبریل علیه السلام ملګری وو ﴿ إِذْ دَخَلُوا۟ عَلَيْهِ فَقَالُوا۟ سَلَـٰمًا ﴾ کله چي ننوتلې دغه
پربنتې (په کور) دده (ابراهیم) نو ویل: دوی (سلام اچوو موږ په تا) په سلام اچولو سره ﴿ قَالَ إِنَّا مِنكُمْ
وَجِلُونَ ﴾ نو وويل: (ابراهیم کله چي دوی ته یې ډوډۍ وړاندي کړه او ویې نه خوړه) بېشکه موږ له
تاسي څخه وېرېدونکي یو ﴿ قَالُوا۟ لَا تَوْجَلْ إِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلَـٰمٍ عَلِيمٍ ﴾ نو وويل: (ملائکو) مه وېرېږه
بېشکه چي موږ زېری کوو تاته په هلک د ډېر پوه هوښیار سره (چي خورا زیرک، د پراخ علم خاوند به وي
او هغه اسحاق علیه السلام وو) ﴿ قَالَ أَبَشَّرْتُمُونِى عَلَىٰٓ أَن مَّسَّنِىَ ٱلْكِبَرُ فَبِمَ تُبَشِّرُونَ ﴾ وويل: ابراهیم
آیا زېری کوئ ماته (په ولد سره) سره له دې چي ماته زوړوالی رسېدلی دی په کومه وجه ماته زېری راکوئ
؟ دغه یې د تعجب او استبعاد په توګه وویل ﴿ قَالُوا۟ بَشَّرْنَـٰكَ بِٱلْحَقِّ فَلَا تَكُن مِّنَ ٱلْقَـٰنِطِينَ ﴾ وويل
(پربنتو) چي زېری کړی دی موږ تاته په حقه (رښتیا) سره نو مه کېږه ته د ناامیدانو له ډلي نه (دغه لیري
مه بوله) ﴿ قَالَ وَمَن يَقْنَطُ مِن رَّحْمَةِ رَبِّهِۦٓ إِلَّا ٱلضَّآلُّونَ ﴾ وويل: (ابراهیم) او څوک دی چي ناامیده
کېږي به له رحمته درب خپل؟ (نه ناامیده کېږي هیڅوک) مګر ګمراهان کافران؛ دلته استفهام انکاري
دی یعني دالله له رحمته پرته دهغو لارورکو چي دمعرفت او صواب لاره یې ورکه کړې وي بل څوک نه
ناامیده کېږي او هغه زړه چي په ایمان ودان او له رحمن سره پتلېږوي هیڅکله به مایوسه نشي. بیضاوي
وایي چي: دابراهیم علیه السلام تعجب دعادت له مخي وو، نه دقدرت په هکله څکه چي الله پدې هم
قادر دی چي له مور او پلاره پرته ماشوم پیدا کړي نو څرنګه به له زړې ښځي او بوډا سړي څخه ونشي
کولای چي اولاد پیدا کړي؟ څکه یې نو پورتنی ځواب ورکړ ﴿ قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ أَيُّهَا ٱلْمُرْسَلُونَ ﴾ وويل:
(ابراهیم نو نور څه مقصود دی ستاسي ای رالېږل شویو (پربنتو (بر سېره پر دې زېري؟) ﴿ قَالُوٓا۟ إِنَّآ أُرْسِلْنَآ
إِلَىٰ قَوْمٍ مُّجْرِمِينَ ﴾ نو وويل: (ملائکو چي بېشکه موږ رالېږلی شوي یو (لپاره دهلاکولو) دهغه قوم
(دلوط علیه السلام) چي مجرمان دي ﴿ إِلَّآ ءَالَ لُوطٍ إِنَّا لَمُنَجُّوهُمْ أَجْمَعِينَ ﴾ مګر آل دلوط چي
بېشکه هرو مرو موږ نجات ورکونکي یو ټولو ته (له عذابه) ﴿ إِلَّا ٱمْرَأَتَهُۥ قَدَّرْنَآ إِنَّهَا لَمِنَ ٱلْغَـٰبِرِينَ ﴾
مګر ښځه د دغه (لوط) موږ مقدر مقرره کړې وه چي بېشکه داله بېرته پاتي کېدونکو څخه ده (په
معذبینو کي) قرطبي وایي: الله تعالی دحضرت لوط علیه السلام مېرمن دهغه له آل څخه مستثنی کړه
هغه کافره وه نوله کافرانو سره په هلاکت کي یو ځای ملګري شوه (۱) ﴿ فَلَمَّا جَآءَ ءَالَ
لُوطٍ ٱلْمُرْسَلُونَ ﴾ نو کله چي راغلل آل دلوط ته (هغه) لېږلي شوي ملائک ﴿ قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ مُّنكَرُونَ ﴾
وويل (لوط) دوی ته بېشکه تاسي یو قوم ناآشنا (زه مو نه پېژنم څه اراده لرئ؟) ﴿ قَالُوا۟ بَلْ جِئْنَـٰكَ بِمَا

---

(۱) القرطبي ۱۰/۳۶

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ كَانُوا۟ فِيهِ يَمْتَرُونَ ﴾ ووېل: پرښتو (نه يو موږ ناآشنا) بلکه (ملائک يو) چي راغلي يو په هغه عذاب سره چي وه (ستا قوم چي په هغه (عذاب) کي د راتللو) به يې شک کاوو (کوم چي تا ورسره وعده کړې وه) ﴿ وَأَتَيْنَـٰكَ بِٱلْحَقِّ وَإِنَّا لَصَـٰدِقُونَ فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ ٱلَّيْلِ ﴾ او راوړي دي موږ تا ته حق او بېشکه موږ خامخا صادقان يو نو بوزه عيال خپل په يوه ټوټه د شپې کي (له دې ښاره) ﴿ وَٱتَّبِعْ أَدْبَـٰرَهُمْ ﴾ او ته (هم ځه) وروسته په دوی پسي (چي ورباندي مطمئن يې) ﴿ وَلَا يَلْتَفِتْ مِنكُمْ أَحَدٌ ﴾ او ندی ګوري بېرته له تاسو څخه هيڅ يو (چي ونه ويني هغه ستر عذاب او ونه وېرېږئ) ﴿ وَٱمْضُوا۟ حَيْثُ تُؤْمَرُونَ ﴾ او ځئ تاسي هغه ځای ته چي ورباندي (تاسي ته) حکم شوی دی ابن عباس رضی الله عنه وايي يعني شام ته ﴿ وَقَضَيْنَآ إِلَيْهِ ذَٰلِكَ ٱلْأَمْرَ أَنَّ دَابِرَ هَـٰٓؤُلَآءِ مَقْطُوعٌ مُّصْبِحِينَ ﴾ او وحی کړي وو موږ ده (لوط) ته ددې کارچي بېشکه بېخ ددې کسانو به پرې کړی شي (چي هيڅ يو به پاتي نشي) په داسي حال کي چي دوی په سباکي داخلېږي ﴿ وَجَآءَ أَهْلُ ٱلْمَدِينَةِ يَسْتَبْشِرُونَ ﴾ او راغلل اهل د هغه ښار (سدوم) چي دلوط عليه السلا قوم وو په منډه) د خوښي زېری يې سره کاوو (د مېلمنو په هکله دلواطت په چورت کي وو ګومان يې کاوو دغه مېلمانه هم ددوی په شان بنيادمان دي. مفسرين کرام وايي چي: دوی ته خبر ورکول شوی ووچي دلوط په کورکي ډېرحسين او ښکلي هلکان مېلمانه شوي دي نو په منډه منډه راغلل په خوښي سره يې يو په بل باندی زېري کول ([1]) ﴿ قَالَ إِنَّ هَـٰٓؤُلَآءِ ضَيْفِى فَلَا تَفْضَحُونِ ﴾ ووېل: (لوط) چي بېشکه داکسان زما مېلمانه دي نو مامه شرموئ (هغوته د بدکاري قصد مکوئ!) ﴿ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَلَا تُخْزُونِ ﴾ او ووېرېږئ تاسي له الله او تاسي مامه سپکوئ (دوی ته په تعرض کولو د بدکار) ﴿ قَالُوٓا۟ أَوَلَمْ نَنْهَكَ عَنِ ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴾ ووېل دوی ته (قوم دلوط) آيا موږ ته نه وې منع کړی (له مېلمه کولو دچا) خلګو نه؟. امام رازي وايي: چي معنادا چي آيا موږ ته نه وې منع کړی چي کله موږ له چا سره دغه ناولی عمل ترسره کوو ته به څه نه وايي؟! ([2]) ﴿ قَالَ هَـٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِىٓ إِن كُنتُمْ فَـٰعِلِينَ ﴾ ووېل: (لوط) دغه (ښځي) زما لوڼي دي که يې تاسي (نکاح) کونکي له دوی سره يعني که چېري د شهوت قضاء مو مقصدوي! دغه مېرمني په حلاله

---

([1]) شهيد سيد قطب عليه الرحمة والرضوان وايي: دوی واورېدل چي دلوط په کورکي خوړا ښې مخي هلکان مېلمانه دي نوخوښحاله شول چي ښکار ورسېدو ﴿ وَجَآءَ أَهْلُ ٱلْمَدِينَةِ يَسْتَبْشِرُونَ ﴾ او پدې ډول تعبيرکول دلوط عليه السلام دقوم هغه دبشاعت اوشناعت وروستي پړاو ته رسېدل څرګندوي چي دوی په پليتي اوفجورکي څومره ککړ ول؟ دغه ددوی په اجتماعي ډول راتلل او يو په بل باندي زېري کولو څخه چي ښيانه دوی په ربڼاورځ له هغوی سره بدکاري کوي په جنايت ښکاره شاهد دی له داسي کولو څخه خو حيوان هم ځان ژغوري خودوی هغه ترسره کوي دغه ښځي بې مثله جنايت اوګناه ده او پاتي شو لوط عليه السلام هغه سخت خواشيني وو او غوښتل يې له خپلو مېلمنو څخه دفاع وکړي دهغوی شرف خوندي کړي قوم ته يې دسرېتوب پيدا کولو خواست وکړ له الله څخه يې وېرول هغه پوهېدو په دې ظالمانو کي انسانيت نشته خوهلی خلي يې کولي. الظلال ۳۱/۱۴

([2]) الفخر الرازي ۱۹ / ۲۰۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



نکاح واخلئ اوحرام کارمه کوئ مفسرین کرام وایې: چي مراد له دې قوله چي (﴿ هَٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِيٓ ﴾ دامت لوڼي دي څکه هرپیغمبردامت لپاره پلارګڼلی شي ﴿ لَعَمۡرُكَ إِنَّهُمۡ لَفِي سَكۡرَتِهِمۡ يَعۡمَهُونَ ﴾ (نووفرمایل الله) قسم دی په ژوندستا( ای محمده!) دوی د(لوط قوم) په مستي (دګمراهي خپلی کي مدهوشان دي؛ دغه اعتراضیه جمله ده چي دلوط علیه السلا م دکیسې په ترڅ کي راغلي اودرسول الله ﷺ په ژوندلوړه درسول الله صلی الله علیه وسلم تکریم اوتشریف ښیې. ابن عباس رضی الله عنهماوایې چي: الله پاک تررسول الله صلی الله علیه وسلم بل عزتمن هیڅوک هم نه دی پیدا کړی اومانه دي اورېدلي چي دهیچا په ژوندېې هم له ده پرته قسم اخیستی وي(۱) ﴿ فَأَخَذَتۡهُمُ ٱلصَّيۡحَةُ مُشۡرِقِينَ ﴾ نوونیول هغوی لره غږ هیبتناک (هلاکونکي) حال داچي دوی دلمرختلو په وخت کي داخلېدل ﴿ فَجَعَلۡنَا عَٰلِيَهَا سَافِلَهَا ﴾ نو وګرزاوو موږ پورته لوری ددې ښارونو ښکته طرف؛ مفسرین کرام وایې چي: جبریل علیه السلام ددوی ښارله بنسټه وایستل څوچي یې آسمانونوته نژدې ورسول اود پرښتو تسبیحات یې واورېدل بیایې سرپه څېړی را وغورځول ﴿ وَأَمۡطَرۡنَا عَلَيۡهِمۡ حِجَارَةٗ مِّن سِجِّيلٍ ﴾ او واوورول موږپرهغوی کاڼي پخي شوي(ختي) دجهنم په اور ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَٰتٖ لِّلۡمُتَوَسِّمِينَ ﴾ اوبېشکه په دغه (هلاکت ددوی ) کي خامخادلیل (دقدرت ) دي مؤمنینوته یعني دغه ددوی په اهلاک اوعذاب کي دهغه چالپاره: چي پنداخلي اوپه سترګواوزړه ویني نښي اودلالتونه شته دي. ﴿ وَإِنَّهَا لَبِسَبِيلٖ مُّقِيمٍ ﴾ اوبېشکه دغه (هلاکي شوي ) قریبې پرتي دي پرسمه لاره کي (چي ورانه شوي نه ده ټول خلګ چي پدې لاره درومي هغه ځای ویني آیانو پندنه آخلي؟ ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَةٗ لِّلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ اوبېشکه په دغه (اهلاک دهغوی) کي خامخادلیل (دقدرت ) دی مؤمنینوته ﴿ وَإِن كَانَ أَصۡحَٰبُ ٱلۡأَيۡكَةِ لَظَٰلِمِينَ ﴾اوشان دادی چي وو خاوندان دځنګل (دشعیب قوم) خامخاله ظالمانو(چي دشعیب تکذیب یې کاوو، لاري یې وهلې اوتول پیمانه یې کموله ) ﴿ فَٱنتَقَمۡنَا مِنۡهُمۡ ﴾ (نو موږ له دوی څخه انتقام واخیست ) یعني دوی مو په زلزله اود(یوم الظلة )په عذاب هلاک کړل. مفسرین وایې چي پردوی باندي اوه شپې ګرمي راغله آن تردې چي هلاکت ته یې نژدې کړل بیاالله وریاندي وریځ راوسته نودوی ټولو هغې ته پناه وروړه اوترې لاندي راټول شول نوالله له همدې وریځي څخه اور راوالوزول اوټول یې وسوځول ﴿ وَإِنَّهُمَا لَبِإِمَامٖ مُّبِينٖ ﴾ اوبېشکه دادواړه ښارونه (دلوط اوشعیب ) خامخا په لویه لاره کي پراته دي (آیاله هغوی څخه پندنه اخلئ ای دمکې خلګو؟!) ﴿ وَلَقَدۡ كَذَّبَ أَصۡحَٰبُ ٱلۡحِجۡرِ ٱلۡمُرۡسَلِينَ ﴾ اوخامخاپه تحقیق دروغجن شمېرلي وو خاوندانو دحجر (کندي چي ثمودیان وو) دالله رسولانولره؛ دغه څلورمه کیسه د حضرت صالح علیه السلام ده حجر هغي کندي ته وایې چي دمدینې منورې اوشام ترمینځ ده آثاریې پاتي دي اومسافران وریاندي تېرېږي راتېرېږي. بیضاوي وایې:

(۱) الطبري ۱۴/ ۴۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ځوک چي دیوه پیغمبر تکذیب وکړي لکه چي دټولو يې کړی وي ځکه الله فرمايلي دي ﴿ ٱلْمُرْسَلِينَ ﴾ (١)﴿ وَءَاتَيْنَٰهُمْ ءَايَٰتِنَا فَكَانُوا۟ عَنْهَا مُعْرِضِينَ ﴾ او ورکړي دي موږ دغو (ثموديانو) ته دلائل (دقدرت) خپل نو وو دوی له هغو (معجزو) څخه مخ ګرځونکي (چي پند به يې نه ځني اخيست. ابن عباس رضی الله عنه وايي چي: په اوښه کي ډېري معجزې وې له ډبري راووته او له راوتلو سره جوخت يې ولادت نژدې وو خوراستره وه بله اوښه يې په مثل نه وه، ښته زياتي شيدې يې کولې آن تردې چي دټولو بس کېدلې خو دوی ورڅخه عبرت نه اخيست او ځرت يې پکي نه واهو (٢)﴿ وَكَانُوا۟ يَنْحِتُونَ مِنَ ٱلْجِبَالِ بُيُوتًا ءَامِنِينَ ﴾ او وو دوی چي توږلې به يې له غرونو څخه کوټې پدي حال کي چي په امن کي به وو يعني دوی ګمان کاوو چي دغه کوټې به دوی لره دالله له عذاب څخه وژغوري ﴿ فَأَخَذَتْهُمُ ٱلصَّيْحَةُ مُصْبِحِينَ ﴾ نو ونيول دوی لره غږ هيبتناک (دهلاکت) پداسي حال کي چي دوی په سباکي داخلېدل ﴿ فَمَآ أَغْنَىٰ عَنْهُم مَّا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ ﴾ نو دفع نکړ له دوی نه (هيڅ عذاب) هغو شيانو چي دوی به حاصلول (له ټينګو بناګانو او برجورو کلاګانو څخه ﴿ وَمَا خَلَقْنَا ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ إِلَّا بِٱلْحَقِّ ﴾ او ندي پيداکړي موږ دغه آسمانونه او ځمکه او هرهغه څه چي په مينځ ددوی کي دي مګر په حق سره؛ نو ځکه دحکمت داغوښتنه ده چي دداډول مکذبينو هلاکت ترسره شي څوچي فساد خپور نشي ﴿ وَإِنَّ ٱلسَّاعَةَ لَءَاتِيَةٌ فَٱصْفَحِ ٱلصَّفْحَ ٱلْجَمِيلَ ﴾ او بېشکه قيامت خامخا راتلونکی دی نو څنګ وکړه ته له دوی نه په ښکلو نېکو سره ځکه په قيامت کي به محسن ته داحسان او بدکاروته دبدي سز اور کول شي ته له دې بې عقلانو تېرشه او دهغوی دتېريو په هکله حلم او زغم لره ﴿ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ ٱلْخَلَّٰقُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ بېشکه رب ستا هم دی دی ښه پيداکونکی ډېرعلم والا (دبندګانو په احوالو باندي) ﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَٰكَ سَبْعًا مِّنَ ٱلْمَثَانِى ﴾ او خامخا په تحقيق درکړی دی موږ تاته اُوه آيته له وظائفو يعني موږ تاته ای محمده! دفاتحې اُوه آيتونه درکړي او مثاني ځکه وبلل شوچي لوستل يې په لمانځه کي تکرارېږي په حديث شريف کي راځي: الحمد لله رب العلمين هی السبع المثاني والقرآن العظيم الذی اُوتيته (٣) يعني الحمد لله رب العلمين هغه اوه آيتونه او قرآن دی چي ماته راکول شوی دی، چاپياويلي دغه اوه اوږده سورتونه دي خولومړی قول ارجح دی ﴿ وَٱلْقُرْءَانَ ٱلْعَظِيمَ ﴾ او قرآن عظيم الشان خوراډېر لوی هغه چي دټولو آسماني کتابونو د کمالاتو جامع دی ﴿ لَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلَىٰ مَا مَتَّعْنَا بِهِۦٓ أَزْوَٰجًا مِّنْهُمْ ﴾ مه پورته کوه سترګي خپلي (په رغبت سره) هغو شيانو ته چي نفع ورکړي ده موږ په هغه سره حال داچي قسم قسم شيان دي دغو کفارو ته) ځکه چي

(١) البيضاوي ٢٧٦

(٢) زاد المسير ۴ / ۴١١

(٣) أخرجه البخاري وهو اختيار الطبري

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



موږ تاته درکړی دهغوی ترشیانو مشرف او معززدی او دغه دقرآن نزول دنعمت له پلوه کافي دی ﴿ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ ﴾ او خفګان مه کوه پردغو (کفاروچي ایمان نه راوړي ) ﴿ وَٱخْفِضْ جَنَاحَكَ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴾ او ښکته کړه وزرخپل لپاره د(مؤمنانو(اوبېوزلانو ددوی ته) ﴿ وَقُلْ إِنِّىٓ أَنَا ٱلنَّذِيرُ ٱلْمُبِينُ ﴾ او ووایه ( ای محمده ! ) چي بېشکه زه چي یم همداراز ښکاره وېروونکی یم ( دالله له عذابه هغه سرغړونکي خلګو نه چي دجبارذات له امرنه سرکښي کوي ﴿ كَمَآ أَنزَلْنَا عَلَى ٱلْمُقْتَسِمِينَ ﴾ (قرآن موپر تانازل کړی ) لکه چي (پراهل کتابو ) قسمت کونکومو(کتاب) نازل کړی وو ) چي هغوی یهودو او نصاراوو هغوی چي په ځیني کتاب بې ایمان لاره او په ځیني کافران وو نو په دوه برخو ووېشل شول ﴿ ٱلَّذِينَ جَعَلُوا۟ ٱلْقُرْءَانَ عِضِينَ ﴾ هغوچي ګرزولی بې وودغه قرآن ټوټې ټوټې (او په هغه کي بې مختلفي ویناګاني کولې. ابن عباس رضی الله عنهما وایي : معناداچي په ځینوبرخوبې ایمان راووړ او په ځینو کافران کېدل او پدې کي درسول الله صلی الله علیه وسلم لپاره ډاډ ینه ده چي قوم بې دقرآن تکذیب وکړ هغه ته بې سحر، شعر او دپخوانیو کیسو نسبت کاوونو تردوی له مخه قومونو هم داسي کړي دي لکه چي دمکې کفاربې کوي ﴿ فَوَرَبِّكَ لَنَسْـَٔلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ عَمَّا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ نو قسم دی په رب ستاچي خامخا به پوښتو موږ خامخا دوی ټول دهغو اعمالوڅخه چي دوی به کول (په دنیاکي) ﴿ فَٱصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنِ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴾ نو ښکاره کړه (تبلیغ ای محمده) هغه چي ته وربانديي مأموربې او له مشرکانوڅخه مخ واړوه ( د هغوی ویناته غوږ مه نیسه پروابې مکوه ) ﴿ إِنَّا كَفَيْنَـٰكَ ٱلْمُسْتَهْزِءِينَ ﴾ بېشکه موږ کافي شوي یو ستالپاره (له شره ) دمسخره کونکو(دښمنانو چي هغوی به هلاکوو او دغه پنځه تنه دقریشو مشران وو ﴿ ٱلَّذِينَ يَجْعَلُونَ مَعَ ٱللَّهِ إِلَـٰهًا ءَاخَرَ ﴾ هغه کسان چي ګرزوي سره له الله (شریک ) معبود بل ( له بتانو ) ﴿ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴾ نوژربه پوه شي دوی (په عاقبت دخپل کارپه دنیااو آخرت کي پدې کي ددوی لپاره وعید اوتهدیددی ) ﴿ وَلَقَدْ نَعْلَمُ أَنَّكَ يَضِيقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُولُونَ ﴾ او خامخاپه تحقیق معلوم دی موږ ته چي بېشکه ته بې چي تنګي راوړي سینه ستاپه سبب دهغوخبرو چي دوی بې وایې ( له استهزاء اوتکذیب نه) ﴿ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُن مِّنَ ٱلسَّـٰجِدِينَ ﴾ (نوتل تسبیح وایه سره له حمده درب خپل اوته له سجده کونکوشه) یعني کله چي ددوی له لوري تاته تکلیف ورسېږي نوته تسبیح ، لمانځه اودالله ډېرذکرکولوته مخه کړه ﴿ وَٱعْبُدْ رَبَّكَ حَتَّىٰ يَأْتِيَكَ ٱلْيَقِينُ ﴾ او عبادت کوه دخپل رب ترهغه پوري چي تاته مرګ راشي ، مرګ ته بې ځکه یقین وایوچي دهغه راتلل ببخي یقیني دی.

بلاغت: پدې آیتونوکي دبیان اوبدیع لاندنی ښکلاوي خوندي دي:

۱- ایجاز بالحذف په دې کلمه کي چي ﴿ ٱدْخُلُوهَا بِسَلَـٰمٍ ﴾ چي تقدیربې دادی دوی ته به ویل کېږي: أدخلوها.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۲ - لطیفه مقابله چې الله فرمايي: ﴿ نَبِّئْ عِبَادِىٓ أَنِّىٓ أَنَا ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ وروسته بيا ﴿ وَأَنَّ عَذَابِى ﴾ څکه چې دلته يې دعذاب اومغفرت ترمينځ مقابله اوبياد پراخ رحمت اودردناک عذاب ترمينځ مخامخ توب راوور چې له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

۳ - کله چې الله فرمايي: ﴿ أَنَّ دَابِرَ هَٰٓؤُلَآءِ مَقْطُوعٌ ﴾ پدې کې له يومخ ايزه هلاکت څخه په بېخ پرېکېدلو سره کنايه راغلي ده.

۴ - دمجاز صنعت لکه په: ﴿ قَدَّرْنَآ ۙ إِنَّهَا لَمِنَ ٱلْغَٰبِرِينَ ﴾ پرښتو دتقديرفعل ځان له نسبت وکړ اودغه مجازي نسبت دی ځکه تقديريوازي دالله ځانګړتياده خوځرنګه چې دوی دالله استازي اودهغه په امرراغلي وو نويې ځان ته نسبت وکړ.

۵ - کله چې فرمايي ﴿ ٱلصَّيْحَةُ مُصْبِحِينَ ﴾ دلته ناقص جناس اوپه ﴿ فَٱصْفَحِ ٱلصَّفْحَ ٱلْجَمِيلَ ﴾ کې بيا اشتقاقي جناس ترسترګو کېږي.

۶ - دمبالغې صيغې لکه په: ﴿ ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ او ﴿ ٱلْخَلَّٰقُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ کې چې راغلي دي.

۷ - دطباق صنعت لکه چې پدې کلماتو کې شته: ﴿ عَٰلِيَهَا سَافِلَهَا ﴾.

۸ - په ډېرو ځايونو کې بې تکلفه سجع راغلي لکه په ﴿ ءَامِنِينَ ... مُصْبِحِينَ ... مُعْرِضِينَ ﴾ کې.

۹ - تبعيه استعاره پدې کلام کې چې: ﴿ وَٱخْفِضْ جَنَاحَكَ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴾ چې دلته يې تواضع دوزرله ښکته کولو سره تشبيه کړه او دمشبه لپاره يې دمشبه به نوم راوور چې دغه له بليغو استعاراتو څخه دي ځکه کله چې مارغه له الوتلو څخه ودرېږي وزرښکته کوي.

تنبيه: ددې آيتونو ترمينځ موافقت چې فرمايي: ﴿ فَوَرَبِّكَ لَنَسْـَٔلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ﴾ اوداچې ﴿ قَالَ إِنَّمَآ أُوتِيتُهُۥ عَلَىٰ عِلْمٍ عِندِىٓ ۚ أَوَلَمْ يَعْلَمْ أَنَّ ٱللَّهَ قَدْ أَهْلَكَ مِن قَبْلِهِۦ مِنَ ٱلْقُرُونِ مَنْ هُوَ أَشَدُّ مِنْهُ قُوَّةً وَأَكْثَرُ جَمْعًا ۚ وَلَا يُسْـَٔلُ عَن ذُنُوبِهِمُ ٱلْمُجْرِمُونَ ﴾ القصص: ۷۸ اوداچې ﴿ فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُسْـَٔلُ عَن ذَنۢبِهِۦٓ إِنسٌ وَلَا جَآنٌّ ﴾ الرحمن: ۳۹ داسې کېږي چې دقيامت په ورځ به داسې ځای هم وي چې هلته به پوښتنې اوکلام وي داسې ځای به هم وي چې هلته به داسې نه وي دغه دعکرمة رضی الله عنه رايه ده اوابن عباس رضی الله عنه وايې چې: له دوی څخه به دمعلوماتو ترلاسه کولو اواستخباراتي پوښتنې نه کېږي ځکه الله جل جلاله په هرڅه عالم دی خوله دوی څخه به دتوبيخ اوترټنې په ډول ابنتني پوښتنې کېږي او ورته به ويلی شي: ولې موله قرآن څخه سرغړونه کوله اوپدې کې تاسو څه دليل وړاندې کوئ؟ (١)

دالله جل جلاله په مرسته دالحجر سورت تفسير بشپړشو

(١) القرطبي ۱۰ / ۶۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


## (١٦) دالنحل سورت مکي او يوسل اته ويشت آيتونه لري.

### دسورت په وړاندي:

دالنحل سورت مکي اودستري عقيدې موضوعات لکه الوهيت ، وحی ، بعث اونشورڅېړي اوله دې سره سره دقدرت دلائل اووحدانيت شواهد پدې ويړ اوپراخ عالم کي چي آسمانونه ، ځمکه ، سيندونه ، غرونه ، دښتي اوکندي ، اوربنت اوزرغونېدل ، په درياب کي رواني بېړۍ ، په آسمان کي روښانه ستوري چي لاروي وربانديخپل هدف ته رسېږي اوداسي نوري بېلګي راوړي کوم چي انسانان يې پخپل ژوندکي ګوري په سترګواوغوږونويې مومي چي داګرد دالله جل وعلا په وحدانيت باندي ژوندي مثالونه اوپه قدرت باندي يې ګواهان دي.

* دامبارک سورت په لومړي پيل کي وحی رااخلي هغه چي مشرکانوبه ځيني انکارکاوو اوملنډي به يې وربانديوهلې وحی به يې په دروغ ګڼله اودقيامت د ورځي راتلل به يې ليري ګڼل له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه به يې په تلواره دعذاب دراتلوغوښتنه کوله اوچي څومره به دعذاب راتلل ځنډېدل هغومره به ددوی استعجال اواستهزاء زياتېدله

* دسورت موخه دالله جل جلاله په وحدانيت اودالله جل جلاله دقدرت لوري ته دخلګوپام رااړول دي نوپه انسان کي شته حواسوته يې خطاب کړی اودوجود هرغړی يې متوجه کړی څوچي انسان خپل عقل دالله لوري ته وګوماري اودالله په صنعت کي چي کوم آثاروينې دهغوی په وسيله دالله جل جلاله عظمت وپېژني.

* وروسته بياخلګوته دايادونه کوي چي دالله دنعمتونوکفران اوشکرنه اداکول دسترناخواله انجام درلودونکی دي اوله دې څخه خلګ وېروي کوم چي دهرمعانداومنکر عاقبت وي. په اخيرکي سورت رسول الله صلی الله عليه وسلم ته امرکوي چي دالله لوري ته په حکمت ، نېک پنداوښه مجادله سره بلنه وکړي اوپه هغوربړونو اوتکاليفو چي ددعوت اوتبليغ په لاره کي ورته رسېږي صبراوزغم ولري پای ته رسېږي.

### دسورت نوموﻝ:

دغه سورت ته ځکه سورت (النحل)وايې چي دالله دهسي عجيبه مخلوق (دشاتومچی) چي يو مخ ايزه دعبرت وړدی اودالله سبحانه وتعالی په الوهيت دلالت کوي يادونه پکي شويده.
الله تعالی فرمايي:

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿أَتَىٰٓ أَمۡرُ ٱللَّهِ فَلَا تَسۡتَعۡجِلُوهُۚ سُبۡحَٰنَهُۥ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشۡرِكُونَ ﴿١﴾ يُنَزِّلُ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةَ بِٱلرُّوحِ مِنۡ أَمۡرِهِۦ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ
مِنۡ عِبَادِهِۦٓ أَنۡ أَنذِرُوٓاْ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱتَّقُونِ ﴿٢﴾ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ بِٱلۡحَقِّۚ تَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشۡرِكُونَ
﴿٣﴾ خَلَقَ ٱلۡإِنسَٰنَ مِن نُّطۡفَةٖ فَإِذَا هُوَ خَصِيمٞ مُّبِينٞ ﴿٤﴾ وَٱلۡأَنۡعَٰمَ خَلَقَهَاۗ لَكُمۡ فِيهَا دِفۡءٞ وَمَنَٰفِعُ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ (٥) وَلَكُمْ فِيهَا جَمَالٌ حِينَ تُرِيحُونَ وَحِينَ تَسْرَحُونَ (٦) وَتَحْمِلُ أَثْقَالَكُمْ إِلَىٰ بَلَدٍ لَّمْ
تَكُونُوا بَالِغِيهِ إِلَّا بِشِقِّ الْأَنفُسِ ۚ إِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ (٧) وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَزِينَةً ۚ
وَيَخْلُقُ مَا لَا تَعْلَمُونَ (٨) وَعَلَى اللَّهِ قَصْدُ السَّبِيلِ وَمِنْهَا جَائِرٌ ۚ وَلَوْ شَاءَ لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ (٩) هُوَ الَّذِي
أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً ۖ لَّكُم مِّنْهُ شَرَابٌ وَمِنْهُ شَجَرٌ فِيهِ تُسِيمُونَ (١٠) يُنبِتُ لَكُم بِهِ الزَّرْعَ وَالزَّيْتُونَ
وَالنَّخِيلَ وَالْأَعْنَابَ وَمِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ ۗ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ (١١) وَسَخَّرَ لَكُمُ اللَّيْلَ
وَالنَّهَارَ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۖ وَالنُّجُومُ مُسَخَّرَاتٌ بِأَمْرِهِ ۗ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ (١٢) وَمَا ذَرَأَ
لَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُخْتَلِفًا أَلْوَانُهُ ۗ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَذَّكَّرُونَ (١٣) وَهُوَ الَّذِي سَخَّرَ
الْبَحْرَ لِتَأْكُلُوا مِنْهُ لَحْمًا طَرِيًّا وَتَسْتَخْرِجُوا مِنْهُ حِلْيَةً تَلْبَسُونَهَا وَتَرَى الْفُلْكَ مَوَاخِرَ فِيهِ
وَلِتَبْتَغُوا مِن فَضْلِهِ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ (١٤) وَأَلْقَىٰ فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَن تَمِيدَ بِكُمْ وَأَنْهَارًا وَسُبُلًا
لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ (١٥) وَعَلَامَاتٍ ۚ وَبِالنَّجْمِ هُمْ يَهْتَدُونَ (١٦) أَفَمَن يَخْلُقُ كَمَن لَّا يَخْلُقُ ۗ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ (١٧)
وَإِن تَعُدُّوا نِعْمَةَ اللَّهِ لَا تُحْصُوهَا ۗ إِنَّ اللَّهَ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ (١٨) وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُسِرُّونَ وَمَا تُعْلِنُونَ (١٩) وَالَّذِينَ
يَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ لَا يَخْلُقُونَ شَيْئًا وَهُمْ يُخْلَقُونَ (٢٠) أَمْوَاتٌ غَيْرُ أَحْيَاءٍ ۖ وَمَا يَشْعُرُونَ أَيَّانَ يُبْعَثُونَ (٢١) إِلَٰهُكُمْ
إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ۚ فَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ قُلُوبُهُم مُّنكِرَةٌ وَهُم مُّسْتَكْبِرُونَ (٢٢) لَا جَرَمَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا
يُعْلِنُونَ ۚ إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُسْتَكْبِرِينَ (٢٣) وَإِذَا قِيلَ لَهُم مَّاذَا أَنزَلَ رَبُّكُمْ ۙ قَالُوا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ (٢٤) لِيَحْمِلُوا
أَوْزَارَهُمْ كَامِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۙ وَمِنْ أَوْزَارِ الَّذِينَ يُضِلُّونَهُم بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ أَلَا سَاءَ مَا يَزِرُونَ (٢٥) قَدْ مَكَرَ
الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ فَأَتَى اللَّهُ بُنْيَانَهُم مِّنَ الْقَوَاعِدِ فَخَرَّ عَلَيْهِمُ السَّقْفُ مِن فَوْقِهِمْ وَأَتَاهُمُ الْعَذَابُ مِنْ
حَيْثُ لَا يَشْعُرُونَ (٢٦) ثُمَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُخْزِيهِمْ وَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَائِيَ الَّذِينَ كُنتُمْ تُشَاقُّونَ فِيهِمْ ۚ قَالَ
الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ إِنَّ الْخِزْيَ الْيَوْمَ وَالسُّوءَ عَلَى الْكَافِرِينَ (٢٧) الَّذِينَ تَتَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنفُسِهِمْ ۖ فَأَلْقَوُا
السَّلَمَ مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِن سُوءٍ ۚ بَلَىٰ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (٢٨) فَادْخُلُوا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا ۖ
فَلَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ (٢٩) النحل: ١ - ٢٩

## لغتونه:

(نطفة) هغه اوبه چي انسان ورڅخه پيدا کېږي له (نطف) يعني څاڅکي څخه اخيستل شوي (دفء) هغه څېزچي انسان له يخني څخه وربانډي ځان تودوي (تريحون) ( رواح) دماښام په وخت کي دځرېدونکو حيواناتوله څرځايونو څخه راستنېدلوته وايي (تسرحون) (سراح) په ګهيځ کي د څرېدونکو حيواناتو څرځايونو بيولوته وايي (اثقالكم) (أثقال) د(أثقل) جمع سامانونو ته وايي څکه هغوى هم د پورته

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کولو په وخت کي درانه وي (جاثم) له حق څخه مائل او کوږته وايي (تسيمون) (أسام) د څرېدلولپاره خوشي کولوته وايي (ذرأ) د (خلق) په معناده (مواخر) (مخر) په اصل کي د أوبو څيرولوته وايي اودبېړۍ لپاره راځي (مخرت السفينة) کله چي بېړۍ اوبه ښي اوکيڼ لوري ته څيري اوغږ ځني پورته کېږي (تميد) اضطراب اوښورېدلوته ويل کېږي

د نزول سبب:

ابن عباس رضی الله عنهما وايي: کله چي دالله تعالی دا قول چي فرمايي: ﴿ اَقۡتَرَبَتِ ٱلسَّاعَةُ وَٱنشَقَّ ٱلۡقَمَرُ ﴾ (القمر ۱) نازل شو نو ځينو کفارو ځينو نوروته وويل: محمد ګمان کوي چي قيامت رانږدې شوی دی نوله ځيني هغو کارونو چي کول مولاس ونيسئ څو وګورو قيامت کله راځي خو کله چي ورځي اوږدې شوې نويې وويل: ای محمده! هغه څه موږ نه وينو چي تاورباندي وېرولو بيا الله تعالی داآيت چي فرمايي: ﴿ أَتَىٰٓ أَمۡرُ ٱللَّهِ فَلَا تَسۡتَعۡجِلُوهُ ﴾ نازل کړ[1]

تفسير:

﴿ أَتَىٰٓ أَمۡرُ ٱللَّهِ فَلَا تَسۡتَعۡجِلُوهُ ﴾ راغی حکم دالله (د قيامت نږدې والی) نو تلوار مه کوئ تاسي هغه (عذاب) ته (چي محمد يې وعده درکړې ده ) اوداچي د ماضي په صيغه يې تعبيروفرمايه څکه چي حکم ثابت اوراتلل يې نږدې دی. امام رازي وايي: څرنګه چي دغه واجب الوقوع وو نوځکه يې په ماضي صيغه وړاندي کړ لکه چي مستغيث ته وايي: ( جاءک الغوث فلاتجزع) يعني فريادديُ اورېدل شوی دی ژړا، زاري بس کړه[2] ﴿ سُبۡحَٰنَهُۥ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشۡرِكُونَ ﴾ پاکي ده الله لره اولوی دی له هغه چي دوی ورسره شريک پيداکوي ﴿ يُنَزِّلُ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةَ بِٱلرُّوحِ مِنۡ أَمۡرِهِۦ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ مِنۡ عِبَادِهِۦٓ أَنۡ أَنذِرُوٓاْ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱتَّقُونِ ﴾ نازلوي ملائکي سره له روح (وحی اونبوت ) په امر(اواراده) خپلي پرهغه چا چي اراده وفرمايي له بندګانو خپلو(دنبوت يې ) وحی ته ځکه روح وويل شو چي په وحی زړونه داسي ژوندي کېږي لکه چي په روح کالبوت اوبدن ، فرمايي انبياووته چي ) ووېروئ (کفار،خلګ) پدې چي بېشکه نشته معبود مګرهم دازه يم نو ووېرېږئ له (عذابه زما ) څخه) وروسته بيا الله پخپل وحدانيت اوقدرت باندي داسي دلائل راوړي فرمايي: ﴿ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ بِٱلۡحَقِّ ﴾ پيداکړي دي (الله ) آسمانونه اوځمکي په حق سره (يعني الله په ثابت حق اولوړ حکمت پيدا کړي عبث اوبېهوده نه دي ﴿ تَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشۡرِكُونَ ﴾ (پورته دی (الله) له هغه چي شريکان ورسره نيسي (دامشرکان) يعني الله له دې پاک اومنزه دی چي شريک اوسيال ورسره ونيول شي ﴿ خَلَقَ ٱلۡإِنسَٰنَ مِن نُّطۡفَةٖ ﴾ پيداکړي دي (الله)

(۱) زادالمسير ۴ / ۴۳۲
(۲) الرازي ۱۹ / ۳۱۸

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



انسانان (بشري جنس) له نطفې (خوارو اوکمزورو اوبوچې مني دي ) ﴿ فَإِذَا هُوَ خَصِيمٌ مُّبِينٌ ﴾ (نوناڅاپه دغه انسان سخت ښکاره جګړه کونکی دی ) يعني وروسته له هغه چې دانسان تکامل وشي بيادخپل خالق سره په ډاګه خصومت اوعنادکوي ، کبراو غرور ته مخه کړي سره له دې چې ددې لپاره پنځول شوی چې بنده وي منونکی وي اوانکارکونکی ، سرغړونکی نه وي ابن الجوزي وايې چې: انسان له نطفې پيداشوی خوبياهم له بعث څخه انکارکوي آياهغه له لومړني پيدا ښت څخه په دوهم باندي دليل نشي نيولی ؟چي هغه ذات چي انسان يې په لومړي ځل پيداکړی په دوهم ځل راپورته کولو يې هم توانا اوقادردی (۱)﴿ وَالْأَنْعَامَ خَلَقَهَا ﴾ او چارپايان يې پيداکړي دي ستاسي دمصالحو لپاره لکه اوښان ، غوايې اوپسونه) ﴿ لَكُمْ فِيهَا دِفْءٌ ﴾ چي شته په دوی کي اسباب دتودوخي (چي ورباندي له يخني خان ژغوري ددوی له وړينو، وړښتانو څخه داغوستلو اوهوارولو شيان لاس ته راوړي ﴿ وَمَنَافِعُ وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ ﴾ (او(نوري ډېري ) ګټي اوله ځينودغو(چارپايانو ) څخه تاسي خورئ ) يعني اوتاسوته پدې کي بېشمېره ګټي اومنافع شته چي هغه ددوی نسل اوذوذات پالل 'شيدې ځني ترلاسه کول ورباندي سپرېدل اوترېولوغته ګټه دهغوی غوښي خوړل دي ﴿ وَلَكُمْ فِيهَا جَمَالٌ حِينَ تُرِيحُونَ وَحِينَ تَسْرَحُونَ ﴾ (اوشته تاسي ته په دغو(چارپايانو ) کي زينت کله چي بيرته يې کورته راولئ لپاره دراحت اوکله چي بهرته يې دڅرني لپاره بيايئ ) يعني اوپه دغوچارپايانو اوڅارويو کي کله چي يې مابنام له څرځايه راولئ اويايې ګهيځ بيرته څرځای ته بياياست پداسي حال کي چي چاغ، پيړ ، روغ رمټ وي دزېب، زينت اوښکلا منظرستاسو لپاره شته دی ﴿ وَتَحْمِلُ أَثْقَالَكُمْ إِلَىٰ بَلَدٍ لَّمْ تَكُونُوا بَالِغِيهِ إِلَّا بِشِقِّ الْأَنفُسِ ﴾ اوباروي دغه (چارپايان ) درانه بارونه ستاسي (اورسوي يې) هغه ښارته چي نه واست تاسي رسېدونکي هغه ښارته مګرپه سختي اومشقت دځانونو خپلوسره ﴿ إِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴾بېشکه چي ستاسي رب خامخالوی شفقت والا ډېرمهربان دی (چي تاسو ته يې دغه څاروي تابع کړي دي ﴿ وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَزِينَةً ﴾ او(پيداکړي دي الله) آسونه، قچر (غاتري) اوخره لپاره ددې چي سپرېږئ تاسي په دوی باندي او(زينت کوئ پردغو ) په زينت کولوسره ﴿ وَيَخْلُقُ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴾ اوالله پيداکوي (ډېرنور ) شيان چي تاسي يې اوس نه پېژنئ ،لکه په اوس زمانه کي پرمخ تللي بېړۍ ، موټري ، الوتکي او..... چي الله جل جلاله يې انسان ته زده کړه ورکړي ده(۲)﴿ وَعَلَى اللَّهِ قَصْدُ

---

(۱) زادالمسير۴ / ۴۲۹

(۲) په تفسيرفی ظلال کي ليکي چي: اوس دحمل اونقل لپاره داسي وسائل اود سپرلۍ لپاره هسي اسباب موندل شوي چي پخوانيو هدو، نه پېژندل قرآن کريم ددغولپاره زړونه اوذهنونه تيارکړي دي ترڅوخلګ له دغومعاصرو آلاتو ، اسبابوڅخه انکاراوتردد ونکړي نوالله فرمايلي ﴿ وَيَخْلُقُ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴾ دلته به بيا انسانان هسي نه وايې چي زموږپلرونو آسان اوقچر په

Bawar.net



﴿ ٱلسَّبِيلِ ﴾ او پر الله دی بیان دلاري (برابري هغه چي لاروّی جنت ته رسوي ) ﴿ وَمِنْهَا جَآئِرٌ ﴾ او ځيني له دغو لارو څخه کږي هم دي (له حقه چي ورباندي تلونکي الله ته نه رسېږي دغه دګمراهي اوضلالت لاري دي لکه يهوديت ، نصرانيت اومجوسيت غوندي) ﴿ وَلَوْ شَآءَ لَهَدَىٰكُمْ أَجْمَعِينَ ﴾ اوکه اراده فرمايلي وی (الله دهدايت ستاسي )نوخامخاسمه برابره لاره به يې ښودلي وه تاسي ټولو ته؛ دايمان لاره خو دالله دحکمت داغوښتنه ده چي انسان لره يې دحريت آزادي اختيار پرې ايښی دی چي ﴿ فَمَن شَآءَ فَلْيُؤْمِن وَمَن شَآءَ فَلْيَكْفُرْ ﴾ ترڅو ثواب اوعذاب ورباندي مرتب شي څرنګه چي الله تعالی دهغه انعام چي چارپايان يې دانسان لپاره پيدا اوتابع کړي يادونه وکړه ورپسې يې دټولو سترو نعمتونو اوښايو سترنعمت چي په کائناتو کي شتون لري يادوي چي ﴿ هُوَ ٱلَّذِىٓ أَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً ﴾ الله هغه (ذات)دی چي نازل کړي (راليږلي ) دي له (طرفه د ) آسمانه اوبه ﴿ لَّكُم مِّنْهُ شَرَابٌ ﴾ (چي دی تاسي ته له دغو اوبو څخه څښل) يعني الله خوږې اوبه راليږلي چي تنده ورباندي ماته کړئ ﴿ وَمِنْهُ شَجَرٌ فِيهِ تُسِيمُونَ ﴾ اوله دغو اوبو څخه ونه (وابښه) هم ده چي په دغو وښوکي څروئ تاسي (حيوانات خپل) ﴿ يُنۢبِتُ لَكُم بِهِ ٱلزَّرْعَ وَٱلزَّيْتُونَ وَٱلنَّخِيلَ وَٱلْأَعْنَٰبَ ﴾ زرغونوي (الله ) تاسي ته په دغو اوبو سره کښت اوزيتون اوخرماګاني او(تاکونه د )انګورو (چي ډول ډول رنګونه او خوندونه لري ) ﴿ وَمِن كُلِّ ٱلثَّمَرَٰتِ ﴾ او له هرډول مېوو څخه (پاکيزه خوراکونه) ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَةً لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴾ بېشکه په دغو (داوبو نازلولو او مېوو راايستلو کي) خامخا ډېر دلائل (دقدرت اووحدانيت ) دي لپاره (دهغه) قوم چي فکرچلوي (دالله په صنعت کي سوچ کوي ابوحيان وايي : آيت شريف يې پدې بشپړ کړ چي ﴿ يَتَفَكَّرُونَ ﴾ څکه پدې کي نظرکول سوچ او فکرته اړوي چي آياته نه ګوري چي يو دانه زړی کله چي په ځمکه کي ننې وزي اوريښې ځغلوي برسېره تنه يې دځمکي په سر وده کوي پنډېږي، ښې اوګلان سپړي، مېوې اوګټي منافع لري دغه ټول د مقتدر قادرلايزال (الله ) په قدرت اوتقديرصورت مومي(¹)﴿ وَسَخَّرَ لَكُمُ ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ وَٱلشَّمْسَ وَٱلْقَمَرَ ﴾ (اومسخره کړي يې ده تاسي ته شپه اوورځ اولمراوسپوږمۍ ) يعني الله تابع کړي ده ستاسي دګټو اومنافعو لپاره ځي راځي ﴿ وَٱلنُّجُومُ مُسَخَّرَٰتٌۢ بِأَمْرِهِۦٓ ﴾ (اوستوري مسخر دي په حکم ددغه (الله) سره يعني الله ستوري ستاسو دګټي اخيستلو لپاره په کاراچولي دي پخپلو افلاکو کي راځرخي ترڅو تاسو دبېديا او سيند په تيارو کي ورباندي لاره پيدا کړئ ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴾ بېشکه په دغو کي خامخا ډېر دلائل (دقدرت) دي

---

کاراچولي اوموږ هم له هغه پرته نور شيان نه منو ځکه نو قرآنکريم دهغه پرمخ تللي علمي کارنامو او دمستقبل او راتلونکی داختراعاتو لپاره زړونه اوذهنونه تيار سن کړل.

(¹) البحره / ۴۷۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



لپاره دهغه قوم چي پکي عقل چلوي (اودسالم عقل خاوندان وي) ﴿ وَمَا ذَرَأَ لَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُخْتَلِفًا أَلْوَانُهُ ﴾ اوهغه چي پيدا كړي دي (الله) تاسي ته په ځمكه كي (عجيبه شيان) له حيواناتو، نباتاتو، معدنونو، جماداتو) حال داچي مختلف دي سره رنګونه (شكلونه، ډولونه، خانګړتياوي اومنافع) ددوی ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَذَّكَّرُونَ ﴾ بېشكه په دغه (اختلاف داشكالواو انواعو دمخلوقاتو) كي خامخا (دقدرت لوی) دليل دی دهغه قوم لپاره چي پنداخلي ﴿ وَهُوَ الَّذِي سَخَّرَ الْبَحْرَ ﴾ اوالله هغه (ذات) دی چي مسخركړی يې دی (ځپاند) درياب (لپاره ددې چي سپاره پكي وګرزئ اوپه تل كي يې غوټې ووهئ ﴿ لِتَأْكُلُوا مِنْهُ لَحْمًا طَرِيًّا ﴾ دپاره ددې چي وخورئ تاسي (له ښكاره) ددې درياب نه تازه غوښه (دماهيانو) ﴿ وَتَسْتَخْرِجُوا مِنْهُ حِلْيَةً تَلْبَسُونَهَا ﴾ اوراوباسئ تاسي په (غوپه وهلو سره) له دغه (دريابه) ګاڼه چي تاسي يې اغوندی (يعني لؤلؤ اومرجان چي ستاسي ښځي يې اغوندي ﴿ وَتَرَى الْفُلْكَ مَوَاخِرَ فِيهِ ﴾ اووينې به ته (ای كتونكيه !) بېړۍ روانه په دغه (درياب) كي (چي ځيروي به اوبه اوستاسي روزي اوبارونه به لېږدوي) ﴿ وَلِتَبْتَغُوا مِن فَضْلِهِ ﴾ اوچي طلب كړئ تاسي (روزي) له فضله ددغه (الله) ﴿ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴾ اولپاره ددې چي تاسي شكروباسئ (پردغو سترونعمتونو دپالونكي الله پاندي) ﴿ وَأَلْقَىٰ فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَن تَمِيدَ بِكُمْ ﴾ اوغورځولي يې دي په ځمكه كي غرونه مېخونه ټينګ لپاره ددې چي ونه ښورېږي په تاسي؛ ابوالسعود ليكي چي: ځمكه پخوادغرونو له پيدايښت نه يوه سپكه كره غوندي وه او دا ورسره ښائېدل چي په أدنى او وړوكي سبب هم وښورېږي اوكله چي غرونه ورباندي پيداشول نو دمركزپه لوري يې دروندوالي مخ كړاودغه غرونه لكه مېخونه غوندي ورباندي ووهل شول (۱) ﴿ وَأَنْهَارًا وَسُبُلًا لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴾ او(پيداكړي الله) ويالې اولاري لپاره ددې چي لاره پيداكړئ (خپلو موخو اومقصدونو ته) ﴿ وَعَلَامَاتٍ ۚ وَبِالنَّجْمِ هُمْ يَهْتَدُونَ ﴾ (اوپيداكړي دي (الله په ځمكه كي) نښې (دلياري) اوپه ستوروسره دغه (لاروي) لاره مومي) يعني الله جل جلاله داسي علامې پيداكړي چي: دلاري په پيداكولو كي په كارېږي دستورو په ذريعه دشپې په بېدياكي لاره مومي په دريابونو كي دلاري پيداكولو لپاره هم له ستورو استفاده كېږي. ابن عباس رضى الله عنهماوايې چي: (علامات) دلارونښې ته ورځ كي اوپه ستورو سره دوی دشپې لاره پيداكوي ﴿ أَفَمَن يَخْلُقُ كَمَن لَّا يَخْلُقُ ﴾ آياهغه (ذات) چي هرشی )پيدا كولای شي په شان دهغه چادی چي نشي پيداكولای (هيڅ شی ؟) دلته انكاري استفهام دی اومعنا دا چي آيادداغه سترو شيانوپيداكونكی ذات چي دومره نعمتونه يې دركړي له هغه چاسره برابروئ چي هيڅ يې دځان

(۱) ابوالسعود ۳ / ۱۲۷

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



لپاره په لاس کي نشته نه ګټه رسوي او نه هم ضرر دفع کولای شي نو رخولا پر پرېږده ؟ آیا نو دغه سپک بُت له هغه سترذات دعالم پیداکونکي سره شریک نیسئ ؟ پدې کي دکافرانو لپاره تبکیت او ددوی دهغه عبادت چي دبتانو په وړاندي یې ترسره کوي ابطال دی ﴿ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴾ آیا نو تاسي پندنه اخلئ؟ (نو به تاسي ته خپله خطا څرګنده شي چي تاسو دغیرالله عبادت کوئ او دابل توبیخ دی ﴿ وَإِن تَعُدُّوا نِعْمَةَ اللَّهِ لَا تُحْصُوهَا ۗ إِنَّ اللَّهَ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ او که وشمېرئ تاسي دالله نعمتونه (چي درکړي یې دي) نو نه یې شئ شمېرلای (نو څرنګه به یې شکراداکړی شي؟) بېشکه چي الله خامخا بښونکی (دګناهونو او تقصیراتو) دی ډېر رحم والادی (په بندګانو خپلو چي ددوی له ګناهونو سره سره ورباندي انعامات اوروي ﴿ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُسِرُّونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ﴾ او الله ته معلوم دي هغه نیتونه او اعمال ) چي پټوئ یې تاسي او هغه چي تاسو یې ښکاروی (نو به ورباندي جزادرکړي ﴿ وَالَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ لَا يَخْلُقُونَ شَيْئًا وَهُمْ يُخْلَقُونَ ﴾ او هغه بتان چي دغه (کفار) یې بولي غیرله الله نه نشي پیداکولای دوی هیڅ څیز حال داچي دوی پخپله (هم) پیداکاوه شي (دوی دبشردلاس پیداوار او صنعت دی نو څرنګه به دوی له الله پرته معبود جوړشي ) ﴿ أَمْوَاتٌ غَيْرُ أَحْيَاءٍ ﴾ دغه (بتان) مړه دي (روح پکي نشته نه ویني ، نه اوري ځکه دوی جمادات دي ) ژوندي نه دي (نو څرنګه تاسو ددوی عبادت کوئ ؟ حال داچي تر هغوی تاسي بهتریاست ځکه ژوندخولرئ؟ ﴿ وَمَا يَشْعُرُونَ أَيَّانَ يُبْعَثُونَ ﴾ او (په دي هم) نه پوهېږي دغه (بتان) چي کله به راولاړاوه شي (عابدان ددوی یعني دوی جمادات دي احساس او شعورنه لري پدې کي په مشرکانو باندي تهکم کول دي ﴿ إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ﴾ معبود ستاسي یو معبود دی (دعبادت مستحق او ورهیڅ شریک نلري) ﴿ فَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ قُلُوبُهُم مُّنكِرَةٌ ﴾ نو هغه ( کسان ) چي ایمان نه راوړي په آخرت زړونه ددغو (بې ایمانو) منکردي ( له وحدانیت دالله او دبعث او جزاڅخه ﴿ وَهُم مُّسْتَكْبِرُونَ ﴾ او دوی تکبرکونکي دي (له منلو دحق نه وروسته له هغه چي دلائل یې ورته څرګند شوي هم دي ﴿ لَا جَرَمَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ ﴾ ربښتیا واقعي خبره داده چي بېشکه الله ته معلوم دي (هغه حالات ) چي پټوي یې دوی او هغه چي ښکاره کوي یې ﴿ إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُسْتَكْبِرِينَ ﴾ بېشکه چي دغه الله نه خوښوي تکبر کونکي ( له توحید او ایمان څخه ) ﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُم مَّاذَا أَنزَلَ رَبُّكُمْ ﴾ او کله چي دغو(متکبرانو ) ته وویلی شي چي ستاسي رب ( پخپل استازي ﷺ )؟ څه شی نازل کړی دی ؟ ﴿ قَالُوا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴾ نو وایې دوی دغه خوشي افسانې دپخوانیو(خلګو ) دي دغه به یې داستهزاء او ملنډو په توګه ویل چي دغه درب العالمین کلام نه دی بلکه دپخوانیو امتونو خُرافات او چټیات دي . مفسرین کرام وایې چي : کله به مشرکان دمکې په لاروکي کښېناستل نو به یې خلګ له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه شړل او وېرول کله چي به دحجاج تولګیو ورڅخه وپوښتل چي په

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



محمدصلی الله علیه وسلم څه شی نازل شوی دی ؟ نودوی به ورته ویل د پخوانیو اُمتونو باطلي کیسې اواپلتي دي (۱)﴿ لِيَحۡمِلُوٓاْ أَوۡزَارَهُمۡ ﴾ (نوالله فرمايي چي:) د پاره ددې چي په شاواخلي پېټی (دګناهونو) خپلو) یعني دوی دغه بهتان ویلو ترڅو خپل بشپړ ګناهونه بارکړي پرته له دې نه چي هيڅ هم څې کم شي ﴿ كَامِلَةً يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ ﴾ پوره په ورځ دقيامت کي ﴿ وَمِنۡ أَوۡزَارِ ٱلَّذِينَ يُضِلُّونَهُم بِغَيۡرِ عِلۡمٍۗ ﴾ او(هم داسي واخلي) له پېټي (دګناهونو ) دهغوکسانو ) چي ګمراه کړي دي دوی هغولره په ناپوهي کي) څکه دوی دهغومشران اورئيسان وو څکه به يې ګناهونه ورباندي باربړي ﴿ أَلَا سَآءَ مَا يَزِرُونَ ﴾ خبردارشئ بددی هغه څيز چي دوی يې باروي (پخپلوشاوو باندي) دغه په زجرکي زياته مبالغه ده ﴿ قَدۡ مَكَرَ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ ﴾ په تحقيق مکرکړی دی (مجرمانوله انبياووسره) هغو کسانوچي ( تېرشوي) دي پخواله دوی نه ؛ دوی غوښتل چي دالله دنورشغله مړه کړي هغوی دمکې له کفاروپخواتېرشوي وو پدې کي درسول الله صلی الله عليه وسلم لپاره دادينه اوتسلاده ﴿ فَأَتَى ٱللَّهُ بُنۡيَٰنَهُم مِّنَ ٱلۡقَوَاعِدِ ﴾ نوراغی حکم ) دالله په (چپه کولو ) د(اوچتو ) مانيو ددوی له تاداوونو څخه) پدې کي ددوی دمکرتمثيل شوی دی چي انجام يې څه وو؟ ﴿ فَخَرَّ عَلَيۡهِمُ ٱلسَّقۡفُ مِن فَوۡقِهِمۡ ﴾ نوپرېوت پردوی چت (دکوټو ددوی) له پاسه دسرونو (ددوی اومړه شول) ﴿ وَأَتَىٰهُمُ ٱلۡعَذَابُ مِنۡ حَيۡثُ لَا يَشۡعُرُونَ ﴾ اوراغی دوی ته عذاب له هغه لوري چي نه پوهېدل ؛ په زړه کي يې هم نه ورتېرېدل په آيت شريف کي دهلاکت پوره تمثيل راغلی چي هغه کسان چي په انبياوو عليهم السلام ملنډي وهي له هغوی سره مکرکوي دالله ددعوت اوبلني په وړاندي خنډجوړوي داسي سوچ کوي چي ددوی مکراوفرېب به شنډنشي اوتدبيربه يې مات نشي خوالله پردوی چاپېردی الله يې له داسي پلوه چي دوی ګومان هم نکوي هلاکوي ﴿ ثُمَّ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ يُخۡزِيهِمۡ ﴾ بيا په ورځ دقيامت کي به( الله وشرموي ) رسواکړي دوی ﴿ وَيَقُولُ أَيۡنَ شُرَكَآءِيَ ٱلَّذِينَ كُنتُمۡ تُشَٰٓقُّونَ فِيهِمۡۚ ﴾ اووبه فرمايي چي: چېرته دي شريکان زما؟ (ستاسي په زعم ) هغه چي وی تاسي چي مخالفت به موکاوو (له انبياوو سره)هغوی راحاضرکړئ چي ستاسي شفاعت وکړي په آيت شريف کي داستهزاء اوتهکم اسلوب راغلی دی ﴿ قَالَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡعِلۡمَ إِنَّ ٱلۡخِزۡيَ ٱلۡيَوۡمَ وَٱلسُّوٓءَ عَلَى ٱلۡكَٰفِرِينَ ﴾ وبه وايي هغه کسان چي دوی ته علم ورکول شوی دی (بلونکي ، علماء دعوتګر) چي بېشکه رسوايي ده نن ورځ اوعذاب پرکافرانودی؛ دغه به دشماتت په توګه ووايي ﴿ ٱلَّذِينَ تَتَوَفَّىٰهُمُ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ ظَالِمِيٓ أَنفُسِهِمۡۖ ﴾ هغه (کافران) چي قبضوي (ارواح د) دوی ملائکي پدې حال کي چي ظلم کونکي دي دوی په نفسونو خپلو (په کفراوشرک سره) ﴿ فَأَلۡقَوُاْ

(۱) البحر ۵/ ۴۸۴

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ٱلسَّلَمَ مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِن سُوٓءٍۭ﴾ نو وړاندي به کړي روغه (غاړه به کېښېږدي خلاف العادة په دغه حال دمرګ کي اووبه وايي ) نه وو موږه چي عمل به موکاوو دهیڅ قسم بدي (لکه چي بل ځای الله ددوی هسي حکایت کوي چي وايي به: ﴿وَٱللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ ۝٢٣﴾ الانعام: ۲۳ ﴿بَلَىٰٓ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌۢ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ (نووبه وايي الله ولي مونه کاوو دروغ مه وايئ ! )بلکه کاووتاسي معصیت ګناه بېشکه چي الله ښه عالم دی په هغه څه چي تاسي به کول (په دنياکي) ﴿فَٱدْخُلُوٓا۟ أَبْوَٰبَ جَهَنَّمَ خَٰلِدِينَ فِيهَا﴾ نو(وبه ویلی شي دغوظالمانوته ) چي ننوزئ اوس تاسي ددوزخ په دروازوکي چي تل به پکي یاست ﴿فَلَبِئْسَ مَثْوَى ٱلْمُتَكَبِّرِينَ﴾ نوخامخابدځای دهستوګني دادوزخ دی دمتکبرانولپاره.

بلاغت:

پدې آیتونوکي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوي شته څه یې دلته په لاندي ډول دي:

۱- پدې آیت کي چي فرمايي: ﴿فَٱتَّقُونِ﴾ دالتفات صنعت راغلی او دمستعجلینو لپاره خطاب دی

۲- داطناب اسلوب چي فرمايي: ﴿أَمْوَٰتٌ غَيْرُ أَحْيَآءٍ﴾ چي دغه دهغوکسانوچي دبتانوعبادت کوي سفاهت څرګندوي اوبل مثال يې داآیت چي: ﴿لَا يَخْلُقُونَ شَيْـًٔا وَهُمْ يُخْلَقُونَ﴾ دی.

۳- دطباق صنعت د﴿يُسِرُّونَ... او... يُعْلِنُونَ﴾ او﴿تُرِيحُونَ...و تَسْرَحُونَ﴾ ترمنځ

۴- دمبالغې صیغه لکه په ﴿خَصِيمٌ مُّبِينٌ﴾ او﴿لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ کي چي راغلی دی.

۵- دسلب طباق لکه په ﴿أَفَمَن يَخْلُقُ كَمَن لَّا يَخْلُقُ﴾ کي چي راغلی دی.

۶- پدې آیت کي چي فرمايي ﴿لَا يَخْلُقُونَ وَهُمْ يُخْلَقُونَ﴾ ناقص جناس شتون لري.

۷- تمثیلي استعاره لکه ﴿قَدْ مَكَرَ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ..... فَخَرَّ عَلَيْهِمُ ٱلسَّقْفُ مِن فَوْقِهِمْ﴾ کي چي ددغومکرجنوحال يې له هغه چاسره تشبیه کړچي دنګي مانۍ يې ودانې کړي وي او وربانډي راپرېوزي دوی ترې لاندي ومري پدې کي تمثیلي استعاره راغلی ده اودمشابهت وجه يې داده چي دوی خوګومان کاووداغه به ددوی دبقاسبب وي خوهغه يې دهلاکت سبب جوړشي لکه چي وايي:

کوهی مه کینه دبل سړي په لارکي * ناګهانه به دستاپه کوهي لارشي.

فائده:

قرطبي وايي چي : سورة النحل ته دنعمتونو سورت هم وايي ځکه چي الله کوم زیات نعمتونه پخپلوبندګانو پېرزوکړي دلته يې يادونه شوي ده(۱)

***

---

(۱) القرطبي ۱۰/ ۳۶

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



الله تعالی فرمايي:

﴿ ۞ وَقِيلَ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا مَاذَا أَنزَلَ رَبُّكُمْ ۚ قَالُوا خَيْرًا ۗ لِّلَّذِينَ أَحْسَنُوا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ ۚ وَلَدَارُ الْآخِرَةِ
خَيْرٌ ۚ وَلَنِعْمَ دَارُ الْمُتَّقِينَ ﴿٣٠﴾ جَنَّاتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ۖ لَهُمْ فِيهَا مَا يَشَاءُونَ ۚ كَذَٰلِكَ يَجْزِي اللَّهُ
الْمُتَّقِينَ ﴿٣١﴾ الَّذِينَ تَتَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ طَيِّبِينَ ۙ يَقُولُونَ سَلَامٌ عَلَيْكُمُ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٣٢﴾ هَلْ
يَنظُرُونَ إِلَّا أَن تَأْتِيَهُمُ الْمَلَائِكَةُ أَوْ يَأْتِيَ أَمْرُ رَبِّكَ ۚ كَذَٰلِكَ فَعَلَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ وَمَا ظَلَمَهُمُ اللَّهُ وَلَٰكِن
كَانُوا أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿٣٣﴾ فَأَصَابَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا عَمِلُوا وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴿٣٤﴾ وَقَالَ
الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا عَبَدْنَا مِن دُونِهِ مِن شَيْءٍ نَّحْنُ وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِن دُونِهِ مِن شَيْءٍ ۚ كَذَٰلِكَ
فَعَلَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ فَهَلْ عَلَى الرُّسُلِ إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ﴿٣٥﴾ وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولًا أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ
وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ ۖ فَمِنْهُم مَّنْ هَدَى اللَّهُ وَمِنْهُم مَّنْ حَقَّتْ عَلَيْهِ الضَّلَالَةُ ۚ فَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانظُرُوا كَيْفَ
كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ﴿٣٦﴾ إِن تَحْرِصْ عَلَىٰ هُدَاهُمْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَن يُضِلُّ ۖ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٣٧﴾
وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ ۙ لَا يَبْعَثُ اللَّهُ مَن يَمُوتُ ۚ بَلَىٰ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٨﴾
لِيُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِي يَخْتَلِفُونَ فِيهِ وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّهُمْ كَانُوا كَاذِبِينَ ﴿٣٩﴾ إِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ إِذَا أَرَدْنَاهُ أَن
نَّقُولَ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴿٤٠﴾ وَالَّذِينَ هَاجَرُوا فِي اللَّهِ مِن بَعْدِ مَا ظُلِمُوا لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً ۖ وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ ۚ
لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ﴿٤١﴾ الَّذِينَ صَبَرُوا وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ﴿٤٢﴾ وَمَا أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِي إِلَيْهِمْ ۚ
فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٤٣﴾ بِالْبَيِّنَاتِ وَالزُّبُرِ ۗ وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ
وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ﴿٤٤﴾ أَفَأَمِنَ الَّذِينَ مَكَرُوا السَّيِّئَاتِ أَن يَخْسِفَ اللَّهُ بِهِمُ الْأَرْضَ أَوْ يَأْتِيَهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا
يَشْعُرُونَ ﴿٤٥﴾ أَوْ يَأْخُذَهُمْ فِي تَقَلُّبِهِمْ فَمَا هُم بِمُعْجِزِينَ ﴿٤٦﴾ أَوْ يَأْخُذَهُمْ عَلَىٰ تَخَوُّفٍ فَإِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿٤٧﴾
أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَىٰ مَا خَلَقَ اللَّهُ مِن شَيْءٍ يَتَفَيَّأُ ظِلَالُهُ عَنِ الْيَمِينِ وَالشَّمَائِلِ سُجَّدًا لِّلَّهِ وَهُمْ دَاخِرُونَ ﴿٤٨﴾ وَلِلَّهِ
يَسْجُدُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ مِن دَابَّةٍ وَالْمَلَائِكَةُ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ﴿٤٩﴾ يَخَافُونَ رَبَّهُم مِّن فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُونَ
مَا يُؤْمَرُونَ ۩ ﴿٥٠﴾ ﴾ النحل: ۳۰ ــ ۵۰

## مناسبت او تړاو:

کله چې الله تعالی دهغو بدمرغو کسانو چې دالله دنعمتونو کفران يې کړی يادونه وکړه هغوی چې قرآنکريم يې پېغور ګڼه او ويل يې چې دغه دپخوانيو اُمتونو چټيات او اپلتې کيسې دي نو الله ددوی اخروي انجام او هغه خواري ، شرمندګي او سپک والی وښودچي دوی به ورسره په قيامت کې لاس اوګريوان وي ورپسې دلته الله پاک دنېکمرغه خلګو هغه نعمتونه او پېرزويني راوړي چې الله به يې په

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



جنت کي ورکوي ترڅوددوا ړو ډلو ترمينځ جلاوالی بربنډشي اودابرارو اوفجارو ترمينځ ښه بېلتون وشي لکه چي دقرآنکريم تل همدغه اسلوب دی.

**لغتونه:**

(الزبر) آسماني کتابونه دزبورجمع اوليکلي کتاب ته وايي (يخسف) په ځمکه کي ننوتل ته (خسف) وايي (يتفيأ) يوبل لوري ته کږېږي اوسيوري ته (فئ) ځکه وايي چي: له يوه لوري بل ته خوځېږي درومي (داخرون) سپک اوذليل.

**تفسير:**

﴿وَقِيلَ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا﴾ او وبه ويل شي هغوکسانوته چي متقيان (دايمان خاوندان دوهمه ټولګی ده ﴿مَاذَا أَنزَلَ رَبُّكُمْ قَالُوا خَيْرًا﴾ (چي څه شيزدی هغه چي ستاسي رب نازل کړی دی ؟ نو وايي دغه (مؤمنان) چي ( رالېږلی يې دی زموږ) خير) مفسرين کرام وايي: دحج دموسم په وخت کي به چي کله سرې مکې ته راغی نوله مشرکانو څخه به يې دمحمدصلی الله عليه وسلم په هکله اودهغه چاري پوښتنه کوله هغوی به ورته ويل: بېشکه دغه کاهن ، کوډګر اودروغجن دی اوبيابه مسلمانانوته راغی اودمحمدصلی الله عليه وسلم اوهغه څه چي ورباندي نازل شوي پوښتنه به يې وکړه هغوی به په ځواب کي ورته ويل: الله ورباندي خير، هدايت اوقرآن نازل کړی دی نو الله جل جلاله ددوی دنېکي جزا په هکله بيان فرمايي: ﴿لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ﴾ شته هغو کسانوته چي نېکي يې کړي ده په دغه دنياکي نېکه جزاء (داحسان په سبب) ﴿وَلَدَارُ الْآخِرَةِ خَيْرٌ﴾ اوخامخاکورد آخرت (جنت) غوره دی (ترکورددنياڅخه چي هغه تلپاتي اودنيا فاني ده ﴿وَلَنِعْمَ دَارُ الْمُتَّقِينَ﴾اوخامخاډېرښه کورد پرهېزګارانو دی (دغه دار) ﴿جَنَّاتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ﴾ جنتونه دي دهمېشه اوسېدلو چي ننوزي به دوی هغوته چي رواني به وي لاندي ( له ماڼيواوونو ) دهغه ويالې ﴿لَهُمْ فِيهَا مَا يَشَاءُونَ﴾ چي وي به تل دوی ته په دغو باغونو کي هرهغه نعمت چي دوی يې اراده کوي (پرته له کوم کړاواومشکل څخه!) ﴿كَذَٰلِكَ يَجْزِي اللَّهُ الْمُتَّقِينَ﴾په شان ددغي جزاجزا ورکوي الله پرهېزګارانو ته (هغه چي پرهېزکونکي له محارمو اومنګولي ښخونکي په اوامرو وي ) ﴿الَّذِينَ تَتَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ طَيِّبِينَ﴾ (هغه کسان چي قبضوي ارواح ګاني ددوی پرښتې پداسي حال کي چي پاک دي (دغه مقتين له شرک اومعصيته خوښي به ښکاري دوی دالله جل جلاله په پيوستون اوملاقات باندي ) ﴿يَقُولُونَ سَلَامٌ عَلَيْكُمُ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ ( سلام به ورته وايي دوی ته چي ننوزئ جنت ته په سبب دهغو نېکيو چي تاسوبه يې عمل کاوو ) يعني ملائکي به سلام وراچوي اودجنت زېری به ورکوي ابن عباس رضی الله عنهما وايي چي پرښتې به دالله له لوري سلام ورته راوړي اوداخبربه ورکوي چي دوی له

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اصحاب اليمين څخه دي(١) ﴿ هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّآ أَن تَأْتِيَهُمُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ أَوْ يَأْتِيَ أَمْرُ رَبِّكَ ﴾ (آيا انتظار کوي دغه (کفار) مگر ددې چې رابه شي دوی ته ملائکي (دقبض کولو دروح يې) اويا راشي ورته حکم دعذاب درب ستا) بيرته خبره دمشرکانو توبيخ اوتقريع ته راوگرزي چې دوی څومره په باطل کې غوپه اوپه دنياغره دي نومعناداچې دوی انتظارنه کوي مگرددوو څيزونو چې يويې دمرگ راتلل دي اوبل سمدستي عذاب دی آيادوی ته دپخوانيو مکذبينو (دروغجنو) انجام ښکارندنه دی چې ترې پند واخلي؟ ﴿ كَذَٰلِكَ فَعَلَ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ﴾ په شان ددغه (کفراوتکذيب) کړی وو (شرک اوتکذيب) هغوکسانو چې پخواله دوی تېرشوي وو (ترڅوچې وربانديي عذاب نازل شو) ﴿ وَمَا ظَلَمَهُمُ ٱللَّهُ وَلَٰكِن كَانُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴾ اوالله پردوی ظلم نه وو کړی (په اهلاک اوتعذيب سره) ولکن وو دوی چې پرځانونو خپلويې ظلم کاوو (په شرک او گناهونو سره) ﴿ فَأَصَابَهُمْ سَيِّـَٔاتُ مَا عَمِلُوا۟ ﴾ نو ورسېده دوی ته جزادهغوبديوچې کړي وو دوی (دپليتو اعمالوڅخه) ﴿ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا۟ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴾ اوچاپېرشو پردوی (دردناک عذاب دجحيم) چې وودوی په هغه (عذاب) پوري به يې مسخرې کولې ﴿ وَقَالَ ٱلَّذِينَ أَشْرَكُوا۟ ﴾ او وويل هغو کسانو چې شرک يې غوره کړی وو (د قريشو کفارو) ﴿ لَوْ شَآءَ ٱللَّهُ مَا عَبَدْنَا مِن دُونِهِۦ مِن شَىْءٍ نَّحْنُ وَلَآ ءَابَآؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِن دُونِهِۦ مِن شَىْءٍ ﴾ که اراده فرمايلي وای الله نوموږ به عبادت نه وو کړی غيرله دغه (الله) دهيڅ څيز (نه) موږ او نه پلرونو زموږ اونه به حرام کړی وو موږ بې له حکمه ددغه (الله) هيڅ شی) يعني که دالله اراده وای نوبه نه موږ اونه هم زموږ پلرونو دبتانو عبادت کړی وای اونه به موهغه څه چې حرام کړي مودي لکه (بحائر اوسوائب) حرام کړي وای دغه به يې دملنډو اواستهزاء په توگه ويل نه داچې همداسي يې عقيده وه د دوی مقصدله دې نه داوو چې گواکي ددوی اشراک اوتحريم دالله په اراده ترسره شوی اودغه صواب اوحق دی (٢) ﴿ كَذَٰلِكَ فَعَلَ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ﴾ په مثل ددغه (عمل ددوی کړي وو هغو کسانو چې پخواله دوی (تېرشوي) وو (له مجرمانومکذبانو څخه استهزاء اوتکذيب اوهمداسي باطل احتجاج يې کړی وو خپل کفر اوگناهونه يې

(١) الطبري ١٠١/١٤

(٢) په تفسيرفي ظلال کې ليکي: چې دغه دمشرکانو يوه نوې ويناده چې دوی يې دخپل شرک دسبب په هکله کوي وايي: چې ددوی شرک اوتحريم دځينوذبائحو دالله په مشيت اواراده باندې صورت نيولی دی که الله غوښتي وای (ددوی په زعم) چې داسې څه دې ونکړي نوځني منع کړي به يې وای ... اودغه وهم اوخطاء دی چې دوی يې دالهي مشيت په هکله لري ځکه الله جل جلاله دبندگانو لپاره شرک نه خوښوي اونه هم پدې راضي دی چې هغه پاکيزه حلال شيان دې حرام وگرزولی شي دالله دغه اراده ددوی درسولانو په ژبه منصوصي شريعت دوی ته ابلاغ شوي وه ځکه الله فرمايي: ﴿ وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِى كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولًا أَنِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ وَٱجْتَنِبُوا۟ ٱلطَّٰغُوتَ ﴾ دغه دالله حکم اودغه يې اراده ده خودالله خالق اوحکيم ذات ارادې داغوښتي چې بشرته دغوراوي اواختيارواک ورکړی چې هدايت غواړي، که ضلالت خوښوي ٢١/١٤

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



هېر کړي وو سره له دې چي انبياوو دوی دالله له غضبه اوله اوره څخه وېرولي وو ﴿ فَهَلْ عَلَى الرُّسُلِ إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ﴾ آیاشته پررسولانو؟ (بلکه نشته پرې هيڅ) مګر رسونه ښکاره ده (اودهدايت اوايمان واک له الله جل جلاله سره دی ﴿ وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَسُولًا أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ ﴾ اوخامخاپه تحقيق لېږلی وو موږپه هر (پخواني ) اُمت کي يورسول چي ( وواېي دوی ته) چي عبادت کوئ (يوازي) دالله اوځان ساتئ له باطلو معبودانو څخه(لکه کاهن ، شيطان اوبت اوهر هغه چي ضلالت اوګمراهي ته مو بولي ﴿ فَمِنْهُم مَّنْ هَدَى اللَّهُ ﴾نو ځيني له دوی هغه ووچي الله ورته لارښوونه وکړه (عبادت اودين ته نوايمان يې راوړ) ﴿ وَمِنْهُم مَّنْ حَقَّتْ عَلَيْهِ الضَّلَالَةُ ﴾ اوځيني ددوی هغه ووچي ګمراهي پرې ثابته شوه (اوکافران شول پوه شه چي الله خپل رسولان اواستازي ددې لپاره رااستولي چي خلګ دالله جل جلاله لوري ته وبولي نوځيني ددوی دبلني اجابت کوي الله ورته دحق لارښوونه کوي اوځيني هغه دي چي بلنه يې نه مني نوالله يې ګمراه کوي ﴿ فَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ﴾ نو وګرزئ تاسي په ځمکه کي ( ای دقريشو مشرکانو ) نو وګورئ چي څرنګه وه آخره خاتمه (انجام) ددروغجن کونکو (ښايې چي تاسي پندواخلئ ﴿ إِن تَحْرِصْ عَلَىٰ هُدَاهُمْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَن يُضِلُّ ﴾ ( که ته ډېرحرص وکړې ( ای محمده ! ) په هدايت ددوی نوبېشکه چي الله دهدايت لاره نه ښيې هغه چاته چي ګمراه‌کوي يې ) دلته رسول الله ته خطاب فرمايې چي: ای محمده که ته ددوی په لارښوونه اوهدايت کي ډېر حرص هم وکړې خوالله جل جلاله په زوره اوجبري توګه هدايت هغه چاته نه کوي چي پخپله خوښه يې ګمراهي غوره کړي وي ﴿ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴾ اونه به وي دغو ګمراهانوته هيڅ له مددګارانو (چي دالله له عذابه يې وژغوري ) ﴿ وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَا يَبْعَثُ اللَّهُ مَن يَمُوتُ ﴾ اوقسمونه کوي دوی پرالله په سختوقسمونوباندي چي الله به بيانکړي ژوندی هغه څوک چي يوځل مړشي ، دوی بيرته راپاڅېدل ډېرناشوني ګڼل چي څرنګه به وراسته اوايرې شوي بدنونه بيارغېږي اوراپاڅېږي الله ددوی دترديد په هکله وفرمايل: ﴿ بَلَىٰ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا ﴾ بلکه ژوندي به يې کړي (څکه چي وعده يې کړي ده) پداسي وعده کولو چي پرې لازمه ده (خامخابه يې (تفضلا) ترسره کوي ) ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ وليکن ډېر دخلګونه پوهېږي (په قدرت دالله نوله بعث اونشور څخه انکارکوي ) ﴿ لِيُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِي يَخْتَلِفُونَ فِيهِ ﴾ (دپاره ددې چي ښکاره کړي الله دوی ته (حشر اونشر) چي جګړې به کولې دوی په هغه کي ) يعني الله به دوی راپاڅوي چي دوی ته خپله ګمراهي څرګنده شي هغه چي له بعث څخه به يې انکارکاوو اوترڅوهغه حق چي دوی به پکي اختلاف کاوو ورښکاره اوعدل وشي اودمطيع اوعاصي ترمينځ بېلتون راشي اوظالم اومظلوم سره جلاشي ﴿ وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّهُمْ كَانُوا كَاذِبِينَ ﴾ او(بل) ددې چي پوه شي هغه کسان چي کافران شوي دي (پدې

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


خبره چي) بېشکه دوی دروغجنان دي (په هغه څه کي چي دوی يې وايې ) ﴿ إِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ إِذَا أَرَدْنَٰهُ أَن نَّقُولَ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ ﴾ (بېشکه هم دا خبره ده چي خبرزموږ کوم څيزته کله چي اراده وکړو (دپيدا کولو يې) داده چي ووايو هغه ته چي (پيدا ) شه نو(پيدا ) شي ) يعني دغه چاره زيات محنت ته اړه نلري څکه موږ يوشي ته وايو(شه) پس هغه (وشي) مفسرين کرام وايې چي : دغه يوازي ذهنونو ته تقريب اونږدې کول دی په حقيقت کي خوچي دالله پاک کوم کارته اراده وشي نوپرته د(کن ) له لفظ څخه هم هغه کېدونکی دی ﴿ وَٱلَّذِينَ هَاجَرُواْ فِي ٱللَّهِ مِنۢ بَعْدِ مَا ظُلِمُواْ ﴾ (اوهغه کسان چي هجرت يې کړی دی (په لاره د ) الله کي وروسته له هغه چي ظلم پرې وکړی شو ) يعني هيوادونه ، خپلوان اواهل يې دالله درضالپاره پرېښودل وروسته له هغه چي دالله په لارکي عذابونه ورکول شول . امام قرطبي وايې چي دوی صهيب ، بلال ، خباب اوعمار رضوان الله عليهم وو چي دمکې خلکو دوی سخت وځورول اوڅه چي يې غوښتل هغه يې ورته وويل اوکله چي يې پرېښودل نودوی مدينې ته هجرت وکړ(1) ﴿ لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي ٱلدُّنْيَا حَسَنَةً ﴾ نوخامخا ځای به ورکړو موږ دوی ته په دنياکي ښه (ځای) ترهغه چي دوی پرې اېښي دی. ابن عباس رضی الله عنه وايې چي دوی ته يې مدينه منوره دارالهجرت ورکړه ﴿ وَلَأَجْرُ ٱلْءَاخِرَةِ أَكْبَرُ لَوْ كَانُواْ يَعْلَمُونَ ﴾ اوخامخا اجردآخرت ډېرلوی دی که وی دغه (خلک) چي پوهېدی (پرې ) ﴿ ٱلَّذِينَ صَبَرُواْ وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ﴾ (اومهاجرين) هغه کسان چي صبريې کړی دی (په کړاوونو او مصيبتونو ) اوخاص په خپل رب توکل کوي (هيوادونه او ورونه يې پرې اېښي يوازي په پاک الله يې توکل وي او اجرثواب يې غواړي ﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِيٓ إِلَيْهِمْ ﴾ اونه وولېږلي موږ پخوا له تانه ( ای محمده ! ) مګرسړي (ستاپه شان ) له انسانانو چي موږ به دوی ته وحی کوله ) يعني ای محمده موږ له پخوانيو اُمتونو څخه هم ستاپه شان نارينه انسانان استولي او ورته مووحی کړې وه لکه چي تاته موکړي . مفسرين کرام وايې چي قريشي مشرکانو دمحمدصلی الله عليه وسلم له نبوت څخه انکارکاووا و ويل يې الله پاک ډېرلوی ذات دی چي هغه دي بشراستازی رااستوي ولي الله جل جلاله پرښته نه رالېږي نوالله وفرمايل: ﴿ فَسْـَٔلُوٓاْ أَهْلَ ٱلذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴾ نوپوښتنه وکړئ تاسي له اهل ذکر(علماوو ، پوهانو ، اهل کتابو ) څخه که تاسونه پوهېږئ ؛ يعني دتورات اوانجيل له عالمانو وپوښتئ چي ګردانبياء عليهم السلام بشر (بنيادمان) وو ﴿ بِٱلْبَيِّنَٰتِ وَٱلزُّبُرِ ﴾ (لېږلي وودغه رسولان) په ښکاره وو معجزو او(مقدسو ) کتابونو باندي ﴿ وَأَنزَلْنَآ إِلَيْكَ ٱلذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ ﴾ اونازل کړی دی موږ تاته ذکر لپاره ددې چي بيان کړې ته خلکوته هغه چي نازل شوي دي ( په دې قرآن کي ) دوی ته ) يعني موږ تاته دغه قرآن چي دزړونو وېښوونکی اوپند ورکونکی دی نازل کړی ترڅوهغوی ته حلال اوحرام

(1) القرطبي ١٠/ ١٠٧

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اونور احکام ور وښيي ﴿وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ﴾ (او بل لپاره ددې ) چي ښائي دوی (پکي ) فکراوغور وکړي (اوخني پند واخلي ) ﴿أَفَأَمِنَ الَّذِينَ مَكَرُوا السَّيِّئَاتِ أَن يَخْسِفَ اللَّهُ بِهِمُ الْأَرْضَ﴾ آيا نو په امن کي شوي دي هغه کسان چي مکرونه يې کړي دي ناکاره له دې څخه چي ډوب به کړي الله دوی په ځمکه ) يعني آيا دغه کفار چي د رسول الله صلی الله عليه وسلم دوژلو توطئې يې جوړولې له دې څخه بېغمه شوي چي الله يې لکه قارون په ځمکه ننې باسي ﴿أَوْ يَأْتِيَهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُونَ﴾ ياچي رابه شي دوی ته عذاب له داسي لوري چي دوی نه پوهېږي (پرې) يعني دوی ته به پداسي حال کي چي (دوی په بېغمي اوامن وي عذاب راشي چي هډو دوی به د عذاب گمان هم نکوي اونه به يې په طرف پوهېږي چي له کومه راغی ؟ ﴿أَوْ يَأْخُذَهُمْ فِي تَقَلُّبِهِمْ فَمَا هُم بِمُعْجِزِينَ﴾ ياله دې چي ونيسي (الله) دوی په وخت دگرزېدلو ددوی (په ځمکه کي لپاره د سوداگري او رانيولو پلورلو ) نو نه دي دوی عاجزکونکي دالله ﴿أَوْ يَأْخُذَهُمْ عَلَىٰ تَخَوُّفٍ﴾ يا (له دې) چي ونيسي (الله ) دوی لږه پر وېره سره (چي دوی د عذاب له راتللو څخه په وېره کي وي. ابن کثيروايي چي: دغه ډېرسخت دی چي کله يو څوک ديو شي له وېري سره د راتللو تريخ انتظارباسي اوهغه ورته راورسېږي ﴿فَإِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ﴾ نو بېشکه رب ستاسي خامخا ښه مهربان دی ښه رحم درلودونکی دی (چي تاسو ژر ترژره په عذاب نه اخته کوي ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَىٰ مَا خَلَقَ اللَّهُ مِن شَيْءٍ﴾ (آيا نه گوري دوی هغه ته چي الله پيدا کړی له کومه څيزه ) يعني آيا دغه کافران پند نه آخلي اودالله جل جلاله د قدرت ښښي ښښانې نه ويني چي الله غرونه، ونې اوډېري پيداکړي دي اوهمدا راز نور مخلوقات ﴿يَتَفَيَّأُ ظِلَالُهُ عَنِ الْيَمِينِ وَالشَّمَائِلِ سُجَّدًا لِّلَّهِ﴾ چي گرزي سيوري د هغه له ښي طرفونو او کيڼ طرفونو څخه پدې حال کي چي سجده کونکي دي (دغه سيوري) الله ته (دالله له ارادې وتونکي نه دي ﴿وَهُمْ دَاخِرُونَ﴾ حال داچي دغه سيوري عاجزي کونکي دي ( الله ته) يعني دالله قدرت اوتدبير ته غاړه اېښودونکي دي نوځرنگه کافران بيادالله له طاعت څخه غاړه غړوي اوتکبرکوي ﴿وَلِلَّهِ يَسْجُدُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ اوخاص الله ته سجده کوي هغه شيان چي په آسمانونو کي دي اوهغه شيان چي په ځمکه کي دي ﴿مِن دَابَّةٍ وَالْمَلَائِكَةُ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ﴾ له گرزېدونکو اوملائکو حال داچي دوی کبرنه کوي (له عبادته الله ته غاړه اېښودونکي وي ﴿يَخَافُونَ رَبَّهُم مِّن فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ﴾ وېرېږي له رب خپل (چي اعلی دی پردوی په قهراوغلبه ) له پاسه ددوی اوکوي دوی هغه کارچي ورته حکم کاووه شي يعني دالله له جلال اوعظمت څخه وېرېږي اوتل ترتله دالله جل جلاله داوامرو امتثال کوي.

بلاغت: پدې آيتونو کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته دادي:

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

۱-ايجاز بالحذف پدې کلام کې چې ﴿ قَالُوا۟ خَيْرًا ﴾ يعني ويل به چې الله جل جلاله خير نازل کړی دی.

۲-پدې قول د الله تبارک وتعالی کې د اطناب صنعت راغلی دی چې فرمايي: ﴿ مَا عَبَدْنَا مِن دُونِهِۦ مِن شَىْءٍ وَلَا حَرَّمْنَا مِن دُونِهِۦ مِن شَىْءٍ ﴾.

۳-د طباق صنعت پدې کلماتو کې ﴿ هَدَى ٱللَّهُ ... حَقَّتْ عَلَيْهِ ٱلضَّلَـٰلَةُ ﴾ او پدې کې چې ﴿ لَا يَهْدِى مَن يُضِلُّ ﴾ او په ﴿ ٱلْيَمِينِ ...وَٱلشَّمَآئِلِ ﴾ کې.

۴-په دې کلام کې چې فرمايي ﴿ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴾ د مبالغې صيغې راغلې چې فعول او فعيل دی.

۵-د خاص ذکر وروسته ترعام چې فرمايي: ﴿ يَسْجُدُ مَا فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ وَٱلْمَلَـٰٓئِكَةُ ﴾ پدې کې د پاکيزه پرښتو تعظيم او تکريم نغښتی دی.

۶-سجع لکه په ﴿ يَتَفَكَّرُونَ ... دَٰخِرُونَ ... يَشْعُرُونَ ﴾ کې راغلې ده.

فائده: ځينې پوهانو د الله تعالی له دې وينا څخه چې فرمايي: ﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِىٓ إِلَيْهِمْ ﴾ دا رايستلې ده چې نبوت يوازې په نارينه وو سړو کې دی په ښځو کې نبوت له سره نشته او دغه د هېر باريک استنباط دی.

**تنبيه:**

ابن تيميه په منهاج السنة کې ليکي چې: په قدرباندې دليل نيول يو مخه ايزه د هر عقل او دين د خاوند له خوا باطل دی څکه نو کله چې مشرکانو وويل: ﴿ لَوْ شَآءَ ٱللَّهُ مَآ أَشْرَكْنَا وَلَآ ءَابَآؤُنَا ﴾ الله جل جلاله بې داسې ترديد وفرمايو چې: ﴿ قُلْ هَلْ عِندَكُم مِّنْ عِلْمٍ فَتُخْرِجُوهُ لَنَآ ۖ إِن تَتَّبِعُونَ إِلَّا ٱلظَّنَّ وَإِنْ أَنتُمْ إِلَّا تَخْرُصُونَ ﴾ همدا سې مشرکان پخپل فطرت او عقل سره پدې پوهېږي چې دغه باطل دليل دی څکه که چېرې يو دوی پر بل باندې ظلم وکړي او يا يې زوی ور ووژني، يا يې له ښځې سره زنا او بدلمنې وکړي، ياخو په ظلم کولو باندې ټينګار کوي او وايې چې که د الله خوښه وای نو به ما دغسې نه کول هېڅوک به دده دغه دليل و نه منې او نه به دغه ظالم د بل چا دغسې دليل ومني خو دليل ويونکی يوازې خان له ملامتيا ژغوري او داسې دليل راوړي.(۱)

الله تعالی فرمايي:

﴿ ۞ وَقَالَ ٱللَّهُ لَا تَتَّخِذُوٓا۟ إِلَـٰهَيْنِ ٱثْنَيْنِ ۖ إِنَّمَا هُوَ إِلَـٰهٌ وَٰحِدٌ ۖ فَإِيَّـٰىَ فَٱرْهَبُونِ ﴿٥١﴾ وَلَهُۥ مَا فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَلَهُ ٱلدِّينُ وَاصِبًا ۚ أَفَغَيْرَ ٱللَّهِ تَتَّقُونَ ﴿٥٢﴾ وَمَا بِكُم مِّن نِّعْمَةٍ فَمِنَ ٱللَّهِ ۖ ثُمَّ إِذَا مَسَّكُمُ ٱلضُّرُّ فَإِلَيْهِ تَجْـَٔرُونَ ﴿٥٣﴾ ثُمَّ إِذَا

(۱) له محاسن التأويل لسم توک څخه په لنډون.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



كَشَفَ الضُّرَّ عَنكُمْ إِذَا فَرِيقٌ مِّنكُم بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُونَ ﴿٥٤﴾ لِيَكْفُرُوا بِمَا آتَيْنَاهُمْ فَتَمَتَّعُوا فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴿٥٥﴾ وَيَجْعَلُونَ
لِمَا لَا يَعْلَمُونَ نَصِيبًا مِّمَّا رَزَقْنَاهُمْ تَاللَّهِ لَتُسْأَلُنَّ عَمَّا كُنتُمْ تَفْتَرُونَ ﴿٥٦﴾ وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ الْبَنَاتِ سُبْحَانَهُ وَلَهُم مَّا
يَشْتَهُونَ ﴿٥٧﴾ وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِالْأُنثَىٰ ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا وَهُوَ كَظِيمٌ ﴿٥٨﴾ يَتَوَارَىٰ مِنَ الْقَوْمِ مِن سُوءِ مَا بُشِّرَ بِهِ
أَيُمْسِكُهُ عَلَىٰ هُونٍ أَمْ يَدُسُّهُ فِي التُّرَابِ أَلَا سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ ﴿٥٩﴾ لِلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ مَثَلُ السَّوْءِ وَلِلَّهِ الْمَثَلُ
الْأَعْلَىٰ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٦٠﴾ وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللَّهُ النَّاسَ بِظُلْمِهِم مَّا تَرَكَ عَلَيْهَا مِن دَابَّةٍ وَلَٰكِن يُؤَخِّرُهُمْ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى
فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَأْخِرُونَ سَاعَةً وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ ﴿٦١﴾ وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ مَا يَكْرَهُونَ وَتَصِفُ أَلْسِنَتُهُمُ
الْكَذِبَ أَنَّ لَهُمُ الْحُسْنَىٰ لَا جَرَمَ أَنَّ لَهُمُ النَّارَ وَأَنَّهُم مُّفْرَطُونَ ﴿٦٢﴾ تَاللَّهِ لَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَىٰ أُمَمٍ مِّن قَبْلِكَ فَزَيَّنَ
لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ فَهُوَ وَلِيُّهُمُ الْيَوْمَ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٦٣﴾ وَمَا أَنزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ إِلَّا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِي
اخْتَلَفُوا فِيهِ وَهُدًى وَرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٦٤﴾ وَاللَّهُ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا إِنَّ فِي ذَٰلِكَ
لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَسْمَعُونَ ﴿٦٥﴾ وَإِنَّ لَكُمْ فِي الْأَنْعَامِ لَعِبْرَةً نُّسْقِيكُم مِّمَّا فِي بُطُونِهِ مِن بَيْنِ فَرْثٍ وَدَمٍ لَّبَنًا خَالِصًا سَائِغًا لِّلشَّارِبِينَ
﴿٦٦﴾ وَمِن ثَمَرَاتِ النَّخِيلِ وَالْأَعْنَابِ تَتَّخِذُونَ مِنْهُ سَكَرًا وَرِزْقًا حَسَنًا إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿٦٧﴾ وَأَوْحَىٰ
رَبُّكَ إِلَى النَّحْلِ أَنِ اتَّخِذِي مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا وَمِنَ الشَّجَرِ وَمِمَّا يَعْرِشُونَ ﴿٦٨﴾ ثُمَّ كُلِي مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ فَاسْلُكِي سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلًا
يَخْرُجُ مِن بُطُونِهَا شَرَابٌ مُّخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ فِيهِ شِفَاءٌ لِّلنَّاسِ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴿٦٩﴾ وَاللَّهُ خَلَقَكُمْ ثُمَّ
يَتَوَفَّاكُمْ وَمِنكُم مَّن يُرَدُّ إِلَىٰ أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْ لَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْئًا إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ قَدِيرٌ ﴿٧٠﴾ وَاللَّهُ فَضَّلَ بَعْضَكُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ
فِي الرِّزْقِ فَمَا الَّذِينَ فُضِّلُوا بِرَادِّي رِزْقِهِمْ عَلَىٰ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَهُمْ فِيهِ سَوَاءٌ أَفَبِنِعْمَةِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ ﴿٧١﴾
وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُم مِّنْ أَنفُسِكُمْ أَزْوَاجًا وَجَعَلَ لَكُم مِّنْ أَزْوَاجِكُم بَنِينَ وَحَفَدَةً وَرَزَقَكُم مِّنَ الطَّيِّبَاتِ أَفَبِالْبَاطِلِ
يُؤْمِنُونَ وَبِنِعْمَتِ اللَّهِ هُمْ يَكْفُرُونَ ﴿٧٢﴾ وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَهُمْ رِزْقًا مِّنَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ شَيْئًا وَلَا
يَسْتَطِيعُونَ ﴿٧٣﴾ فَلَا تَضْرِبُوا لِلَّهِ الْأَمْثَالَ إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٧٤﴾ النحل: ٥١ ــ ٧٤

**مناسبت اوتړاو:**

کله چې الله تبارک وتعالی ددې یادونه وکړه چې دکائناتو هرڅه دالله لپاره غاړه ایښودونکي اودحکم منونکي دي نوبیا دلته یوازې دهغه ذات لپاره دعبادت کولو ماربینه وکړه هغه چې پیداکونکی اوروزي رسان دی وروسته بیا دجاهلیت دوختونو گمراهي بیان اودخلکو یې سترو نعمتونو ته پام راواړاوو چې شکریې پرځای اودالله عبادت وکړي.

**لغتونه:**

(واصبا) تل اولازم جوهري وایې چې ددې کلمې چې وایې (وصب الشئ) معناداده چې همېشه به وي داخېز لکه چې الله فرمایې: (ولهم عذاب واصب) یعني تل ترتله (تجئرو) په لوړ اواز دعاگاني اوزاري کول

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



د(اجار) معنا چيغي وهل دي (كظيم) له قهر او غمه ډک او کظم هغه چاته وايي چي خوله پټه کړي اوله ډېره قهره ښېخي خبري نکوي (يتوارى) پټېږي (هون) ذلت، خواري (فرث) خوشايې کوم چي په کولمو او ګېډه کي چتل مواد وي (سائغا) خوندور اولذيذ (ذللا) د ذلول جمع او معنايې دغاړه ايښودونکي، تابع او بې تکليفه ايل (حفدة) لمسيان داولادونو اولاد ازهري وايي چي مرستندويانو اوچوپړيانو ته وايي.

تفسير:

﴿ وَقَالَ اللَّهُ لَا تَتَّخِذُوا إِلَٰهَيْنِ اثْنَيْنِ ﴾ او الله فرمايلي دي تاسي دوه معبودان مه نيسئ (چي حق الله متعدد کېږي نه) ﴿ إِنَّمَا هُوَ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ﴾ بېشکه همدا خبره ده چي دغه (برحق) معبود يودى (فرد او صمد دى) ﴿ فَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ ﴾ نو خاص له ماڅخه پس وويرېږئ ﴿ وَلَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ او خاص همدغه الله ته دي هرهغه څه چي په آسمانوکي دي اوچي په ځمکي کي دي (خلقا، ملکا او عبيدا) ﴿ وَلَهُ الدِّينُ وَاصِبًا ﴾ او خاص هم ده ته دى طاعت همېشه واجب، ثابت (ځکه هغه برحق الله او خالص طاعت يې لازم دى) ﴿ أَفَغَيْرَ اللَّهِ تَتَّقُونَ ﴾ آيا غير له الله څخه تاسي وېرېږئ؛ همزه داستفهام او هغه دانکار او توبيخ لپاره راغلى يعني څرنګه تاسي پرته له الله له بل چا څخه وېرېږئ چي نفع او ضرر نشته مګر دالله په قدرت کي دى؟ ﴿ وَمَا بِكُم مِّن نِّعْمَةٍ فَمِنَ اللَّهِ ﴾ او هرهغه څه چي له تاسي سره دي له (کوم قسم) نعمت څخه نوله (طرفه) دالله دي (که روزي ده، که روغه سته او که برئ دي ټول دالله دفضل او احسان څرګندونکي دي ﴿ ثُمَّ إِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فَإِلَيْهِ تَجْأَرُونَ ﴾ (بيا کله چي ورسېږي تاسي ته ضرر نو خاص هم دغه (الله) ته فرياد او زاري کوئ) يعني کله چي تاسو ته رنځ، فقر، کړاو ورسېږي نو په لوړ آواز آواز کوئ) دعا کوئ مقصد تاسو د تکليف او سختي په وخت کي يوازي الله ته زارى کوئ بې له دې چي خپلو بتانو ته مخ واړوئ ﴿ ثُمَّ إِذَا كَشَفَ الضُّرَّ عَنكُمْ إِذَا فَرِيقٌ مِّنكُم بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُونَ ﴾ بيا کله چي (الله) دفع کړي (هغه) ضرر له تاسي څخه ناڅاپه يوه ډله له تاسي له خپل رب سره (بل) شريکوئ، قرطبي وايي چي: دکلام معنا تعجيب له اشراکه دى چي څرنګه وروسته له نجاته تاسو له الله څخه مخ اړوئ؟![1] ﴿ لِيَكْفُرُوا بِمَا آتَيْنَاهُمْ ﴾ لپاره ددې چي کفران وکړي په هغه څېزپوري چي موږ دوى ته ورکړى دى د نعمت، الادفع کولو درنځ او ضرر له تاسو نه) ﴿ فَتَمَتَّعُوا فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴾ نو نفع و اخلئ (په دنياکي) نو ژر به پوه شئ تاسي (له اُخروي عذابه ستاسو د کړو انجام به ووينئ) داخو ظاهري امردى مګر د تهديد او اخطار لپاره راغلى دى ﴿ وَيَجْعَلُونَ لِمَا لَا يَعْلَمُونَ نَصِيبًا مِّمَّا رَزَقْنَاهُمْ ﴾ او مقرر وي دا (کفار) دپاره دهغو بتانو چي په هيڅ (يې) نه پوهېږي يوه برخه له ځينو دهغو (مالونو) چي موږ دوى ته ورکړي دي يعني

[1] القرطبي ۱۰ / ۱۱۵

Bawar.net


دوى دهغوبتانولپاره چي دهغوى ربوبيت په كوم دليل اوبرهان ورته معلوم هم نه دى (۱) يوه برخه له كښتونو اوحيواناتو مقرروي ﴿تَاللَّهِ لَتُسْـَٔلُنَّ عَمَّا كُنتُمْ تَفْتَرُونَ﴾ په الله قسم دى چي خامخابه تاسي وپوښتلى شى له هغه چي تاسي دروغ ترى (په الله اومقصدله دي څخه دتوبيخ او ټكولو (تقريع) پوښتل دي) ﴿وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ ٱلْبَنَٰتِ﴾ (اومقرروي (داكفار) الله ته لوڼي) يعني ددغو كافرانو او مشركانو دسفاهت اوبېعقلي دانښه ده چي پرښتې دالله جل جلاله لوڼي ګڼي نوالله ته دلوڼو نسبت كوي اوخانونوته دزامنو ﴿سُبْحَٰنَهُۥ ۙ وَلَهُم مَّا يَشْتَهُونَ﴾ اوپاک دى دغه (الله له دغه افک او بهتانه ) او (مقرروي دوى ) ځان ته هغه شيزچي ددوى خوښ وي (له زامنو څخه اودلوڼو څخه كركه او نفرت كوي )﴿وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِٱلْأُنثَىٰ ظَلَّ وَجْهُهُۥ مُسْوَدًّا﴾ اوكله چي خبرورکړي يوتن ددغو(كفارو ) ته (په پيدا كېدود ) لورسره نو وګرزي مخ دده تک تور له غمه ( اوپرېشاني) ابن كثيروايي چي دغه له غم اوپرېشاني څخه كنايه او توروالى مقصدنه دى اوعرب هغه چاته چي له غم سره مخ شي وايې چي مخ يې تور شو(۲) ﴿وَهُوَ كَظِيمٌ﴾ حال داچي دى له قهره ډک وي ﴿يَتَوَٰرَىٰ مِنَ ٱلْقَوْمِ مِن سُوٓءِ مَا بُشِّرَ بِهِۦٓ﴾ پټ ګرزي له خپله قومه له سببه دناخوښي دهغه شي څخه چي خبرورکړى شوى دى ده ته (چي دلور دزېږېدلو خبردى اودالكه چي يوازموېښت وي اودالله لورينه نه وي اوبيا سوچ كوي چي څه به ورباندي كوي ؟) ﴿أَيُمْسِكُهُۥ عَلَىٰ هُونٍ أَمْ يَدُسُّهُۥ فِى ٱلتُّرَابِ﴾ آياوساتي هغه لور سره له سپكاوي اوكه يې ومنډي (ژوندى) په خاوروكي؟ ﴿أَلَا سَآءَ مَا يَحْكُمُونَ﴾ واورئ ، خبردار شئ چي بددى هغه چي حكم كوي دغه (كفارچي دلوڼونسبت خپل الله ته كوي اودوى ته هغه بيادومره خواري اوسپكي دي دوى ځانته نارينه زامن غوره كوي ( تعالى الله عما يقولون علواكبيرا ) ﴿لِلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِٱلْءَاخِرَةِ مَثَلُ ٱلسَّوْءِ﴾ دى هغوكسانوته چي ايمان په ورځ دآخرت نه راوړي مثال ناكاره (يعني په قباحت كي چي متل ګرزېدلى وي هغه ددوى لپاره دى ځكه دنقص دوى ته نسبت كاووشي الله ته دنقص اوكمي نسبت كېدونكى نه دى ) ﴿وَلِلَّهِ ٱلْمَثَلُ ٱلْأَعْلَىٰ﴾ اوخاص الله لره دى مثال لوړ (ځكه هغه لره مطلق كمال دى او دمخلوقاتوله صفتونوڅخه پاک اوسپېڅلى دى ﴿وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ﴾ اوهم دى قوي ، غالب ، حكمت والاپه تدبيرخپل كي وروسې الله پخپلوبندګانو باندي دحلم يادونه كوي چي سره له دې چي بندګان يې ظلمونه كوي خوالله يې سمدستي نه نيسي فرمايي: ﴿وَلَوْ يُؤَاخِذُ ٱللَّهُ ٱلنَّاسَ بِظُلْمِهِم مَّا تَرَكَ عَلَيْهَا مِن دَآبَّةٍ﴾ اوكه نيولي واى الله (دا ) خلګ په ظلم (كفراومعاصيو ) ددوى سره نوبه يې نه وو پرې ايښى پرمخ دمځكي هيڅ يوخوځېدونكى (له انسان اوحيوان څخه ﴿وَلَٰكِن يُؤَخِّرُهُمْ إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ وليكن وروستى كوي

---

(۱) چاپياويلي چي دوى ګرزوي يوه برخه دهغه چي الله دوى ته وركړي دي .لپاره ددوى دهغوخدايانو چي هغوى په هيڅ هم نه پوهېږي ځكه جمادات دي .
(۲) القرطبي ۱۰ / ۱۱۶

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دوی ترهغه نېټې په نامه کړی شوي پوري (چي د حکمت غوښتنه وي) ﴿ فَإِذَا جَآءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَـْٔخِرُونَ سَاعَةً وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ ﴾ نوکله چي راشي نېټه (تاکلي د هلاک ددوی) نه به وروسته کېږي (دوی له هغي نېټې څخه) (په اندازه) د یوې ګړۍ اونه به ترې وړومبی کېږي، لکه چي الله بل ځای فرمايي: ﴿ وَجَعَلْنَا لِمَهْلِكِهِم مَّوْعِدًا ﴾ (الکهف ۵۹) ﴿ وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ مَا يَكْرَهُونَ ﴾ او ثابتوي (داکفار) الله ته هغه چي بدې ګڼي (دوی خپلو ځانولره (لکه لوڼي چي دوی څني کرکه کوي اود غه د وړومبي توبيخ لپاره تاکيد دی ﴿ وَتَصِفُ أَلْسِنَتُهُمُ الْكَذِبَ أَنَّ لَهُمُ الْحُسْنَىٰ ﴾ اوبيانوي ژبي ددوی دروغ (چي داسي وايې) بېشکه شته دوی ته ښه حالت (په نزد دالله چي دوی به جنتيان وي ﴿ لَا جَرَمَ أَنَّ لَهُمُ النَّارَ وَأَنَّهُم مُّفْرَطُونَ ﴾ ثابته خبره داده چي بېشکه شته دوی ته اور ددوزخ اوبېشکه دوی (کفار) به په منډه بېولی شي هلته ،په اورکي به پرېښودلی شي (۱) (پرځای ددوی ددغوهيلوچي دوی يې لري ).بياالله جل جلاله دپيغمبرانودرااستولونعمت بيانوي ترڅو رسول الله صلی الله عليه وسلم کله چي ورته دکفارو له لوري کړاوونه رسېږي په هغوی پسي دصبراوزغم اقتداء وکړي نوفرمايي: ﴿ تَاللَّهِ لَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَىٰ أُمَمٍ مِّن قَبْلِكَ فَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ ﴾ په الله قسم دی په تحقيق لېږلي وو موږ دامتونو په لوري پخوا له تاڅخه (ای محمده!) پيغمبران نوښايسته کړل دغو (امتونو) ته شيطان هغه (بد) عملونه ددوی (چي دپيغمبرانوتکذيب يې کاووا وهغه څه يې نه منل کوم چي انبياوو ورته راوړي وو ﴿ فَهُوَ وَلِيُّهُمُ الْيَوْمَ ﴾ نوهمغه شيطان ددوی دوست دی نن ورځ (په دنياکي اوبېکاره مرستيال دی) ﴿ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ اوشته دوی ته په آخرت کي دردناک عذاب ﴿ وَمَا أَنزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ إِلَّا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِي اخْتَلَفُوا فِيهِ ﴾ اوندی نازل کړی موږ پرتادغه کتاب (قرآن) مګرددې لپاره چي ښکاره کړې ته (ای محمده!) دوی ته هغه څيزچي اختلاف کړی دی دغو (خلګو) په هغه کي (له دين اوحکمونوڅخه چي پردوی دليل راوړل شي) ﴿ وَهُدًى وَرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴾ (اولپاره د) هدايت او (لپاره د) رحمت د (هغه) قوم چي ايمان لري) يعني موږ قرآنکريم دزړونو دلارښوونې لپاره اوهم رحمت اوشفاء را استولی دمؤمنانولپاره ورپسې الله دخپل قدرت په باب چي په وحدانيت يې دلالت کوي داسي فرمايي: ﴿ وَاللَّهُ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ﴾ اوالله له طرفه دآسمانه اوبه نازلي کړي (دباران) نوژوندۍ (زرغونه) يې کړه پدې اوبوسره ځمکه وروسته له مرګه (وچوالي) د هغې ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَسْمَعُونَ ﴾ بېشکه پدغه (زرغونتوب) کي پس له وچوالي خامخادليل (ښکاره د قدرت) دی لپاره دهغه قوم چي (دالله احکام

(۱) لومړی دحسن اوقتاده رحمهما الله قول دی چي له فرط څخه اخيستل شوی اوداوبو هڅه کونکي ته وايي اومجاهد رحمه الله وايي چي معنايې پرېښودل شوی دی.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دزړه په غوربدونو ) اوري (اوپکي سوچ اوتدبر کوي ) ﴿ وَإِنَّ لَكُمْ فِي الْأَنْعَامِ لَعِبْرَةً ﴾ اوبېشکه دی تاسي ته په چارپايانوکي عبرت (اوپند چي دغه اوښان، غوايې، پسونه، وزې چي تاسوته تابع اومسخرکړزول شوي دالله په قدرت، عظمت او وحدانيت سره دليل دي ﴿ نُّسْقِيكُم مِّمَّا فِي بُطُونِهِ ﴾ درڅښنوتاسوته له هغوځينو ځيزونو څخه ﴿ مِن بَيْنِ فَرْثٍ وَدَمٍ لَّبَنًا خَالِصًا سَائِغًا لِّلشَّارِبِينَ ﴾ (له مينځه دخوشايواووينو شيدې صافي، پاکي، آسانه تېرېدونکي (خوش مزه ) لپاره دڅښنونکو ) يعني تاسوته دوينو اوخوشايوڅخه پاکي خالصي ګټوري شيدې (۱) درڅښنو چي آسانه بې تکليفه خوندوري په ستوني کي تېرېږي ﴿ وَمِن ثَمَرَاتِ النَّخِيلِ وَالْأَعْنَابِ تَتَّخِذُونَ مِنْهُ سَكَرًا وَرِزْقًا حَسَنًا ﴾ اوله مېوو دخرماګانواو تاکوڅخه (هم درڅښنو) چي جوړوئ تاسي له دې مېوو څخه نشه کونکي اوروزي ښه (لکه خرما اوممېز (کشمش) ابن عباس رضی الله عنهما وايې چي : رزق هغه حلاله مېوه اوسکرهغه حرامه ماده بلل کېږي ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴾ ببشکه پدغو مېوو (اومشتقاتو) کي خامخادليل ښکاره دی لپاره دهغه قوم چي عقل چلوي (اوپکي غورکوي ) ابن کثيروايې چي دعقل يادونه دلته پدې مناسب ده چي هغه په انسان کي ترټولو اشرف جزدی نوځکه الله پاک پدې امت باندي هغه نشه اي توکي مشروبات حرام کړي څوچي عقل يې وژغوري (۲) اوکله چي الله تعالی هغه څه ذکرکړل چي دهغه په سترقدرت دلالت کوي اولوی حکمت يې ځرګندوي کوم چي دخوشايو اووينو له مينځه شيدې راباسي اوښايسته روزي له خرما اوتاکونو څخه ورکوي نو ورپسې يې دشاتو درااېستلو هغه چي شفاء ده بيان وفرمايل چي دغه له کمزوري حشرې څخه راوزي اودهغې په ژوندژواک کي عجائب اوغرائب دي اودغه ټول دمقتدرصانع په عظمت دلالت کوي الله فرمايې : ﴿ وَأَوْحَىٰ رَبُّكَ إِلَى النَّحْلِ أَنِ اتَّخِذِي مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا وَمِنَ الشَّجَرِ وَمِمَّا يَعْرِشُونَ ﴾ (اوپه زړه کي واچوله ستارب د شاتومچيوته چي جوړوئ تاسي په غرونو کي کورونه اوله ونوڅخه اوله هغوڅخه چي خلک يې لوړ جوړوي ) مرادله وحی څخه هدايت اوالهام دی يعني داچي دهغو مصالح مي وروښودل چي خپلي کوتې په شپږ ځنډېز(مسدس) توګه په عجيبه شان جوړکړي او په دې دريوځايونو کي يې ودان کړي چي هغه غرونه، ونې اوهغه ځايونه دي چي خلک يې لوړ دسيوري لپاره جوړوي ﴿ ثُمَّ كُلِي مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ ﴾ بيانوخورئ تاسي (ای مچيو !) له هرډول مېووڅخه (اوګلانو چي دغه مېوې او ګلان خواږه ، ترخه ، تروه اوهرقسم وی خودالله په قدرت به ترې عسل (شات) جوړېږي ﴿ فَاسْلُكِي سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلًا ﴾ (نوځئ (الوزئ) په لاره درب خپل پداسي حال کي چي آسانه ده ) بې تکليفه) يعني دځړخوراک لپاره په لارو صافوکي دروميئ چي الله ستاسولپاره مسخرکړي او دتګ راتګ په وخت پکي نه ورکېږئ ﴿ يَخْرُجُ مِن بُطُونِهَا شَرَابٌ مُّخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ فِيهِ شِفَاءٌ لِّلنَّاسِ ﴾ ( راوزي له ګېډو ددوی دڅښلو

(۱) التفسير الكبير ۲۰ / ۷۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



(شی شات) چې مختلف دي رنګونه ددې (شاتو) په دغو (شاتو) کې دخلګو لپاره شفاء ده) يعني دمچيوله ګېډومختلف النوع شات چې سره، سپين اوژېړ رنګونه لری راوزي اودخلګو ددېرو ناروغيو لپاره دوادي امام رازي وايي: که چاويل چې څرنګه دخلګو لپاره شفا بلل شوي حال داچې د(صفراء) دناروغانو لپاره تاوان لري؟ ځواب دادی چې الله تعالی ندي ويلي چې (لکل الناس) اويا داچې شفاء دي په هرحال کې بلکه څرنګه چې دغه شات دځينو لپاره خوشفادي اوددواګانو ځيني برخه خوشات وي نودا سمه خبره ده چې وويل شي پدې کې شفاده(١)﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴾ بېشکه پدې کې خامخادېر لوی دليل دی دپاره دهغه قوم چې فکرکوي (دالله په سترقدرت او بديع صنعت کې) ﴿ وَاللَّهُ خَلَقَكُمْ ثُمَّ يَتَوَفَّاكُمْ ﴾ اوالله پيدا کړي ياست تاسي وروسته له هغه چې هيڅ شی نه وئ بيابه وژني تاسي (په وخت داجل رسېدلو ستاسي کې) ﴿ وَمِنكُم مَّن يُرَدُّ إِلَىٰ أَرْذَلِ الْعُمُرِ ﴾ اوځيني له تاسي هغه څوک دي چې رد کولای هغه دېرخوار ژوندون ته (چې هغه دبوډاوالي زهېرتوب دی)﴿ لِكَيْ لَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْئًا ﴾ دپاره ددې چې ونه پوهېږي (دغه زوړ) پس له هغه علمه چې يې درلود په ځواني کې په هيڅ شي (لکه وړوکی ماشوم غوندي شي عقل اوتوان يې نقصان ومومي)﴿ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ قَدِيرٌ ﴾ (بېشکه چې الله ښه عالم دی (په هرشي) ښه قادردی) يعني الله دخلګو په تدبيرښه پوه اودقدرت خاوندی په هغه څه چې اراده يې وفرمايي لکه چې انسان له علم څخه جهل ته بيايي همداسي يې له مړيني وروسته را ژوندی کوي هم. عکرمه رضی الله عنه وايي: څوک چې قرآنکريم لولي نودغه (ارذل العمر) ته نه رسېږي(٢)﴿ وَاللَّهُ فَضَّلَ بَعْضَكُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ فِي الرِّزْقِ ﴾ اوالله زياته درکړي ده روزي ځيني دتاسوته پرځينو نوروباندي (دغه بډای دی اودابل نېستمن دغه مالک دی اودابل مملوک ﴿ فَمَا الَّذِينَ فُضِّلُوا بِرَادِّي رِزْقِهِمْ عَلَىٰ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَهُمْ فِيهِ سَوَاءٌ ﴾ (نونه دي هغه کسان چې زيات ورکول شوي دي دوی ته ردکونکی دروزي خپل هغه چاته چې مالکان شوي دي ښي لاسونه ددوی (مريونه) يعني دغه بډايان خپل مريونه پدغه روزي کې له ځان سره نه شريکوي چې بيادواړه سره برابر وي داهسي مثال دی چې الله دمشرکانو لپاره بيان کړی. ابن عباس رضی الله عنه وايي: معناداچې دوی دې ته نه دي تيارچې خپل مريونه ددوی په مالونو اوښځو کې ورسره شريکان کړي نوبيادوی څرنګه زمابندګان له ماسره په الوهيت اوسلطان کې شريکان بولي؟﴿ أَفَبِنِعْمَةِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ ﴾ (آيانوپه نعمت دالله باندي دوی (مشرکان) انکارکوي) استفهام دانکارلپاره دی يعني چې آيادوی له هغه سره شريک نيسي اوهغه نعمتونه اوزياته روزي دوی ته ورکړي ده؟﴿ وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُم مِّنْ أَنفُسِكُمْ أَزْوَاجًا ﴾ اوالله پيدا کړي دي ستاسي له جنسه ښځي (چې زړه موورسره مينه اوالفت وکړي، آرام شي، ترمينځ مورحمت اومهرباني

---

(١) المختصر٢/٣٣٦ (١) التفسير الكبير٢٠/٧٢

(٢) زادالمسير٤/٤٢٧

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



خوره شي) ﴿ وَجَعَلَ لَكُم مِّنْ أَزْوَاجِكُم بَنِينَ وَحَفَدَةً ﴾ او پيدا کړي يې دي تاسي ته له ښځوستاسي زامن اولمسي ؛ لمسيانو ته يې څکه (حفده) وويل چي دوی دنیکونو خدمت کوي دهغوی دخبرو اوغوښتنو اطاعت کوي ﴿ وَرَزَقَكُم مِّنَ الطَّيِّبَاتِ ﴾ اوروزي يې درکړه تاسي ته له طيباتو (پاکيزه ) وو (ميوودانو. اوچارپايانو څخه ) ﴿ أَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُونَ وَبِنِعْمَتِ اللَّهِ هُمْ يَكْفُرُونَ ﴾ اوآيا نو(دغه کفار) پرباطلو (معبر دانو ) ايمان راوړي اوداالله په نعمت (چي اسلام دی ) کافران کېږي؟ دغه استفهام بيادتوبيخ اوتقريع لپاره دی يعني آياوروسته له دادومره نعمتونو داالله بياهم دوی په بتانو ايمان راوړي اوپه رحمان کافران کېږي ؟ ﴿ وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَهُمْ رِزْقًا مِّنَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ شَيْئًا ﴾ (اوعبادت کوي دغه کفاربې له الله هغه (څيز) چي هيڅ واک نلري ددوی درزق (ورکولو) له آسمانونو اوځمکي (هيڅ څېز) يعني دغه مشرکان دهغوبتانو عبادت کوي چي دباران په اورولو اودځمکي په زرغونولو توان نلري چي دوی ته لږ ياډېره روزي (رزق) ورکړي ﴿ وَلَا يَسْتَطِيعُونَ ﴾ اونه طاقت لري (که وغواړي هم توان يې نشته) ﴿ فَلَا تَضْرِبُوا لِلَّهِ الْأَمْثَالَ ﴾ نومه بيانوئ تاسي الله لره مثالونه (چي شيان ورسره مشابه کنئ بلکه الله هغه ذات دی چي مثل ، مشابه اوسيال نلري ﴿ إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴾ بېشکه الله ته معلوم دي (ټول حقائق) اوتاسي نه پوهېږئ (داالله دعظمت په قدر اواندازه).

بلاغت:

پدې آيتونو کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته دادي:

۱ – دالتفات صنعت چي له تکلم څخه يې غياب ته فرمايلی دی لکه چي وايې: ﴿ فَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ ﴾ اودادې لپاره چي په زړونو کي هيبت او وېره وروزي اوقصرافاده کړي يعني له ماپرته له بل هيچاڅخه مه وېرېږئ.

۲ – دطباق صنعت چي پدې کلماتو کي لکه: ﴿ يَسْتَأْخِرُونَ يَسْتَقْدِمُونَ ﴾ او ﴿ فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ﴾ او ﴿ يُؤْمِنُونَ يَكْفُرُونَ ﴾ کي چې راغلی دی.

۳ – پدې کلماتو کي چي الله فرمايې: ﴿ كُلِي مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ ﴾ پدې کي ناقص جناس دی.

۴ – داعتراض صنعت چي الله پاک د ﴿ سُبْحَانَهُ ﴾ لفظ معترض راوړی دی اودادې لپاره چي خلکوته له دغه قبيح جهل څخه تعجب ښرګند کړي....

۵ – دمبالغې صيغې چي ﴿ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴾ او ﴿ عَلِيمٌ قَدِيرٌ ﴾ په کلماتو کي راغلي دي.

۶ – پدې کلماتو کي چي الله فرمايې: ﴿ يَعْقِلُونَ... يَعْرِشُونَ ...يَجْحَدُونَ ... يَكْفُرُونَ ﴾ دسجع صنعت شتون لري.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

۷- تهدید اووعید چي فرمايي: ﴿فَتَمَتَّعُوا فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ﴾. ۸- دالله دا قول چي: ﴿وَتَصِفُ أَلْسِنَتُهُمُ الْكَذِبَ﴾ شهاب وايي چي دغه دبديع اوبليغ کلام نمونه ده لکه چي دوی به ویل: (عينهاتصف السحر) يعني (عينهاساحرة) (سترګي يې کوډګري دي) اويادا چي (قدهايصف الهيف) يعني قدېې هيفآء دی جګ نري ډنګرته وايي. هيف په اصل کي دوني پاڼي تونېدلو اوتندي (تږي والي) ته ويل کېږي.

***

الله تعالی فرمايي:

﴿ ۞ ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا عَبْدًا مَمْلُوكًا لَا يَقْدِرُ عَلَىٰ شَيْءٍ وَمَنْ رَزَقْنَاهُ مِنَّا رِزْقًا حَسَنًا فَهُوَ يُنْفِقُ مِنْهُ سِرًّا
وَجَهْرًا ۖ هَلْ يَسْتَوُونَ ۚ الْحَمْدُ لِلَّهِ ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ (٧٥) وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا رَجُلَيْنِ أَحَدُهُمَا أَبْكَمُ
لَا يَقْدِرُ عَلَىٰ شَيْءٍ وَهُوَ كَلٌّ عَلَىٰ مَوْلَاهُ أَيْنَمَا يُوَجِّهْهُ لَا يَأْتِ بِخَيْرٍ ۖ هَلْ يَسْتَوِي هُوَ وَمَنْ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ ۙ وَهُوَ
عَلَىٰ صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ (٧٦) وَلِلَّهِ غَيْبُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ وَمَا أَمْرُ السَّاعَةِ إِلَّا كَلَمْحِ الْبَصَرِ أَوْ هُوَ أَقْرَبُ ۚ إِنَّ
اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ (٧٧) وَاللَّهُ أَخْرَجَكُمْ مِنْ بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ لَا تَعْلَمُونَ شَيْئًا وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ
وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ ۙ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ (٧٨) أَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ مُسَخَّرَاتٍ فِي جَوِّ السَّمَاءِ مَا يُمْسِكُهُنَّ
إِلَّا اللَّهُ ۗ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ (٧٩) وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُمْ مِنْ بُيُوتِكُمْ سَكَنًا وَجَعَلَ لَكُمْ مِنْ جُلُودِ الْأَنْعَامِ
بُيُوتًا تَسْتَخِفُّونَهَا يَوْمَ ظَعْنِكُمْ وَيَوْمَ إِقَامَتِكُمْ ۙ وَمِنْ أَصْوَافِهَا وَأَوْبَارِهَا وَأَشْعَارِهَا أَثَاثًا وَمَتَاعًا إِلَىٰ حِينٍ (٨٠)
وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُمْ مِمَّا خَلَقَ ظِلَالًا وَجَعَلَ لَكُمْ مِنَ الْجِبَالِ أَكْنَانًا وَجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيلَ تَقِيكُمُ
الْحَرَّ وَسَرَابِيلَ تَقِيكُمْ بَأْسَكُمْ ۚ كَذَٰلِكَ يُتِمُّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تُسْلِمُونَ (٨١) فَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْكَ
الْبَلَاغُ الْمُبِينُ (٨٢) يَعْرِفُونَ نِعْمَتَ اللَّهِ ثُمَّ يُنْكِرُونَهَا وَأَكْثَرُهُمُ الْكَافِرُونَ (٨٣) وَيَوْمَ نَبْعَثُ مِنْ كُلِّ
أُمَّةٍ شَهِيدًا ثُمَّ لَا يُؤْذَنُ لِلَّذِينَ كَفَرُوا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ (٨٤) وَإِذَا رَأَى الَّذِينَ ظَلَمُوا الْعَذَابَ فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ
وَلَا هُمْ يُنْظَرُونَ (٨٥) وَإِذَا رَأَى الَّذِينَ أَشْرَكُوا شُرَكَاءَهُمْ قَالُوا رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ شُرَكَاؤُنَا الَّذِينَ كُنَّا نَدْعُو
مِنْ دُونِكَ ۖ فَأَلْقَوْا إِلَيْهِمُ الْقَوْلَ إِنَّكُمْ لَكَاذِبُونَ (٨٦) وَأَلْقَوْا إِلَى اللَّهِ يَوْمَئِذٍ السَّلَمَ ۖ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَا كَانُوا
يَفْتَرُونَ (٨٧) الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ زِدْنَاهُمْ عَذَابًا فَوْقَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُوا يُفْسِدُونَ (٨٨)
وَيَوْمَ نَبْعَثُ فِي كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا عَلَيْهِمْ مِنْ أَنْفُسِهِمْ ۖ وَجِئْنَا بِكَ شَهِيدًا عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ ۚ وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ
تِبْيَانًا لِكُلِّ شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً وَبُشْرَىٰ لِلْمُسْلِمِينَ (٨٩) ۞ إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيتَاءِ ذِي
الْقُرْبَىٰ وَيَنْهَىٰ عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ ۚ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ (٩٠) ﴾ النحل: ٧٥ – ٩٠

مناسبت اوتړاو:

Scanned by CamScanner

Bawar.net


کله چي الله تعالی د مشرکانو بې عقلتوب چي له الله پرته د بتانو عبادت يې کاوو ياد کړ ورپسې يې دوه مثالونه د دغه ډول عبادت د بطلان لپاره راوړل چي دغه بتان خونه تا وان رسوي او نه ګټه، نه خواب درکولای شي ځکه دوی نه اوري بيا يې خلګو ته د خپلو څينو نعمتونو يادونه وکړه ترڅو د الله عبادت وکړي او شکريې پرځای راوړي په اخلاص او ربښتنولي د الله لپاره په اطاعت او مننه عمل ترسره کړي

لغتونه:

(أبكم) ګونګی چي خبري نشي کولای (كَلّ) هغه چي د بل په اوږو باروي کله کله يتيم ته هم (كل) وايي چي په تکفل کونکي باندي دروندوي (لمح) په تلوارسره کتلو ته وايي (ظعن) د ځړلپاره سفرکولو ته وايي او (ظعينة) مسافري مېرمني ته وايي (أوبارها) د اوښ وړيو ته (وبر) وايي (ظلال) د ظل جمع او سيوري ته وايي (أكنانا) د (كن) جمع هغه چي له باد او باران څخه ژغورونکي مسکن وي (سرابيل) د سربال جمع او زجاج وايي: هرهغه څه چي اغوستلی شي له کميس او زغري څخه هغه ته سربال وايي (١)

تفسير:

﴿ ضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلًا عَبۡدٗا مَّمۡلُوكٗا لَّا يَقۡدِرُ عَلَىٰ شَيۡءٖ وَمَن رَّزَقۡنَٰهُ مِنَّا رِزۡقًا حَسَنٗا ﴾ الله يو مثال بيانوي چي يو مملوک مريی وي په هيڅ شي قدرت نلري (له نفعي او ضرره) او بل هغه څوک وي چي روزي ورکړي ده موږ ده ته له خپله درباره روزي ښه، الله تعالی دغه مثال دځان او بتانو لپاره وفرمايل چي کله مشرکانو له الله پاک سره بتان په اُلوهيت کي شريک کول نو الله دهغوی مثال داسي بيان کړ چي يو څوک هغه مريی بنده چي له تصرف څخه ناتوان وي له هغه حر، آزاد مالک سره چي په خپلو چارو کي دهرډول تصرف خاوندوي برابرولای شي ؟ سره له دې چي دواړه په بشريت او د الله په مخلوقيت کي سره برابردي نو ستاسو څه ګمان دی چي آيا تر ټولو ناتوانه مخلوق له رب العالمين خالق سره برابرېدلای شي؟ ﴿ فَهُوَ يُنفِقُ مِنۡهُ سِرّٗا وَجَهۡرًاۖ ﴾ نو دغه سړی لګوي له دغه ماله په پټه او ښکاره (د الله درضا لپاره) ﴿ هَلۡ يَسۡتَوُۥنَۚ ﴾ آيا دوی سره برابرېږي ؟ (نه برابرېږي) يعني آيا مريونه او مالکان سره برابردي بتان خو لکه مريونه هسي دي چي په هيڅ شي توان او واک نلري او الله لره خو پاچهي ده دهغه په واک کي رزق دی او هغه په کائناتو کي دهرډول تصرف کولو توان لري نو څرنګه الله له بتانو سره برابروئ ؟ ﴿ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِۚ بَلۡ أَكۡثَرُهُمۡ لَا يَعۡلَمُونَ ﴾ ټوله ثناصفت الله لره دی (په بيانولو ددې مثال او څرګند يدلو ددې دليل چي لکه لمر روښان دي) بلکه اکثره (زياتره) ددوی (مشرکانو) نه پوهېږي (چي له ډېري بې عقلي خالق او مخلوق سره برابرګڼي او مالک او مملوک يو شی بولي ﴿ وَضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلٗا رَّجُلَيۡنِ أَحَدُهُمَآ أَبۡكَمُ لَا يَقۡدِرُ عَلَىٰ شَيۡءٖ ﴾ او بيانوي الله يو مثال چي دوه سړي وي يو له دوی څخه ګونګی وي (چي څه نه اوري او نه وايي) نه توانېږي په هيڅ څيز؛ دغه دحقيقي اِله او باطلو بتانو لپاره دوهم مثال دی. مجاهدوايي چي

(١) البحر المحيط ٥ / ٥١٨

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دغه دالله اوبت لپاره مثال دی(۱) نو بُت گونگی دی چي نه څه ویلای شي او نه اورېدلای او په قطعي توگه په هیڅ شي توان نلري یا دبره او یا لرګي دي ﴿ وَهُوَ كَلٌّ عَلَىٰ مَوْلَىٰهُ ﴾ حال داچي دغه گونگی باروي په خپل بادار باندي ﴿ أَيْنَمَا يُوَجِّههُّ لَا يَأْتِ بِخَيْرٍ ﴾ هر چېري چي یې بادار واستوي دی په خیر سره نه راځي (خیر نه راوړي ) ځکه چي هغه گونگی ، ناتوان او بې عقل دی ﴿ هَلْ يَسْتَوِي هُوَ وَمَن يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ ﴾ آیا برابرېږي دغه (گونگ) او هغه څوک چي امر کوي (خلگو ته په عدل سره )یعني آیا دغه گونگی او کوڼ له هغه ذات سره چي بلیغ فصیح بیان لري او دحق او استقامت په لاره وي دقرآن خلاورته لاره روښانه کوي برابر دی؟ نو کله چي عاقل ددې دوو ترمینځ برابري نه مني څرنگه به دبُت اوډبري او قادر، علیم اوهادی الله ترمینځ یووالی او برابري ومني(۲) ﴿ وَهُوَ عَلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾ حال داچي دی پخپله هم په سمه لاره وی بیا الله تبارک وتعالی هغه قادر، عالم او سمي لاري ته هدایت کونکی داسي فرمایې: ﴿ وَلِلَّهِ غَيْبُ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ ﴾ او خاص الله لره دی (علم په ) پټو دآسمانونو او ځمکو ﴿ وَمَآ أَمْرُ السَّاعَةِ إِلَّا كَلَمْحِ الْبَصَرِ أَوْ هُوَ أَقْرَبُ ﴾ او نه دی امر دقیامت مگر په مثل دخلاصولو او پټولو دسترگو بلکه داله هغه څه هم نژدې دی ؛ ځکه چي الله تعالی یو ځیزته وواېي (کُن) نو هغه سمدستي (فیکون) موجود شي ځکه نو الله وایې ﴿ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴾ ببشکه الله په هر شي بنه قادر دی ؛ او له دې جملې څخه دقیامت راتلل هم دي کوم چي کافران یې تکذیب کوي ﴿ وَاللَّهُ أَخْرَجَكُم مِّنۢ بُطُونِ أُمَّهَٰتِكُمْ لَا تَعْلَمُونَ شَيْـًٔا ﴾ او الله راوایستی تاسي له نسونو دمیندو ستاسي حال داچي تاسي په هیڅ شي نه پوهېدی ﴿ وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَٰرَ وَالْأَفْـِٔدَةَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴾ او درکړي یې دي تاسي ته غوږونه او سترگي او زړونه لپاره ددې چي شکر وکاږئ په نعمتونو دالله تعالی او ثنایې ووایاست ﴿ أَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ مُسَخَّرَٰتٍ فِي جَوِّ السَّمَآءِ ﴾ (آیا نه گوري دغه انسانان دمرغانو په لوري چي مسخر کړی شوي دي په هوا (آسمان کي) دغه دالله جل جلاله دوحدانیت او قدرت له دلائلو څخه یو دلیل دی ﴿ مَا يُمْسِكُهُنَّ إِلَّا اللَّهُ ﴾ نه ساتي دوی لره (پدې هوا کي له رالوېدلو (پرهوتلو څخه په وخت دکوځر راټولولو او غوړولو کي) مگر الله سبحانه وتعالی یې ساتي ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأَيَٰتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴾ ببشکه په دغه (تسخیر) کي خامخا دلائل دقدرت دي لپاره دهغه چا قوم چي ایمان یې راوړی (دپیغمبرانو په راوړي حکمونو باندي ﴿ وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُم مِّنۢ بُيُوتِكُمْ سَكَنًا ﴾ (او الله پیدا کړی دی تاسي ته له کوټو ستاسي ځای دسکونت ) دغه دالله دنعمتونو دشمېرلو لړه ده چي الله پاک هغه ذات دی چي

(۱) الرازي ۲۰/ ۹۳

(۲) مختصر ابن کثیر ۲/ ۳۴۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


تاسوته یې دختو اوګټو کورونه درکړي چې تاسو داقامت په وخت کې هلته هستوګنه وکړئ ﴿ وَجَعَلَ لَكُم مِّن جُلُودِ ٱلْأَنْعَٰمِ بُيُوتًا ﴾ اوالله پیداکړي دي تاسوته له پوستوکي د چارپایانو کورونه (نورچې هغه خیمې، کېږدۍ دي چې له وزغنو (دوزې وښېنتان) وړيو اوداوښ له وړيو) ورګونو) څخه جوړې شوې وي ﴿ تَسْتَخِفُّونَهَا يَوْمَ ظَعْنِكُمْ وَيَوْمَ إِقَامَتِكُمْ ﴾ چې سپک مومئ تاسې هغه په ورځ دکوچ اوسفرستاسې اوپه ورځ داړولو ستاسې (په ډېره خاى کې) ﴿ وَمِنْ أَصْوَافِهَا وَأَوْبَارِهَا وَأَشْعَارِهَآ أَثَٰثًا ﴾ (اوالله پیداکړي دي تاسوته ) له وړيو ددغو(څاروو اواوښانو ) له وېښتو ددوى (وزو ) اسبابونه ) چې تاسو یې اغوندئ او وېړوئ یې ) ﴿ وَمَتَٰعًا إِلَىٰ حِينٍ ﴾ اولپاره دنفعې اخیستلو ستاسې تروخت دمړینې (١) ﴿ وَٱللَّهُ جَعَلَ لَكُم مِّمَّا خَلَقَ ظِلَٰلًا ﴾ اوالله پیداکړي دي تاسوته له هغو څیزونو څخه چې پیدا کړي یې دي سیورې ؛ مثلا دونو، غرونو، خونو، عمارتونو سیوري چې تاسې له ګرمي څخه ورباندي ځانونه ژغورئ ﴿ وَجَعَلَ لَكُم مِّنَ ٱلْجِبَالِ أَكْنَٰنًا ﴾ اوالله پیداکړي دي تاسې ته له غرونو څخه ځایونه دپټېدلو چې تاسې پکې اوسئ لکه غارونه ، سمڅې اوخوندي ځایونه امام رازي وایې چې: څرنګه دعربو ښارونه دسختي ګرمي درلودونکي وو اوسیوري ته خورا سخت اړوو چې له ترخې ګرمي څخه یې وژغوري ځکه نوالله دغه سیوري دسترو نعمتونو په لړ کې بیان کړل(٢) ﴿ وَجَعَلَ لَكُمْ سَرَٰبِيلَ تَقِيكُمُ ٱلْحَرَّ ﴾ اوالله پیداکړي دي تاسې ته کمیسونه دپنبه وو ، وړيو، کتان) چې تاسې وژغوري له ګرمي ( اویخني )نه ﴿ وَسَرَٰبِيلَ تَقِيكُم بَأْسَكُمْ ﴾ (او(الله پیداکړي دي تاسوته) کمیسونه (داوسپني ،خغري ) چې تاسې دجنګ له ضرره ساتي ) یعني الله تاسې ته دکمیسونو په شان زغري پیداکړي چې په جګړه کې مووددښمنانو له شرڅخه ژغوري ﴿ كَذَٰلِكَ يُتِمُّ نِعْمَتَهُۥ عَلَيْكُمْ ﴾ (هم داسې (لکه چې تېرنعمتونه یې تمام کړي) پوره کوي نعمت خپل پرتاسې) یعني لکه چې الله دغه شیان پیداکړي اوپرتاسویې پېرزوکړي اولوروليې همداسې ددین اودنیانعمت پرتاسې باندي بشپړوي ﴿ لَعَلَّكُمْ تُسْلِمُونَ ﴾ (دپاره ددې چې تاسې اسلام راوړئ ) یعني تاسودالله ربوبیت په اخلاص ومنئ) اوپدې پوه شئ چې پدې نعمتونو پیدا کولو باندي له الله پرته بل هیڅوک توان اوقدرت نلري ﴿ فَإِن تَوَلَّوْا۟ فَإِنَّمَا عَلَيْكَ ٱلْبَلَٰغُ ٱلْمُبِينُ ﴾ نوکه دوى (له اسلامه) شاوګرزوله (نوتاته هیڅ ضررنشته ) پس ښشکه چې خبره هم داده چې پرتا(اى محمده !) ښکاره رسونه ده (اوتاخپل رسالت سرته رسولى ابلاغ کړى او امانت دې سپارلى دى) ﴿ يَعْرِفُونَ نِعْمَتَ ٱللَّهِ ثُمَّ يُنكِرُونَهَا ﴾ پېژني (کفار) دالله نعمتونه چې اقرارپرې کوي ، بیاانکار کوي

---

(١) دغه دابن عباس رضى الله عنه وېناده چې مجاهدیې هم ملګرتیاکوي اومقاتل وایې چې: معنایې داده تاسې ترڅوچې دغه زاړه اوله مینځه لاړشي ورباندي ګټه اخلئ.
(٢) التفسیرالکبیر ٢٠ / ٩٣

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



له هغه څخه (چي دغير الله عبادت کوي) سدي وايې چي دالله نعمت پخپله حضرت محمدصلى الله عليه وسلم دى چي دوى يې نبوت پېژانده خوهغه يې نه مانو اوځني انکاريې کاوو ﴿ وَأَكۡثَرُهُمُ ٱلۡكَٰفِرُونَ ﴾ (اوزيات ددغو منکرانو څخه کافران دي) يعني زياتره ددوى به په کفرمري اوپدې کي دااشاره ده چي ځيني به يې داسلام لاره مومي خواکثره به يې په کفراصرارکوي اوګمراهي به غوره کوي ﴿ وَيَوۡمَ نَبۡعَثُ مِن كُلِّ أُمَّةٖ شَهِيدٗا ﴾ اوهغه ورځ چي راپورته به کړو موږ له هرامت څخه يوشاهد (چي ددوى په ايمان اوکفر باندي ګواهي ورکړي ددوى نبي وي) ﴿ ثُمَّ لَا يُؤۡذَنُ لِلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ بيابه نه ورکولى شي اذن (دمعذرت) هغوکسانوته چي کافران شوي دي(ځکه چي دوى ته به يې بطلان اودروغ معلوم وي) ﴿ وَلَا هُمۡ يُسۡتَعۡتَبُونَ ﴾ اونه به له دوى طلب داسترضاکولى شي (چي په قول اوعمل خپل پروردګار راضي کړي ځکه ددې وخت تېرشوى اوس دحساب اوعتاب وخت دى . قرطبي وايې چي (عُتبى) دمعتوب رجوع ته ويل کېږي چي د(عاتب) درضالپاره وي دکلمې اصل له عتب څخه اخيستل شوى چي ويل کېږي(عتب رجل) يعني ويې ترټل اوکله چي ستادخوښي لپاره رجوع وکړي نو ويل کېږي (أعتب) (۱)﴿ وَإِذَا رَءَا ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ ٱلۡعَذَابَ فَلَا يُخَفَّفُ عَنۡهُمۡ وَلَا هُمۡ يُنظَرُونَ ﴾ اوکله چي ووينې هغه کسان کسان چي ظلم (شرک) يې کړى دى عذاب (ددوزخ) نوسپک به نه کړ ي له دوى نه (يوه شېبه) اونه به دوى ته مهلت ورکړى شي ﴿ وَإِذَا رَءَا ٱلَّذِينَ أَشۡرَكُواْ شُرَكَآءَهُمۡ ﴾ اوکله چي ووينې هغه کسان چي شرک يې (غوره) کړى دى شريکان خپل (هغه چي په دنيا کي يې دهغوى عبادت کاوو لکه بتان اوګمان يې درلود چي دغه له الله سره په ألوهيت کي شريک دي) ﴿ قَالُواْ رَبَّنَا هَٰٓؤُلَآءِ شُرَكَآؤُنَا ٱلَّذِينَ كُنَّا نَدۡعُواْ مِن دُونِكَۖ ﴾ نو به وايې دغه (مشرکان) اى ربه زموږ ! دادي شريکان (خدايان) زموږ هغه چي موږبه بلل (عبادت مو کاووددوى په دنياکي) بې له تانه ! بيضاوي وايې چي: دغه ددوى له لوري اقرار اواعتراف دى چي دوى په خطا لاره تللي وو اوهيله من دي چي عذاب يې ورسپک شي (۲)﴿ فَأَلۡقَوۡاْ إِلَيۡهِمُ ٱلۡقَوۡلَ إِنَّكُمۡ لَكَٰذِبُونَ ﴾ نو وبه غورځوي دغه (بتان) دوى ته خبره چي بېشکه تاسي خامخا دروغجنان ياست (چي پدې سره به ددوى نورغم او غصه زياته شي اوزړونه به يې ودردېږي ﴿ وَأَلۡقَوۡاْ إِلَى ٱللَّهِ يَوۡمَئِذٍ ٱلسَّلَمَۖ ﴾ اووبه غورځوي دغه (مشرکان) الله ته په دغه ورځ کي سوله (صلح) دالله حکم ته به غاړه کېږدي وروسته له هغه چي په دنيا کي يې استکباراوممانعت کاوو ﴿ وَضَلَّ عَنۡهُم مَّا كَانُواْ يَفۡتَرُونَ ﴾ او ورک به شي له دوى نه هغه چي وودوى چي دروغ به يې تړل (پرالله باندي چي ددوى بتان به دالله جل جلاله په

---

(۱) القرطبي ۱۰/ ۱۲۳

(۲) البيضاوي ۳۲۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



وړاندي ددوی شفاعت کوي وروسته الله تعالی ددوی راتلونکی داسي بيانوي: ﴿ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَصَدُّواْ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ زِدۡنَٰهُمۡ عَذَابًا فَوۡقَ ٱلۡعَذَابِ ﴾ (هغه کسان چي پخپله کافران شوي دي اواړولي دي دوی (نورخلق هم په دنياکي) له لاري دالله موږ به دوی ته زيات کړو عذاب دبل عذاب دپاسه ) يعني موږ به دوی ته په جهنم کي دکفرپه عذاب دپاسه بل عذاب هم ورکړو ځکه چي دوی خلک له هدايت څخه راګرزول ﴿ بِمَا كَانُواْ يُفۡسِدُونَ ﴾ په سبب دهغه چي دوی به فسادکاوو (په دنياکي په کفراو ګناهونو سره) ﴿ وَيَوۡمَ نَبۡعَثُ فِي كُلِّ أُمَّةٖ شَهِيدًا عَلَيۡهِم مِّنۡ أَنفُسِهِمۡۖ ﴾ اويادکړه (ای محمده! دوی ته) هغه ورځ چي راپورته به کړو موږ په هرامت کي يوشاهد(پيغمبر) په دوی باندي له ځانونو (قومونو او قبيلو) ددوی(چي ددوی په کړو وړوشاهدي ووايې) ﴿ وَجِئۡنَا بِكَ شَهِيدًا عَلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِۚ ﴾اوتابه راولو (ای محمده!) په دغو کسانوشاهد(چي ستا امتيان دي ) ﴿ وَنَزَّلۡنَا عَلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ تِبۡيَٰنٗا لِّكُلِّ شَيۡءٖ ﴾ اونازل کړی دی موږ پرتا( ای محمده ) کتاب (قرآن) چي دی بيان واضح لپاره دهر(ديني) څيز) يعني ای محمده موږ پرتاباندي واضح قرآن چي بليغ او ټولو ديني اړينوامورو ته کافي څرګندبيان دی نازل کړی نودعذر اودليل ځای نه دی پاتي. ابن مسعودرضی الله عنه وايې چي: پدې قرآن کي زموږ لپاره هرعلم بيان شوی دی (۱)﴿ وَهُدٗى وَرَحۡمَةٗ وَبُشۡرَىٰ لِلۡمُسۡلِمِينَ ﴾ (اوهدايت (زړونوته ) اورحمت (بندګانوته) اوزېری ( مهتدينو ) خاصو مسلمانانو ته) دی. ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَأۡمُرُ بِٱلۡعَدۡلِ وَٱلۡإِحۡسَٰنِ ﴾ (بېشکه الله حکم کوي په عدل اواحسان سره ) يعني الله دمکارم الاخلاق حکم کوي چي دخلکو ترمينځ عدل اوله ټولوسره احسان وشي ﴿ وَإِيتَآيِٕ ذِي ٱلۡقُرۡبَىٰ ﴾ اوپه ورکړي سره خاوندانو دخپلوي ته په ځانګړي توګه يې ځکه يادکړل چي ورته زياته پاملرنه وشي ﴿ وَيَنۡهَىٰ عَنِ ٱلۡفَحۡشَآءِ وَٱلۡمُنكَرِ وَٱلۡبَغۡيِۚ ﴾ اومنعه کوي له بدو کارونو اوناروا اعمالو او سرکښي څخه) يعني له هرقبيح قول، اوفعل څخه منع کوي. ابن مسعودرضی الله عنه وايې چي: الله تعالی دهريوه خيراوشر بيان په دغه آيت کي سره راغونډ کړی دی (۲) (فحشاء ) هغه چي په ناولي توب کي انتهاء ته رسېدلی کاروي لکه زنااوشرک( منکر ) هغه کارته ويلای شي چي فطرت ځني کرکه کوي او(بغی) له حق اوعدل څخه تجاوز کولوته وايې ﴿ يَعِظُكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَذَكَّرُونَ ﴾ پند درکوي تاسي ته (په امراونهی) دپاره ددې چي تاسي (دالله په کلام ) پنداخلئ.

**بلاغت:**

پدې آيتونو چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته په لاندي ډول دي:

---

(۱) القرطبي ۱۰/ ۱۶۵
(۲) البيضاوي۲۹۶

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

۱ - تمثيلي استعاره چي فرمايي: ﴿ وَضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلًا رَّجُلَيْنِ أَحَدُهُمَآ أَبْكَمُ ﴾ آيت شريف دبت مثال گونگی راوړی هغه چي په هيڅ بنمر نه راځي اوددغه بت او قادرمقتدرذات ترمينځ بيا پرتله رااخلي چي دغه پرتله له سره کېدونکي يعني شوني نه ده.

۲ - مرسله مجمله تشبيه لکه چي وايي: ﴿ كَلَمْحِ ٱلْبَصَرِ ﴾.

۳ - پدې کلماتوکي چي : ﴿ سِرًّا وَجَهْرًا ﴾ او ﴿ يَعْرِفُونَ... يُنكِرُونَهَا ﴾ او ﴿ ظَعْنِكُمْ ... إِقَامَتِكُمْ ﴾ دطباق صنعت راغلی دی.

۴ - دالله تعالی پدې کلام کي چي فرمايي: ﴿ سَرَٰبِيلَ تَقِيكُمُ ٱلْحَرَّ ﴾ ايجاز بالحذف راغلی ځکه چي، (البرد) هم شته خودلمړني په يادولوله دوهم څخه استغناء، بې پروايي شوي ده.

۵ - لطيفه مقابله پدې آيت کي: ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَأْمُرُ بِٱلْعَدْلِ وَٱلْإِحْسَٰنِ وَإِيتَآيِٕ ذِى ٱلْقُرْبَىٰ وَيَنْهَىٰ عَنِ ٱلْفَحْشَآءِ وَٱلْمُنكَرِ وَٱلْبَغْىِ ﴾ راغلي ده.

۶ - دالله په دې قول کي چي فرمايي: ﴿ وَإِيتَآيِٕ ذِى ٱلْقُرْبَىٰ ﴾ ذکرد خاص وروسته له عام څخه راغلی دی چي هغه عام احسان وو او دا ددې لپاره چي په هکله يې اهتمام وشي.

لطيفه:

داسي راغلي چي کله (اکثم بن صيفي) ته درسول الله دبعثت خبر ورسېدونو هغه دوه تنه ددې معلوماتو ترلاسه کولو لپاره راواستول هغوی پيمغبرعليه السلام ته راغلل ورته ويل يې: ته څوک يې اوڅه کاره يې ؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل: زه محمدبن عبدالله اودالله استازی يم بيا يې دغه آيت شريف ورته ولوست ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَأْمُرُ بِٱلْعَدْلِ وَٱلْإِحْسَٰنِ ﴾ دآيت ترپايه هغوی (أکثم) ته راستانه شول اوچي کله يې دغه آيت شريف ورته ولوست هغه وويل: ماته داسي معلومېږي چي هغه دښوا خلاقو حکمورکوي اوله بدوکارونو څخه خلګ منع کوي نوتاسوپدې باب (اطاعت) سرونه شئ او وروسته پاتي لکی مه کېږئ ! يعني په تلوارسره متابعت يې وکړئ).

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَأَوْفُوا۟ بِعَهْدِ ٱللَّهِ إِذَا عَٰهَدتُّمْ وَلَا تَنقُضُوا۟ ٱلْأَيْمَٰنَ بَعْدَ تَوْكِيدِهَا وَقَدْ جَعَلْتُمُ ٱللَّهَ عَلَيْكُمْ كَفِيلًا ۚ
إِنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُ مَا تَفْعَلُونَ ﴿٩١﴾ وَلَا تَكُونُوا۟ كَٱلَّتِى نَقَضَتْ غَزْلَهَا مِنۢ بَعْدِ قُوَّةٍ أَنكَٰثًا تَتَّخِذُونَ أَيْمَٰنَكُمْ
دَخَلًۢا بَيْنَكُمْ أَن تَكُونَ أُمَّةٌ هِىَ أَرْبَىٰ مِنْ أُمَّةٍ ۚ إِنَّمَا يَبْلُوكُمُ ٱللَّهُ بِهِۦ ۚ وَلَيُبَيِّنَنَّ لَكُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ مَا كُنتُمْ فِيهِ
تَخْتَلِفُونَ ﴿٩٢﴾ وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَٰحِدَةً وَلَٰكِن يُضِلُّ مَن يَشَآءُ وَيَهْدِى مَن يَشَآءُ ۚ وَلَتُسْـَٔلُنَّ عَمَّا
كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٩٣﴾ وَلَا تَتَّخِذُوٓا۟ أَيْمَٰنَكُمْ دَخَلًۢا بَيْنَكُمْ فَتَزِلَّ قَدَمٌۢ بَعْدَ ثُبُوتِهَا وَتَذُوقُوا۟ ٱلسُّوٓءَ بِمَا صَدَدتُّمْ عَن
سَبِيلِ ٱللَّهِ ۖ وَلَكُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٩٤﴾ وَلَا تَشْتَرُوا۟ بِعَهْدِ ٱللَّهِ ثَمَنًا قَلِيلًا ۚ إِنَّمَا عِندَ ٱللَّهِ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



تَعْمَلُونَ ﴿٩٥﴾ مَا عِندَكُمْ يَنفَدُ وَمَا عِندَ ٱللَّهِ بَاقٍ وَلَنَجْزِيَنَّ ٱلَّذِينَ صَبَرُوٓا أَجْرَهُم بِأَحْسَنِ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ
﴿٩٦﴾ مَنْ عَمِلَ صَٰلِحًا مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُۥ حَيَوٰةً طَيِّبَةً وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَجْرَهُم بِأَحْسَنِ مَا
كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٩٧﴾ فَإِذَا قَرَأْتَ ٱلْقُرْءَانَ فَٱسْتَعِذْ بِٱللَّهِ مِنَ ٱلشَّيْطَٰنِ ٱلرَّجِيمِ ﴿٩٨﴾ إِنَّهُۥ لَيْسَ لَهُۥ سُلْطَٰنٌ عَلَى ٱلَّذِينَ
ءَامَنُوا وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ﴿٩٩﴾ إِنَّمَا سُلْطَٰنُهُۥ عَلَى ٱلَّذِينَ يَتَوَلَّوْنَهُۥ وَٱلَّذِينَ هُم بِهِۦ مُشْرِكُونَ ﴿١٠٠﴾ وَإِذَا
بَدَّلْنَآ ءَايَةً مَّكَانَ ءَايَةٍ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يُنَزِّلُ قَالُوٓا إِنَّمَآ أَنتَ مُفْتَرٍۭ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٠١﴾ قُلْ
نَزَّلَهُۥ رُوحُ ٱلْقُدُسِ مِن رَّبِّكَ بِٱلْحَقِّ لِيُثَبِّتَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا وَهُدًى وَبُشْرَىٰ لِلْمُسْلِمِينَ ﴿١٠٢﴾ وَلَقَدْ
نَعْلَمُ أَنَّهُمْ يَقُولُونَ إِنَّمَا يُعَلِّمُهُۥ بَشَرٌ لِّسَانُ ٱلَّذِى يُلْحِدُونَ إِلَيْهِ أَعْجَمِىٌّ وَهَٰذَا لِسَانٌ عَرَبِىٌّ مُّبِينٌ
﴿١٠٣﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ لَا يَهْدِيهِمُ ٱللَّهُ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٠٤﴾ إِنَّمَا يَفْتَرِى ٱلْكَذِبَ ٱلَّذِينَ لَا
يُؤْمِنُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَأُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْكَٰذِبُونَ ﴿١٠٥﴾ مَن كَفَرَ بِٱللَّهِ مِنۢ بَعْدِ إِيمَٰنِهِۦٓ إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ
وَقَلْبُهُۥ مُطْمَئِنٌّۢ بِٱلْإِيمَٰنِ وَلَٰكِن مَّن شَرَحَ بِٱلْكُفْرِ صَدْرًا فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِّنَ ٱللَّهِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١٠٦﴾
ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمُ ٱسْتَحَبُّوا ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا عَلَى ٱلْءَاخِرَةِ وَأَنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿١٠٧﴾ أُولَٰٓئِكَ
ٱلَّذِينَ طَبَعَ ٱللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ وَأَبْصَٰرِهِمْ وَأُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْغَٰفِلُونَ ﴿١٠٨﴾ لَا جَرَمَ أَنَّهُمْ فِى
ٱلْءَاخِرَةِ هُمُ ٱلْخَٰسِرُونَ ﴿١٠٩﴾ ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ هَاجَرُوا مِنۢ بَعْدِ مَا فُتِنُوا ثُمَّ جَٰهَدُوا
وَصَبَرُوٓا إِنَّ رَبَّكَ مِنۢ بَعْدِهَا لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١١٠﴾ ﴿النحل: ٩١ ـ ١١٠﴾

## مناسبت اوترا و:

کله چي الله په تېروشويو آيتونو کي وعداو وعيد راوړل ترغيب او ترهيب يې وفرمايو او ټول فضائل اومکارم اخلاق يې يادکړل نودلته يې له عهد ماتولو او دالله جل جلاله له اوامرو څخه دغاړي غړولو په هکله تحذير راووړ څکه چي عصيان اوسرغړونه دابتلاء اوحرمان پيلامه ده وروسته الله هغه چي مؤمنانوته يې تيارکړي بيانوي.

## لغتونه:

(تنقضوا) (نقض) د(ابرام) ضدته وايې يعني ديوشي ماتولو ته نقض وايې (توكيدها) (توكيد) تاكيد اوتثبيت ته وايې (أنكاثا) له ورېشلو وروسته وشنلو ته ويل کېږي يعني کله چي رسۍ له مرغلين والي څخه اومړي کړي (دخلا) تېګي برګي ته وايې ابوعبيده وايې: هره چاره چي سمه نه وي (دخل) درغلي ده (أعجمى) هغه چي په عربي ژبه نه ګړېږي فراء وايې چي أعجم هغه چاته ويلی شي چي په ژبه کي ګنګوره وي که څه هم له نسله عرب وي اوعجمي بياهغه ته وايې چي له اصله عجم وي (يلحدون) (لحدالرجل) او(ألحد) کله چي له سمي سيخي لاري کوږ شي هغه ته وايې.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دنزول سبب:

ا :- روایت کېږي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم به دمروا څنګ ته دیو نصراني مریي سره چي (جبر) نومېده کېناست او هغه به کتاب لوست نو مشرکانو به ویل: په الله قسم دی چي دغه څه ده ته جبر رومي ورزده کوي نو الله جل جلاله دا آیت نازل کړچي: ﴿ وَلَقَدْ نَعْلَمُ أَنَّهُمْ يَقُولُونَ إِنَّمَا يُعَلِّمُهُۥ بَشَرٌ ﴾ دا آیت ترپایه (۱)

ب: - ابن عباس رضی الله عنه روایت کوي چي مشرکانو عمار، دیاسرزوی او پلاریې یاسر او موریې سُمیه ونیول او همدا راز بلال او صهیب ته یې ددوی په ګډون شکنجې او عذابونه ورلیدل. سُمیه یې ددوا وښانو ترمینځ وتړله او په شرمګاه کي یې په نېزه ووهله شهیده شوه او همداسي یاسریې هم شهید کړ چي ددې خاوند وو دوی په اسلام کي لومړني شهیدان دي او پاتي شو عمار رضی الله عنه نو هغه ددېرکړاو ګاللو وروسته ددوی خوښه دخان ژغورلو لپاره یوه کلمه ترخوله را وایستله چي دوی ځني په زوره غوښتله او بیا (په ژړا) رسول الله ته راغی او دغه شکایت یې ورته وړاندي کړ رسول الله صلی الله علیه وسلم ځني وپوښتل چي په هغه حال کي دي زړه څرنګه وو؟ عمار رضی الله عنه ورته ویل چي: زړه مي په ایمان مطمئن وو (هیڅ شک او شبهه ورته نه وه راغلي) نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل که چېري دوی بیا مجبورولې هم داسي وکړه او الله پاک دا آیت نازل کړ: ﴿ مَن كَفَرَ بِٱللَّهِ مِنۢ بَعْدِ إِيمَٰنِهِۦٓ إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُۥ مُطْمَئِنٌّۢ بِٱلْإِيمَٰنِ ﴾ (۲)

تفسیر:

﴿ وَأَوْفُوا۟ بِعَهْدِ ٱللَّهِ إِذَا عَٰهَدتُّمْ ﴾ (او تاسي دالله په عهد وفا کوئ کله چي پخپلو منځونو کي سره عهدوتړئ) یعني په هغو وعدو چي له رسول الله صلی الله علیه وسلم او یا نورو خلګو سره موکړي وفا وکړئ او بشپړي یې کړئ ﴿ وَلَا تَنقُضُوا۟ ٱلْأَيْمَٰنَ بَعْدَ تَوْكِيدِهَا ﴾ او تاسي خپل قسمونه (عهدونه دبیعت مه ماتوئ وروسته له محکم کولو (په قسم ,الهي ذکر) ﴿ وَقَدْ جَعَلْتُمُ ٱللَّهَ عَلَيْكُمْ كَفِيلًا ﴾ حال داچي په تحقیق تاسي الله پخپلو ځانونو شاهد، څارونکی ګرزولی دی (په دغه بیعت باندي) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُ مَا تَفْعَلُونَ ﴾ ببشکه الله ته معلوم دي هرهغه څه چي تاسي یې کوئ (نو په هغه به جزادرکړي)

﴿ وَلَا تَكُونُوا۟ كَٱلَّتِى نَقَضَتْ غَزْلَهَا مِنۢ بَعْدِ قُوَّةٍ أَنكَٰثًا ﴾ (او مه کېږئ تاسي (دعهد په ماتولو کي) په شان دهغي (ښځي) چي بیرته به یې سپخولې وریشلې مزي خپل وروسته له محکم والي دهغه په ټوټې ټوټې کولو سره) داهسي مثال دی چي الله دعهد ماتونکي لپاره راوړی دی (۳) او الله پاک پدې آیت کي هغه څوک چي وعده کوي او قسمونه اخلي خپل عهدونه ټینګوي له هغي ښځي سره مشابه ګڼي څوک

(۱) القرطبي ۱۰/۱۷۷

(۲) القرطبي ۱۰/۱۸۰

(۳) دغه دمجاهد او قتاده وینا ده.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



چې څرخې وریښي اوهغه خوراښېنګوي خوبیا ورسته یې له سره اومړی کوي او ورانوي یې. مفسرین کرام وایي چې: په مکه مکرمه کي یوه ناپوهه ښځه وه چې مزي به یې غزل اوبیرته به یې سپخول او شنل خلګوبه ویل: داڅومره ناپوهه ده ؟! ﴿ تَتَّخِذُونَ أَيْمَـٰنَكُمْ دَخَلًا بَيْنَكُمْ ﴾ حال داچي تاسي خپل عهدونه تګي خیانت نیسئ یوله بله پخپلو منځونو کي ﴿ أَن تَكُونَ أُمَّةٌ هِىَ أَرْبَىٰ مِنْ أُمَّةٍ ﴾ په سبب ددې چي شوه به یوه ډله دغه (ډله) ډېره زیاته له هغه بلي ډلي څخه (په مال اوافرادو کي) مجاهدوایي: چي دوی یوځل له ځینو حلفاوو سره وعده سره له قسم اخیستلو وکړه اوبیابه یې تردوی نور خلګ دقدرت او مال خاوندان وموندل لوړنی وعده به یې ماته کړه اوله دغوقدرت منوسره به یې عهدوکړ(۱) ﴿ إِنَّمَا يَبْلُوكُمُ ٱللَّهُ بِهِۦ ﴾ بېشکه هم داخبره ده چي تاسي الله ازمويي په (وفاد) دغي (وعدې) سره چي آیاتاسو دالله امرمنئ که څنګه؟ ترڅو چي مطیع او سرغړونکی سره بېل شي ﴿ وَلَيُبَيِّنَنَّ لَكُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ مَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴾ اوخامخابیان به کړي هرومرو(الله) تاسي ته په ورځ دقیامت کي هغه څه چي وی تاسي په هغه کي به موسره اختلاف کاوو( ترڅوهرچاته دهغه له عمل سره سمه جزاورکړي ) ﴿ وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَٰحِدَةً ﴾ اوکه الله اراده فرمایلي وای نوخامخاتاسي به یې ګرزولي وای یوامت (چي سره اختلاف به مونه کاوو) ﴿ وَلَـٰكِن يُضِلُّ مَن يَشَآءُ وَيَهْدِى مَن يَشَآءُ ﴾ (ولکن (الله پاک ) ګمراه کوي هغه څوک چي د(ضلالت ) اراده یې وفرمایي ) یعني دالله جل جلاله حکمت داغوښتي چي دوی ته اختیارپرېږدي ځیني به نېکمرغه اوځیني به بدمرغه وي ، ځیني به دخذلان اوښویولو په وجه ګمراهي ته بوزي اودابه یې عدل وي ځیني به په توفیق ورکولوسره سمي لاري ته هدایت کړي اودابه یې فضل اومهرباني وي ﴿ وَلَتُسْـَٔلُنَّ عَمَّا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ اوخامخابه وپوښتېدلی شئ( دقیامت په ورځ کي) له هرهغه عمله چي تاسي به په دنیاکي کاوو نوبه په خورا وړو شیانولکه (فتیل) او(قطمیر) غوندي هم سزادرکړي ﴿ وَلَا تَتَّخِذُوٓا۟ أَيْمَـٰنَكُمْ دَخَلًا بَيْنَكُمْ ﴾ اومه نیسئ تاسي قسمونه خپل (وعدې خپلي) مکراوفریب پخپلو منځونو کي (چي خلګ ورباندي غولوئ) ددې لپاره یې دغه خبره مکرره راوړه چي دعهودو په شان کي په سترتوب سره مبالغه وشي یعني تاسوددې لپاره لوړي اوقسمونه مه اخلئ چي خلګ ورباندي تېرباسئ اودفاني ژوندځیني ګټي ترلاسه کړئ(۲) ﴿ فَتَزِلَّ قَدَمٌۢ بَعْدَ ثُبُوتِهَا ﴾ نو وبه ښوئېږي

---

(۱) مختصرابن کثیر۱۰/۱۷۱

(۲) په الظلال تفسیرکي لیکي چي په درغلي سره قسمونه اخیستل اووعدې کول ایمان متزلزل او څپ ځپانده کوي ، دایمان انځور ورانوي هغه څوک چي قسم اخلي اوپدې پوهېږي چي په دغه قسم کي مکراوفریب کوي نوددې امکان نشته چي عقیده دي پخپل حال پاتي شي اویادي پل په لاره سم شي اوله دې سره سره دهغه چاپه وراندي هم هغوی بې اعتباره کیږي څوک چي پوهېږي ددې خلګوقسمونه دتګي برګي لپاره دي نو هغوی بیا ایمان نه راوړي اوله دې سببه دوی له الهي لاري څخه خلګ راګرزوي څکه دوی دمسلمان مثال خوراناوړه وراندي کوي

Bawar.net



قدم (ستاسي دحق له لياري) وروسته له ټينګېدلو دهغه ؛ ابن کثيروايي دادهغه چاپاره متل دی چي څوک په حق باندي مستقيم وي بيا ځني کوږ شي اوله سمي لاري څخه ددروغو قسمونو په اخيستلو باندي وښوئېږي هغه چي دالله له لاري ممانعت کوي کله چي کافردا ويني چي هغه مؤمن چي له ده سره يې عهد کړی هغه خپله وعده ماتوي اوغدرکوي نويې په زړه کي په دين باندي باورنه پاتي کېږي اوددغه غدرکونکي مؤمن په سبب په اسلام کي له داخلېدلو څخه منع کېږي (۱) ځکه الله وروسته فرمايي :

﴿ وَتَذُوقُوا السُّوٓءَ بِمَا صَدَدتُّمْ عَن سَبِيلِ اللَّهِ ﴾ نووبه څکي غم په (دنياکي عاجل عذاب) په سبب دمنع کولوستاسي نوروخلګو لره دالله له لاري څخه (ځکه چي تاسي وعدې ماتولې) ﴿ وَلَكُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴾ اوشته تاسي ته عذاب لوی (په اورددوزخ کي) ﴿ وَلَا تَشْتَرُوا بِعَهْدِ اللَّهِ ثَمَنًا قَلِيلًا ﴾ اومه اخلئ (پېرئ) په عهد دالله (اورسول الله ) قيمت لږ (دفاني دنيامتاع) ﴿ إِنَّمَا عِندَ اللَّهِ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ بېشکه هغه خبره (ثواب) چي دالله په نزدکي ده همغه تاسي ته غوره ده که تاسي پوهېږئ (په حقيقت باندي) وروسته يې علت هسي څرګندوي ﴿ مَا عِندَكُمْ يَنفَدُ وَمَا عِندَ اللَّهِ بَاقٍ ﴾ هغه ددنيامال چي تاسي سره دی فنا کېږي اوهغه چي دالله سره دی تل ترتله دي (اوتمامېږي نه ) نوتلپاتي اوباقي ترفاني غوره وګڼئ ! ﴿ وَلَنَجْزِيَنَّ الَّذِينَ صَبَرُوا أَجْرَهُم بِأَحْسَنِ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ (اوخامخابه جزا ورکړو هغوکسانوته چي صبريې کړی دی اجرددوی په ډېرښه دهغونېکيوسره چي دوی به کولې) يعني موږ به صبرکونکوته ښه جزاورکړوبشپړ اجر به يې په نېکوعملونو ورکړو اوله ګناهونوبه يې ورتېر شواودغه دالله دکرم نه ډکه وعده ده چي افضله جزاپه نېک عمل ورکوي اودغه دالله جل جلاله فضل اوکرم دی ﴿ مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً ﴾ هرچاچي له نارينه ، ياله ښځي څخه نېک عمل وکړحال داچي دی مؤمن وي نوخامخاژوندون به ورکړو ده ته ژوندون پاکيزه (په قناعت ، حلاله روزي اودنېکو اعمالو لپاره توفيق) حسن بصري رحمه الله وايي چي هيچاته ژوند پاکېزه اوخوندور نشته مګرپه جنت کي ځکه هلته بې له مرګه ژوند اوبې له فقره بدايي ، بې له رنځه روغتيااوپرته له بدمرغي تل نېکمرغي ده(۲) ﴿ وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَجْرَهُم بِأَحْسَنِ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ اوخامخابه ورکړو دوی ته هرومرو اجرددوی (په آخرت کي) په ډېرښه دهغونېکيوچي دوی به (په دنياکي) کولې (او څومره ښايسته جزاء ده !) ﴿ فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ ﴾ (نوکله چي ته لولې قرآن (کريم) نوته پناه وغواړه په الله له شيطان رټلي څخه) يعني کله چي دقرآن پاک دتلاوت اراده وکړې نوله الله څخه وغواړه چي د شيطان له وسوسوڅخه دي وژغوري ځکه

---

(۱) المختصر۲ / ۳۴۵

(۲) په جلالين باندي دصاوي حاشيه۲ / ۳۲۷ لومړی قول دابن عباس اوهغه څرګند دی.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دهغه په وسوسو سره ته دقرآنکریم له تدبر او په هغه باندي له عمل کولو څخه راګرزول کېږي ﴿ إِنَّهُۥ لَيۡسَ لَهُۥ سُلۡطَٰنٌ عَلَى ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ﴾ بېشکه داشيطان ته نشته (هيڅ قدرت) تسلط او غلبه پرهغو کسانوچي ايمان يې راوړی دی ؛ شيطانان نشي کولای چي مؤمنان له سمي لاري منحرف کړي ځکه دوی دالله په پناه کي اوسي ﴿ وَعَلَىٰ رَبِّهِمۡ يَتَوَكَّلُونَ ﴾ او په خپل رب توکل (اعتماد) کوي (په ټولو ورپېښو مشکلاتو کي) ﴿ إِنَّمَا سُلۡطَٰنُهُۥ عَلَى ٱلَّذِينَ يَتَوَلَّوۡنَهُۥ ﴾ بېشکه خبره هم داده چي تسلط دشيطان پرهغو کسانو دی چي دوی له ده سره دوستي کوي (اومتابعت يې کوي) ﴿ وَٱلَّذِينَ هُم بِهِۦ مُشۡرِكُونَ ﴾ اوپرهغو کسانوچي دوی په دغه سره شريک نيونکي دي ) يعني دده داغواء په سبب دوی ګرده په عباداتو، ذبائحوکي اوخوراک اوڅښاک کي له الله سره شريک نيونکي ګرزېدلي دي ﴿ وَإِذَا بَدَّلۡنَآ ءَايَةٗ مَّكَانَ ءَايَةٖ ﴾ اوکله چي بدلوو موږ (کوم ) آيت په ځای دبل آيت (چي حکم اويا تلاوت يې منسوخ کوو) ﴿ وَٱللَّهُ أَعۡلَمُ بِمَا يُنَزِّلُ ﴾ (حال داچي الله ته ښه معلوم دي هغه چي رالېږي يې) دغه اعتراضيه جمله ده چي دتوبيخ لپاره راوړل شوي يعني الله ته ښه معلوم دي چي دبندګانو خيراومصلحت په څه کي دی؟ ځکه ددې کتاب دآيتونو مثال ددوا په شان دی چي ناروغ ته وخت په وخت ورکول کېږي ترڅوچي رنځور، روغ شي اوبيا هغه له ده سره ور خوراکي توکي وربدلېږي ﴿ قَالُوٓاْ إِنَّمَآ أَنتَ مُفۡتَرِۭۚ ﴾ نوواېي دا (کفار، جهال نبي ته) بېشکه هم داخبره ده چي ته (په الله ) دروغ تړونکی يې ﴿ بَلۡ أَكۡثَرُهُمۡ لَا يَعۡلَمُونَ ﴾ (نه ده داسي لکه چي دوی وايې ) بلکه زيات ددوی نه پوهېږي (په حکمت دنسخ کېدلو اوپه جهل ناپوهي سره دغه ويناکوي. ابن عباس رضی الله عنه وايې: کله چي به کوم آيت شريف نازل شو اوپه هغه کي به څه شدت وو بيا به منسوخ شو نوقريشي کفارو به ويل چي: محمد په خپلو ملګرو ملنډي وهي نن ورځ ورته يوډول امرکوي سبايې بياځني منع کوي اودغه له خپله ځانه ورته وايې بيادغه آيت نازل شوچي ﴿ قُلۡ نَزَّلَهُۥ رُوحُ ٱلۡقُدُسِ مِن رَّبِّكَ بِٱلۡحَقِّ ﴾ ووايه (ای محمده دغو کفاروته چي) دغه قرآن پاک روح (جبريل) نازل کړی دی له طرفه درب ستا په حقه سره ﴿ لِيُثَبِّتَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَهُدٗى وَبُشۡرَىٰ لِلۡمُسۡلِمِينَ ﴾ لپاره ددې چي ثابت کړي پرې هغه کسان چي مؤمنان دي (په براهينو اودلائلو سره بيايې ايمان اويقين ټينګ شي) اوزېری (دجنت ) دی لپاره دمسلمانانو (هغوی چي دالله رحمت ته غاړه ايښودونکي وي پدې کي کفاروته هم ګوت ښندنه ده ځکه چي دوی دالله لپاره غاړه ايښودونکي نه دي ﴿ وَلَقَدۡ نَعۡلَمُ أَنَّهُمۡ يَقُولُونَ إِنَّمَا يُعَلِّمُهُۥ بَشَرٞۗ ﴾ (اوخامخا په تحقيق موږته ښه معلوم دی چي بېشکه دوی وايې چي: بېشکه هم داخبره ده چي ښوونه کوي ده (محمد ) ته انسان) يعني موږته دمشرکانو نارواپروپېګنډه اوافتراء معلومه ده چي دغوی وايې دغه قرآن دجبررومي ښوونه ده او الله دهغه ترديد داسي فرمايې: ﴿ لِّسَانُ ٱلَّذِي يُلۡحِدُونَ إِلَيۡهِ أَعۡجَمِيّٞ ﴾ ژبه دهغه سړي چي دوی نسبت دښووني

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کوي هغه ته عجمي ده ﴿ وَهَٰذَا لِسَانٌ عَرَبِيٌّ مُّبِينٌ ﴾ او دغه قرآن په عربي ښکاره (فصیح، بلیغ) ژبه ده (چي دعجمي کرکېچونوڅخه ښخي پاکه ده نوڅرنگه به ممکن وي چي دچاژبه عجمي وي او دغه عربي کتاب چي دفصاحت پسول پسوللی محمدته ور وښیي عجمي به څېري ددغه معجزکتاب دفصاحت اوبلاغت ذوق درلودونکی وي؟ ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ لَا يَهْدِيهِمُ ٱللَّهُ ﴾ بېشکه هغه کسان چي دالله په آیتونو ایمان نه راوړي نه ښیي الله دوی ته (لاره دحق موندلواونه دنجات اونېکمرغي) ﴿ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ اوشته دوی ته دردناک عذاب (په آخرت کي) دغه ددوی لپاره اخطاردی په کفراوافترآء باندي ﴿ إِنَّمَا يَفْتَرِي ٱلْكَذِبَ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ ﴾ بېشکه هم داخبره ده چي تړي دروغ (پرالله) هغه کسان چي دالله په آیتونو ایمان نه راوړي (اونه په الله ایمان راوړي څکه هغه یې له عذابه نه وېرېږي او دروغ هغه ستره اوناولي گناه ده چي مسلمان یې دکولو هڅه نه کوي اودادوی دهغه قول اووینا تردید دی چي دوی به ویل: ﴿ إِنَّمَآ أَنتَ مُفْتَرٍۭ ﴾ ﴿ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْكَٰذِبُونَ ﴾ اوهم دغه کسان هم دوی دروغجنان دي؛ دحقیقت په څرگندولو کي محمدصلی الله علیه وسلم دروغجن نه دی ﴿ مَن كَفَرَ بِٱللَّهِ مِنۢ بَعْدِ إِيمَٰنِهِۦٓ ﴾ هرڅوک چي په الله کافرشو وروسته له ایمان راوړلو دده (نودالله غضب دی پرهغه) ﴿ إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُۥ مُطْمَئِنٌّۢ بِٱلْإِيمَٰنِ ﴾ مگرهغه څوک چي زورپرې وکړشو (اومجبوراً دکفرکلمه یې وویله) حال داچي دده زړه په ایمان سره آرام نیونکی وو؛ په آیت شریف کي دارتداد په هکله تغلیظ ښودل شوی څکه چي هغه یوځل دایمان خوندڅکلی وروسته یې دفاني ژوندچي ترباقي یې غوره گڼلی دهغه لپاره یې دکفرکلمه ویلي مفسرین کرام وایي چي: دغه دعماربن یاسرپه باب کي نازل شوی کله چي مشرکانو هغه ونیو آزارأذیت یې ورکاوو ترڅوچي په زوره یې ورباندي هغه کلمه وویله چي دوی غوښتل نوخلگوویل چي: عمارکافرشو اونورسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: چي عمارله سره ترنوکه له ایمانه ډک دی دهغه ایمان له ویني اوغوښي سره اغښل شوی دی عمار رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په ژړاانگولا راغی رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل: زړه دي څنگه وو؟ عمار ورته وویل: چي زړه مي په ایمان داده او مطمئن وو نورسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: که بیادوی له لوړي مجبوره شې همداسي وکړه ﴿ وَلَٰكِن مَّن شَرَحَ بِٱلْكُفْرِ صَدْرًا ﴾ لکن هغه څوک چي ارته کړي په کفرسره سینه خپله (یعني عقیدتًا) ورباندي خوښ شي) ﴿ فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِّنَ ٱللَّهِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴾ نوپردوی باندي دالله له لوري غضب دی اوشته دوی ته ستر عذاب (څکه ددوی تردي گناه بله لویه گناه نشته) ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمُ ٱسْتَحَبُّوا۟ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا عَلَى ٱلْءَاخِرَةِ ﴾ دا (لوی اُخروي) عذاب په سبب ددې دی چي دوی غوره کړی دی ژوندون لږ خسیس ددنیا پرآخرت ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِي ٱلْقَوْمَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴾ او بېشکه الله نه ښیي لاره (دایمان) قوم کافرانو ته

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



(اونه بې ژغوري له ضلالت څخه) ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ طَبَعَ ٱللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ وَأَبْصَٰرِهِمْ ﴾ دا (کفار) همغه کسان دي چې الله ددوی په زړونو مهروهلی دی (چې حق نه مني) اوپه غوږونو ددوی (چې حق نه اوري ) اوپه سترګوددوی (چې دقدرت آثارنه ویني ﴿ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْغَٰفِلُونَ ﴾ دغه کسان هم دوی (له عقبی) غافلان دي ﴿ لَا جَرَمَ أَنَّهُمْ فِي ٱلْأٓخِرَةِ هُمُ ٱلْخَٰسِرُونَ ﴾ داخبره واقعي ده چې بېشکه دوی په آخرت کې هم دوی زیانکاران دي (ځکه چې ددوی ژوندبې ګټې لاړ. مفسرین کرام وایې چې: الله پاک دوی په شپږو صفتونو وستایل چې: دالله غضب، لوی عذاب، دنیاپه آخرت غوره کول، له هدایت څخه محرومېدل، په زړونو یې مهرلګېدل اوله غافلانو څخه ګرزېدل دي

﴿ ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ هَاجَرُواْ مِنۢ بَعْدِ مَا فُتِنُواْ ﴾ پس له دې بیابېشکه رب ستا (ای محمده) لپاره دهغوکسانوچې هجرت یې کړی دی(له خپله وطنه ) وروسته له هغه چې په عذابونوکړول شوي وو (دمشرکانو طاغوتیانو له لاسه ) ﴿ ثُمَّ جَٰهَدُواْ وَصَبَرُوٓاْ ﴾ بیایې جهادکړی اوصبریې کړی دی (په تکالیفو اومشقتونو ) ﴿ إِنَّ رَبَّكَ مِنۢ بَعْدِهَا لَغَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴾ بېشکه رب ستا وروسته (له هجرت، جهاد اوصبرنه) خامخابه مغفرت کونکی دی (دګناهونو) ډېررحم والادی (چې دوی ته به ښنه وکړي او ورباندي به ورحمېږي ).

## بلاغت:

پدې آیتونوکې چې دبدیع اوبیان کومې ښکلاوې شته لنډیزیې په لاندې ډول دی:

۱ – تمثیلي تشبیه لکه ﴿ وَلَا تَكُونُواْ كَٱلَّتِي نَقَضَتْ غَزْلَهَا ﴾ الله پاک هغه څوک چې قسم کوي اوبیاپه خپله ژمنه (وعده ) وفانکوي له هغې مېرمنې سره تشبیه کوي چې مزې وغړي ( وورېشي) اوبیایې بیرته اومړې کړي (وسپخوي).

۲- استعاره پدې قول کې چې ﴿ فَتَزِلَّ قَدَمُۢ بَعْدَ ثُبُوتِهَا ﴾ په دین کې ثبات اوټینګارېې له قدم سره مشابه کړ ځکه اصلاً ټینګارپه قدم سره صورت نیسي اوڅرنګه چې ددین له لارې ګوښه کېدلوته ښوئېدل وایې نویې په حسي ښوئېدلو له هغه څخه تعبیروفرمایو.

۳ – پدې قول دالله تعالی کې چې فرمایې: ﴿ يُضِلُّ مَن يَشَآءُ وَيَهْدِي مَن يَشَآءُ ﴾ او ﴿ أَعْجَمِيٌّ ﴾ ﴿ عَرَبِيٌّ ﴾ او ﴿ يَنفَدُ ﴾ او ﴿ بَاقٍ ﴾ کې دطباق صنعت نغښتی دی.

۴ – اشتقاقي جناس دالله تعالی پدې کلام کې چې: ﴿ فَإِذَا قَرَأْتَ ٱلْقُرْءَانَ ﴾ اوپدې کې مرسل مجازهم شته چې دمسبب اطلاق یې په سبب کړی دی یعني کله چې ته دقرآن دلوستلو اراده وکړې.

۵ – دالله تعالی پدې قول کې چې فرمایې: ﴿ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يُنَزِّلُ ﴾ اعتراضیه جمله ده چې دالله تعالی حکمت یې دنسخي په هکله څرګندکړی دی اوهمدارنګه پدې کلام کې دالتفات صنعت هم

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



راغلی دی چي له متکلم څخه غائب ته شوی او دالله جل جلاله داسم جليل په راوړلو سره په نفس کي هيبت روزل کېږي.

۲-لطيفه او باريکه استعاره دلته چي الله فرمايي: ﴿لِّسَانُ ٱلَّذِي يُلۡحِدُونَ إِلَيۡهِ أَعۡجَمِيّٞ﴾ ژبه يې دلغت د کلام لپاره استعاره کړيده او عرب ژبه دلغت په ځای او معنا استعمالوي لکه چي الله تعالی فرمايي: ﴿وَمَآ أَرۡسَلۡنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا بِلِسَانِ قَوۡمِهِۦ﴾ دلته يې ژبه د کلام پرځای راوړي ده.

لطيفه:

داستعاذې په لوستلو کي داسي راز پټ دی چي قرآنکريم ذکرمبين دی څرنګه چي شيطان په خپلو وسوسو شبهات او شکوک پيداکوي او په خپلو دسيسو زړونه فاسدوي نو رسول الله صلی الله عليه وسلم ته امروشو چي الله ته پناه ور وړي ځکه دانسان توان دشيطان له دفع کولو څخه کمزوری کېږي او په لوی الله جل جلاله باندي استعاذې کولو ته اړ کېږي.

***

الله تعالی فرمايي:

﴿۞ يَوۡمَ تَأۡتِي كُلُّ نَفۡسٖ تُجَٰدِلُ عَن نَّفۡسِهَا وَتُوَفَّىٰ كُلُّ نَفۡسٖ مَّا عَمِلَتۡ وَهُمۡ لَا يُظۡلَمُونَ (۱۱۱) وَضَرَبَ
ٱللَّهُ مَثَلٗا قَرۡيَةٗ كَانَتۡ ءَامِنَةٗ مُّطۡمَئِنَّةٗ يَأۡتِيهَا رِزۡقُهَا رَغَدٗا مِّن كُلِّ مَكَانٖ فَكَفَرَتۡ بِأَنۡعُمِ ٱللَّهِ فَأَذَٰقَهَا ٱللَّهُ
لِبَاسَ ٱلۡجُوعِ وَٱلۡخَوۡفِ بِمَا كَانُواْ يَصۡنَعُونَ (۱۱۲) وَلَقَدۡ جَآءَهُمۡ رَسُولٞ مِّنۡهُمۡ فَكَذَّبُوهُ فَأَخَذَهُمُ ٱلۡعَذَابُ
وَهُمۡ ظَٰلِمُونَ (۱۱۳) فَكُلُواْ مِمَّا رَزَقَكُمُ ٱللَّهُ حَلَٰلٗا طَيِّبٗا وَٱشۡكُرُواْ نِعۡمَتَ ٱللَّهِ إِن كُنتُمۡ إِيَّاهُ تَعۡبُدُونَ
(۱۱۴) إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيۡكُمُ ٱلۡمَيۡتَةَ وَٱلدَّمَ وَلَحۡمَ ٱلۡخِنزِيرِ وَمَآ أُهِلَّ لِغَيۡرِ ٱللَّهِ بِهِۦۖ فَمَنِ ٱضۡطُرَّ غَيۡرَ بَاغٖ وَلَا عَادٖ
فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ (۱۱۵) وَلَا تَقُولُواْ لِمَا تَصِفُ أَلۡسِنَتُكُمُ ٱلۡكَذِبَ هَٰذَا حَلَٰلٞ وَهَٰذَا حَرَامٞ لِّتَفۡتَرُواْ عَلَى ٱللَّهِ
ٱلۡكَذِبَۚ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَفۡتَرُونَ عَلَى ٱللَّهِ ٱلۡكَذِبَ لَا يُفۡلِحُونَ (۱۱۶) مَتَٰعٞ قَلِيلٞ وَلَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٞ (۱۱۷) وَعَلَى ٱلَّذِينَ هَادُواْ حَرَّمۡنَا مَا
قَصَصۡنَا عَلَيۡكَ مِن قَبۡلُۖ وَمَا ظَلَمۡنَٰهُمۡ وَلَٰكِن كَانُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ يَظۡلِمُونَ (۱۱۸) ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ عَمِلُواْ ٱلسُّوٓءَ
بِجَهَٰلَةٖ ثُمَّ تَابُواْ مِنۢ بَعۡدِ ذَٰلِكَ وَأَصۡلَحُوٓاْ إِنَّ رَبَّكَ مِنۢ بَعۡدِهَا لَغَفُورٞ رَّحِيمٌ (۱۱۹) إِنَّ إِبۡرَٰهِيمَ كَانَ أُمَّةٗ قَانِتٗا لِّلَّهِ
حَنِيفٗا وَلَمۡ يَكُ مِنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ (۱۲۰) شَاكِرٗا لِّأَنۡعُمِهِۚ ٱجۡتَبَىٰهُ وَهَدَىٰهُ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ (۱۲۱) وَءَاتَيۡنَٰهُ فِي ٱلدُّنۡيَا حَسَنَةٗۖ
وَإِنَّهُۥ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ لَمِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ (۱۲۲) ثُمَّ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ أَنِ ٱتَّبِعۡ مِلَّةَ إِبۡرَٰهِيمَ حَنِيفٗاۖ وَمَا كَانَ مِنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ (۱۲۳)
إِنَّمَا جُعِلَ ٱلسَّبۡتُ عَلَى ٱلَّذِينَ ٱخۡتَلَفُواْ فِيهِۚ وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَحۡكُمُ بَيۡنَهُمۡ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ فِيمَا كَانُواْ فِيهِ
يَخۡتَلِفُونَ (۱۲۴) ٱدۡعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِٱلۡحِكۡمَةِ وَٱلۡمَوۡعِظَةِ ٱلۡحَسَنَةِۖ وَجَٰدِلۡهُم بِٱلَّتِي هِيَ أَحۡسَنُۚ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعۡلَمُ
بِمَن ضَلَّ عَن سَبِيلِهِۦ وَهُوَ أَعۡلَمُ بِٱلۡمُهۡتَدِينَ (۱۲۵) وَإِنۡ عَاقَبۡتُمۡ فَعَاقِبُواْ بِمِثۡلِ مَا عُوقِبۡتُم بِهِۦۖ وَلَئِن صَبَرۡتُمۡ لَهُوَ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



خَيْرٌ لِّلصَّـٰبِرِينَ ﴿١٢٦﴾ وَٱصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِٱللَّهِ ۚ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُ فِى ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُونَ ﴿١٢٧﴾ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوا۟ وَّٱلَّذِينَ هُم مُّحْسِنُونَ ﴿١٢٨﴾ ﴾ النحل: ١١١ ـ ١٢٨

مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالی دهغه چاپادونه وکړه چي پوازي په ژبه يې د کفر کلمه ويلې وي او همداراز دهغه چاحال يې بيان کړچي هم په ژبه او هم په زړه کي کافروي نودلته يې دهرچالپاره په آخرت کي د عادلانه جزا ورکولو او په دنياکي عاجلانه عذاب دځينوهغولپاره چي انبياء دروغجن ګڼي راوړ وروسته يې دحضرت ابراهيم خليل الله کيسه بيان کړي اورسول الله صلی الله عليه وسلم ته يې امروکړ چي ددغه سترنبي په پله پل کېږدي او پيروي يې وکړي

لغتونه:

(تجادل) جګړه کوي (رغدا) پراخ ,ويړ,بلاتکلفه (أنعم) دنعمتونو جمع ده لکه (أشد ) چي د(شدت) جمع راځي (أمة) امام چي دخيرخويونه پکې وي (قانتا) منونکی له قنوت څخه اخيستل شوی او طاعت ته وايي (اجتباه) غوره کړی يې وو (حنيفا) مائل له باطل اديانو څخه حق دين ته چي اسلام دی (حنف) ميل ته وايي.

دنزول سبب:

کله چي سيدناحمزه رضی الله عنه شهيد کړی شو اورسول الله صلی الله عليه وسلم هغه وليد چي مثله شوی وو نويې وفرمايل چي: زمادي په الله قسم وي چي ستاپرځای به دوی اوياتنه همداسي وژنم نودغه آيت شريف نازل شو: ﴿ وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا۟ بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُم بِهِۦ ﴾ الاية(١)

تفسير:

﴿ يَوْمَ تَأْتِى كُلُّ نَفْسٍ تُجَـٰدِلُ عَن نَّفْسِهَا ﴾ يادکړه (ای محمده!) هغه ورځ چي رابه شي هريو(نېک اوبد) نفس چي جګړه به کوي لپاره د(خلاصولو) دځان خپل (اودنورو خلګو به ورسره غم نه وي) ﴿ وَتُوَفَّىٰ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ ﴾ اوبشپړه به ورکړل شي هرنفس ته (جزاد) هغه عمل چي کړی يې دی (بې له کموالي اونقصانه) ﴿ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴾ حال داچي په دوی به ظلم ونکړی شي (يعني پوره اجرونه به ورکول شي څه به ځيني نه کمېږي) ﴿ وَضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلًا قَرْيَةً ﴾ اوبيانوي الله مثال ديوکلي؛ چي دغه دمکي کلی اونوردي الله جل جلاله ورباندي نعمتونه لورولي اودوی له الله څخه سرغړونه کوي نوالله يې نعمتونه په عذابونو وربدلوي ﴿ كَانَتْ ءَامِنَةً مُّطْمَئِنَّةً ﴾ چي ده (داکلی) په امن کي آرام هوسا(کليوال دهغه نېکمرغه اوپه روزي ماړه وي) ﴿ يَأْتِيهَا رِزْقُهَا رَغَدًا مِّن كُلِّ مَكَانٍ ﴾ چی راتله دغه کلي ته روزي ددې ډېره پرېمانه له هره (لوري) ځايه ﴿ فَكَفَرَتْ بِأَنْعُمِ ٱللَّهِ ﴾ نوناشکره شو (اهل

---

(١) زادالمسير ٤ / ٥٠٧

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دهغه) په نعمتونو دالله (اوروزي دهغه) ﴿ فَأَذَٰقَهَا ٱللَّهُ لِبَاسَ ٱلْجُوعِ وَٱلْخَوْفِ ﴾ (نو وڅکل الله (په اهل د) دي باندي كالي (جامې) دلوږي او وېرې) يعني الله نعمت دامن اوآرامتيا څني واخيست او وېره، لوږه اومحروميت يې ورباندي ولوراوو ﴿ بِمَا كَانُوا۟ يَصْنَعُونَ ﴾ په سبب دهغو عملونو چي دوى به كول (له كفراوګناهونو څخه امام رازي وايي چي: دغه دكلي دخلګو لپاره مثال دى څكه دوى په بېغمي اوهوسايي كي وو ښېرازه پراخه روزي يې لرله اوبيا الله تعالى دستر نعمت پېرزوينه ورباندي وكړه چي هغه دمحمدصلى الله عليه وسلم بعثت وو مګردوى دهغه تكذيب وكړ اوپه آزار وررسولو كي بې زيار وكېښ نوالله پاک ورباندي كاختي راوستله داسي لوږه ورباندي راپرېوته چي مړزګي (مرداري) اوهډوكي يې وخوړل[1]) ﴿ وَلَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُولٌ مِّنْهُمْ فَكَذَّبُوهُ ﴾ (اوخامخاراغلى وو دوى ته رسول له (جنسه د) دوى نونسبت دد روغو يې وكړهغه ته) يعني په تحقيق سره دوى ته محمدصلى الله عليه وسلم په ښكاره معجزاتو راغى او دوى هغه پېژانده چي ددوى له اصله اوتوكم څخه وو مګرايمان يې ورباندي نه راووړ اوهغه يې په پيغمبري نه منل په آيت كي دادلالت ترستر ګو كېږي چي همدادمكې خلګ وو اوهمدغه دابن عباس وينا ده ﴿ فَأَخَذَهُمُ ٱلْعَذَابُ وَهُمْ ظَٰلِمُونَ ﴾ نوالله دوى دكړاوونومشكلاتو) په عذاب ونيول حال داچي دوى ظالمان وو (په ګناهونو اوشرک كولوسره)

﴿ فَكُلُوا۟ مِمَّا رَزَقَكُمُ ٱللَّهُ حَلَٰلًا طَيِّبًا ﴾ نوخورئ تاسي له هغو خوراكونو څخه چي الله تاسي ته حلال پاكيزه دركړي دي ﴿ وَٱشْكُرُوا۟ نِعْمَتَ ٱللَّهِ إِن كُنتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ ﴾ اوشكروباسئ دالله دنعمت كه يې تاسي چي خاص الله ته عبادت كوئ (اووړباندي ايمان لرئ؛ وروسته الله تعالى هغه حرام توكي اوحيوانات بيانوي چي دوى ته پكي ضرر اوتاوان دى فرمايي: ﴿ إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ ٱلْمَيْتَةَ وَٱلدَّمَ وَلَحْمَ ٱلْخِنزِيرِ ﴾ بېشكه همدا خبره ده چي الله پرتاسي باندي حرام كړي دي (خوراک د) مردار اوويني اودخنزيردغوښي ﴿ وَمَآ أُهِلَّ لِغَيْرِ ٱللَّهِ بِهِۦ ﴾ اوهغه (حلال كړى شوى حيوان) چي غږ كړى شوى دى (دبل شي) بې له الله (دنوم) په وخت دذبحې د) هغه څكه په هغه كي دځان اوعقيدې لپاره تاوان دى ﴿ فَمَنِ ٱضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ پس هغه څوک چي اړ شي (ددې حرامو خوړلو ته) حال داچي ظالم نه وي (په بل چا) اونه تجاوز كوي (له كفايته) نوبېشكه الله لوى مغفرت كونكى (دګناهونو) ډېر رحم والادى (په انعام سره چي اړ اومضطرته عذاب نه وركوي. وروسته الله تعالى مشركانوته توبيخ كوي هغوى چي حرام، حلال يې پخپله خوښه ټاكل فرمايي: ﴿ وَلَا تَقُولُوا۟ لِمَا تَصِفُ أَلْسِنَتُكُمُ ٱلْكَذِبَ هَٰذَا حَلَٰلٌ وَهَٰذَا حَرَامٌ لِّتَفْتَرُوا۟ عَلَى ٱللَّهِ ٱلْكَذِبَ ﴾ اومه واياست تاسي له وجهي دبيانولو دژبوستاسي دروغو لره (بې دليل اوبرهانه داسي) چي دا حلال دى اودا حرام دى دپاره ددې چي

---

(1) التفسير الكبير ٢٠ / ١٢٨

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَفۡتَرُونَ عَلَى ٱللَّهِ ٱلۡكَذِبَ لَا يُفۡلِحُونَ ﴾ بېشکه هغه کسان چي تړي جوړ کړئ له ځانه پر الله دروغ
پر الله دروغ (بهتان) خلاصي به نه مومي (په دنيا او آخرت کي به په مرادونه رسېږي) ﴿ مَتَٰعٞ قَلِيلٞ وَلَهُمۡ
عَذَابٌ أَلِيمٞ ﴾ نفع ده لږ او شته دوی ته عذاب دردناک ﴿ وَعَلَى ٱلَّذِينَ هَادُواْ حَرَّمۡنَا مَا قَصَصۡنَا عَلَيۡكَ مِن قَبۡلُۖ ﴾
او پر هغو کسانو چي يهودان شوي دي حرام کړي دي موږ هغه شيزونه چي بيان کړي وو موږ پر تا باندي
پخواله دي نه (چي په الانعام سورت کي تېر شوا وهغه دغوايانو اوپسونو وازدي او ټول هغه نوک
لرونکي حيوانات وو، دغه تحريم ددوی لپاره عذاب او عقوبت وو) ﴿ وَمَا ظَلَمۡنَٰهُمۡ وَلَٰكِن كَانُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ
يَظۡلِمُونَ ﴾ او موږ پر دوی ظلم نه وو کړی (په تحريم سره) ولکن دوی وو چي په ځانونو خپلو به يې ظلم
کاوو (نو دوی وړ اولائق وګرزېدل لکه چي الله بل ځای فرمايي ﴿ فَبِظُلۡمٖ مِّنَ ٱلَّذِينَ هَادُواْ حَرَّمۡنَا عَلَيۡهِمۡ
طَيِّبَٰتٍ أُحِلَّتۡ لَهُمۡ ﴾ النساء ۱۶۰ ﴿ ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ عَمِلُواْ ٱلسُّوٓءَ بِجَهَٰلَةٖ ﴾ بيا بېشکه رب ستا (چي
دی ای محمده!) هغو کسانو ته چي کړي يې دي بد عملونه په ناپوهي سره ﴿ ثُمَّ تَابُواْ مِنۢ بَعۡدِ ذَٰلِكَ
وَأَصۡلَحُوٓاْ ﴾ بيا توبه وباسي وروسته له کولو دهغه (بدعمل او ښو ئېدلو) ﴿ إِنَّ رَبَّكَ مِنۢ بَعۡدِهَا لَغَفُورٞ
رَّحِيمٌ ﴾ بېشکه رب ستا وروسته له دغي توبې ښخه خامخا لوی مغفرت کونکی دی پر رحم والادی؛ په دې
آيت شريف کي د ټولو خلګو لپار تأنيس (زړه خپلول) او توبې ته رابلل دي چي دروازه يې پرانستي ده
﴿ إِنَّ إِبۡرَٰهِيمَ كَانَ أُمَّةٗ قَانِتٗا لِّلَّهِ ﴾ بېشکه چي ابراهيم پېشوا وو (جامع د ښېګڼو لکه يو جماعت) فرمان
منونکی وو خاص الله لره (ځکه الله خپل خليل غوره کړ) ﴿ حَنِيفٗا وَلَمۡ يَكُ مِنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ﴾ خاص الله لره
حنيف وو (مائل له باطل نه حق د اسلام دين ته) او نه وو له مشرکانو؛ دغه د پخواني لپاره تاکيد دی هسي
نه وو لکه چي يهود او نصارا ګمان کوي چي ابراهيم عليه السلام يهودي او نصراني وو ﴿ شَاكِرٗا
لِّأَنۡعُمِهِۚ ﴾ وو (ابراهيم) شکر کونکی د نعمتونو دالله ﴿ ٱجۡتَبَىٰهُ وَهَدَىٰهُ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ ﴾ غوره کړی وو
الله دغه (ابراهيم) لره په نبوت سره او برابر کړی وو الله دغه (ابراهيم) سمي لياري ته، چي اسلام
او دواحد، احد ذات عبادت کول دي ﴿ وَءَاتَيۡنَٰهُ فِي ٱلدُّنۡيَا حَسَنَةٗۖ ﴾ او ورکړی وو موږ دغه (ابراهيم) ته په
دغه دنيا کي نېکي (ذکر جميل) ﴿ وَإِنَّهُۥ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ لَمِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ او بېشکه دغه ابراهيم په آخرت کي هم
خامخا له صالحانو (دلويو درجاتو له خاوندانو ښخه) دی (چي د ښېکانو په سترو مرتبو کي به وي) ﴿ ثُمَّ
أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ أَنِ ٱتَّبِعۡ مِلَّةَ إِبۡرَٰهِيمَ حَنِيفٗاۖ ﴾ (۱) بيا وحی (حکم) وکړ موږ تا ته (ای محمده داسي) چي

---

(۱) مفسرين وايي چي: عطف د (ثم) په کلمه سره د رسول الله صلی الله عليه وسلم د رتبې تعظيم دی لکه چي يو خل يې دهغه ګرد غوره صفات او مناقب وشمېرل او بيا يې وفرمايل چي تردې ټولو لوړ بل دا دی چي دغه أمي نبي صلی الله عليه وسلم دابراهيم عليه السلام د دين پلوی او دهغه په شريعت منګولي لګونکی دی او دغه د ويار او افتخار لپاره بېخي بس دی

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



متابعت وکړه په توحيد کي د دين (د ابراهيم چي حنيف دی ﴿ وَمَا كَانَ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴾ او نه وو دی له مشرکانو؛ دغه يو بل (تاکيد دی چي هغه يهودي او نصراني نه وو ﴿ إِنَّمَا جُعِلَ ٱلسَّبْتُ عَلَى ٱلَّذِينَ ٱخْتَلَفُوا۟ فِيهِ ﴾ (بېشکه هم دا خبره ده چي مقرر کړی شوی دی (تعظيم د ورځي) د خالي (په عبادت سره) په هغو کسانو چي پکي اختلاف يې کړی وو) يعني د شنبې د ورځي د تعظيم حکم په ابراهيمي ملت کي نه وو بلکه دغه په يهودانو باندي د تغليظ په توګه رامنځ ته شو چي دوی په دين کي اختلاف او د الهي اوامرو سرغړونه کوله نو الله په دغه ورځ کي د کبانو له ښکار کولو څخه منع کړل بيا دوی پکي ښکار کاوو څو چي الله بيزوګان او خنزيران خني جوړ کړل ﴿ وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ فِيمَا كَانُوا۟ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴾ او بېشکه چي رب ستا خامخا حکم به وکړي په مينځ د دوی کي په ورځ د قيامت کي په هغه څه کي چي وو دوی به په هغه کي اختلاف کاوو (نو به الله سزا جزا ورکړي هر مستحق او ورته له ثواب او عذاب څخه) ﴿ ٱدْعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِٱلْحِكْمَةِ وَٱلْمَوْعِظَةِ ٱلْحَسَنَةِ ۖ وَجَـٰدِلْهُم بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ ﴾ بلنه کوه (ای محمده! خلګو ته) لياري د رب ستا ته په حکمت او ښک پند سره (چي پر دوی اغيزه وکړي) او مباحثه کوه له دوی سره په هغې طريقی سره چي ډيره ښه وي، سختي، قهر او غصه مه کوه شدت او قسوت ندی پکار ﴿ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَن ضَلَّ عَن سَبِيلِهِۦ ۖ وَهُوَ أَعْلَمُ بِٱلْمُهْتَدِينَ ﴾ بېشکه چي ستا رب ښه عالم په هغه چا چي ګمراه شوی وي له لاري د الله څخه او دی (الله) ښه عالم په لاره موندونکو (دين ته) نو پر تا لازمه ده چي د حکمت لاره غوره کړې کله چي دوی ته بلنه ورکوې او ورسره بحث او مباحثه کوې پر تا باندي د دوی هدايت ندی ضروري بلکه ته يوازي مبلغ يې حساب پر موږ باندي دی ﴿ وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا۟ بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُم بِهِۦ ۖ ﴾ او که تاسي څوک عذابوئ نو عذاب ورکوئ په مثل د هغه عذاب سره چي تاسي په هغه سره عذاب کړی شوي ياست (زيادت مه کوئ) مفسرين کرام وايي چي: دغه آيت شريف د سيدنا حمزه بن عبدالمطلب په شان کي نازل شوی دی کله چي مشرکانو د أحد په ورځ دده لړمون څيرلی وو نو رسول الله وفرمايل: که الله ما پر دوی برلاسي کړي د دوی اويا تنه به همداسي کړم (ګېډي به يې ورڅيري کړم) ﴿ وَلَئِن صَبَرْتُمْ لَهُوَ خَيْرٌ لِّلصَّـٰبِرِينَ ﴾ او خامخا که صبر وکړ تاسي (قصاص مو پرېښود) ورته بښنه مو وکړه نو خامخا دغه صبر (غوره) خير دی (له انتقامه) صابرانو ته (څکه عقوبت مباح کار دی او پرېښود ل يې افضل دی ﴿ وَٱصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِٱللَّهِ ﴾ او صبر کوه! او ندی صبر ستا مګر (په توفيق او مرسته د) الله سره ﴿ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ ﴾ او مه خپه کېږه په دغو کفارو؛ چي ولي دوی ايمان نه راوړي؟ ﴿ وَلَا تَكُ فِى ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُونَ ﴾ او مه کېږه په زړه تنګي کي له هغو څخه چي دوی مکرونه کوي (په جهل او سفاهت ويناوي کوي دوکې او مکرونه جوړوي) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوا۟

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ وَٱلَّذِينَ هُم مُّحۡسِنُونَ ﴾ بېشکه الله ملګری دی (په معونت اونصرت سره ) له هغو کسانوسره چي پرهېزګاري کوي ؛ اوله چاسره چي الله مل وي بیا هغوی ته دکفارو مکرونه اودوکې تاوان نشي رسولای.

بلاغت:

په دغوآیتونو کي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوي شته په لاندي ډول دي:

۱ - مکنیه استعاره کله چي الله فرمايي: ﴿ فَأَذَٰقَهَا ٱللَّهُ لِبَاسَ ٱلۡجُوعِ وَٱلۡخَوۡفِ ﴾ دلته يې دغه لباس دبي خوندي اونفرت سره مشابه کړ اومشبه به يې حذف دهغې له لوازموڅخه يې چي څکل دي راوړل اودغي ته مکنیه استعاره ویلای شو.

۲ - په دې کلماتو کي چي: ﴿ حَلَٰلٗ .. حَرَامٞ ﴾ دطباق صنعت دی.

۳ - التفات هلته چي الله تعالی فرمايي: ﴿ وَءَاتَيۡنَٰهُ فِي ٱلدُّنۡيَا حَسَنَةٗۖ ﴾ دلته يې له غیاب څخه تکلم ته التفات وفرمايو چي زیاته پاملرنه اوزیات تعظیم اوتفخیم يي ترسره شي.

۴ - پدې کلام کي چي الله تعالی فرمايي: ﴿ كَانَ أُمَّةٗ ﴾ بليغه تشبيه ده يعني هغه په یوازي سرلکه یو اُمت اوټولنه وو ځکه په هغه کي دکمالاتو اوصاف اوخویونه راټول شوي وو کوم چي په خلګو کي تیت اوخپاره وو.

تنبيه:

دالله جل جلاله داقول چي فرمايي: ﴿ وَجَٰدِلۡهُم بِٱلَّتِي هِيَ أَحۡسَنُۚ ﴾ پدې دلالت کوي چي په بحث اومناظره کي بايد انصاف وشي دحق پلوي دي وکړی شي اوله نرمي څخه دي کار واخیستل شي پداسي توګه چي څرګنده شي مقصد دحق اثبات اودباطل مخنیوی دی نه داچي دخان رایه درنه اودبل سپکه وګڼل شي.

دالله جل جلاله په مرسته دالنحل سورت تفسير بشپړشو ولله الحمد والمنة

***

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## دالإسراء سورت مكي اويوسل يوولس آيتونه لري.

### دسورت په وړاندي:

دالاسراء سورت يوله نورو مكي سورتونوڅخه دی اودهغوپه شان دعقيدوي چارو يادونه كوي په تېره بيادادين په بنسټيزو توكو لكه وحدانيت ، رسالت اوبعث غږېږي خوترټولو ځرګند پلوپكي درسول الله صلى الله عليه وسلم شخصيت دی اوهغه ځه چي الله پاک دوی ته دمعجزاتوپه توګه وربښلي دي اوپه رښتنولي يې ګواهي وركوي اللهم صل وسلم عليه.

* سورت داسراء معجزه راوړي هغه چي دالهي تكريم له مظاهرو څخه يومظهروو چي خاتم الانبياء ته يې وركړي اودالله جل جلاله دسترقدرت نښاني وه چي دعجائباتو اوغرائبو جوړونكي دي.ورپسې دبني اسرائيلو يادكوي چي ځرنګه الله ورته ليكلي ووچي دوه ځلي په ځمكه كي خواره واره شي اوداټول ددوی دسرغړوني اوطغيان په سبب وو فرمايي: ﴿ وَقَضَيۡنَآ إِلَىٰ بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ فِي ٱلۡكِتَٰبِ لَتُفۡسِدُنَّ فِي ٱلۡأَرۡضِ مَرَّتَيۡنِ ﴾ ترپايه

* همداسي سورت دكائناتو هغه نښي نښانې راوړي په كومو چي دالله تبارک وتعالى دعظمت ، وحدانيت اوقدرت ځرګندونه كېږي اوهغه نظام ته اشاره كوي چي په خورا دقيقه توګه په شپه او ورځ كي چلېږي اوهيڅكله تغيراوتبديل نه مومي وايې: ﴿ وَجَعَلۡنَا ٱلَّيۡلَ وَٱلنَّهَارَ ءَايَتَيۡنِۖ فَمَحَوۡنَآ ءَايَةَ ٱلَّيۡلِ ﴾.

* ورپسې په اجتماعي اخلاقو ښايسته ادابو اوخويونو خبري كوي اودهغوی لوري ته بلنه كوي څويوه مثالي ټولنه تشكيل شي اوله دې آيته پيل كېږي چي: ﴿ وَقَضَىٰ رَبُّكَ أَلَّا تَعۡبُدُوٓاْ إِلَّآ إِيَّاهُ ﴾ دآيتونوترپايه.

* بياسورت دمشركانو په ګمراهيواوضلالتونو رڼاچوي چي ځرنګه يې الله سبحانه وتعالى ته دمېرمني اوزوی نسبت كاوو اوترټولو عجيبه لاداوه چي دوی پخپله لوني نه خوښولې اوالعلى الكبير ذات ته يې دلوڼونسبت كاووهغه سپېڅلى ذات چي له مثل اوسياله منزه دی اوفرمايي: ﴿ أَفَأَصۡفَىٰكُمۡ رَبُّكُم بِٱلۡبَنِينَ وَٱتَّخَذَ مِنَ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ إِنَٰثًاۚ إِنَّكُمۡ لَتَقُولُونَ قَوۡلًا عَظِيمًا ﴾

* بياله بعث اونشورڅخه غږېږي معاد اوجزاځېږي هغه چي په باب كي يې ډېري مباحثې اومناظرې كېږي دهغه په امكان باندي دلائل راوړي اوبياډقرآن دمعجزې خبره راڅلي چي درسول الله صلى الله عليه وسلم تلپاتي معجزه ده اودمشركانوهغه سرټمبګي بيانوي چي وړانديزيې كاوو له قرآنه پرته بله معجزه ورته راوړي ويالې ورته وبهوي اومكه ورته ګل ګلزار،او باغونه ورته جوړكړي وايې: ﴿ وَقَالُواْ لَن نُّؤۡمِنَ لَكَ حَتَّىٰ تَفۡجُرَ لَنَا مِنَ ٱلۡأَرۡضِ يَنۢبُوعًا ﴾ ترپايه.

* په پای كي سورت دالله جل جلاله له شريک ، زوی اونورو ناوړه صفاتو څخه سپېڅلتيابيانوي اوداسي فرمايي: ﴿ وَقُلِ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ ٱلَّذِي لَمۡ يَتَّخِذۡ وَلَدًا وَلَمۡ يَكُن لَّهُۥ شَرِيكٞ فِي ٱلۡمُلۡكِ وَلَمۡ يَكُن لَّهُۥ وَلِيّٞ مِّنَ ٱلذُّلِّۖ وَكَبِّرۡهُ تَكۡبِيرَۢا ﴾.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



د سورت تسمیه او نومول:

دغه سورت ته ځکه د اسراء سورت وايي چي د دغي څرګندي معجزې یاد پکي راغلی هغه چي الله پاک خپل ګران او نازولی استازی ورباندي په ځانګړې توګه نازولی دی.

الله تعالی فرمايي:

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ سُبْحَٰنَ ٱلَّذِىٓ أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِۦ لَيْلًا مِّنَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ إِلَى ٱلْمَسْجِدِ ٱلْأَقْصَا ٱلَّذِى بَٰرَكْنَا حَوْلَهُۥ لِنُرِيَهُۥ مِنْ
ءَايَٰتِنَآ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْبَصِيرُ (١) وَءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ وَجَعَلْنَٰهُ هُدًى لِّبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ أَلَّا تَتَّخِذُوا۟ مِن دُونِى
وَكِيلًا (٢) ذُرِّيَّةَ مَنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ إِنَّهُۥ كَانَ عَبْدًا شَكُورًا (٣) وَقَضَيْنَآ إِلَىٰ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ فِى ٱلْكِتَٰبِ
لَتُفْسِدُنَّ فِى ٱلْأَرْضِ مَرَّتَيْنِ وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا كَبِيرًا (٤) فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ أُولَىٰهُمَا بَعَثْنَا عَلَيْكُمْ عِبَادًا لَّنَآ أُو۟لِى بَأْسٍ شَدِيدٍ
فَجَاسُوا۟ خِلَٰلَ ٱلدِّيَارِ وَكَانَ وَعْدًا مَّفْعُولًا (٥) ثُمَّ رَدَدْنَا لَكُمُ ٱلْكَرَّةَ عَلَيْهِمْ وَأَمْدَدْنَٰكُم بِأَمْوَٰلٍ وَبَنِينَ
وَجَعَلْنَٰكُمْ أَكْثَرَ نَفِيرًا (٦) إِنْ أَحْسَنتُمْ أَحْسَنتُمْ لِأَنفُسِكُمْ وَإِنْ أَسَأْتُمْ فَلَهَا فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ ٱلْءَاخِرَةِ لِيَسُۥٓـُٔوا۟
وُجُوهَكُمْ وَلِيَدْخُلُوا۟ ٱلْمَسْجِدَ كَمَا دَخَلُوهُ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَلِيُتَبِّرُوا۟ مَا عَلَوْا۟ تَتْبِيرًا (٧) عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَن يَرْحَمَكُمْ
وَإِنْ عُدتُّمْ عُدْنَا وَجَعَلْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَٰفِرِينَ حَصِيرًا (٨) إِنَّ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانَ يَهْدِى لِلَّتِى هِىَ أَقْوَمُ وَيُبَشِّرُ ٱلْمُؤْمِنِينَ ٱلَّذِينَ
يَعْمَلُونَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ أَنَّ لَهُمْ أَجْرًا كَبِيرًا (٩) وَأَنَّ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِٱلْءَاخِرَةِ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا (١٠) وَيَدْعُ ٱلْإِنسَٰنُ
بِٱلشَّرِّ دُعَآءَهُۥ بِٱلْخَيْرِ وَكَانَ ٱلْإِنسَٰنُ عَجُولًا (١١) وَجَعَلْنَا ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ ءَايَتَيْنِ فَمَحَوْنَآ ءَايَةَ ٱلَّيْلِ وَجَعَلْنَآ ءَايَةَ ٱلنَّهَارِ
مُبْصِرَةً لِّتَبْتَغُوا۟ فَضْلًا مِّن رَّبِّكُمْ وَلِتَعْلَمُوا۟ عَدَدَ ٱلسِّنِينَ وَٱلْحِسَابَ وَكُلَّ شَىْءٍ فَصَّلْنَٰهُ تَفْصِيلًا (١٢) وَكُلَّ إِنسَٰنٍ
أَلْزَمْنَٰهُ طَٰٓئِرَهُۥ فِى عُنُقِهِۦ وَنُخْرِجُ لَهُۥ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ كِتَٰبًا يَلْقَىٰهُ مَنشُورًا (١٣) ٱقْرَأْ كِتَٰبَكَ كَفَىٰ بِنَفْسِكَ ٱلْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيبًا
(١٤) مَّنِ ٱهْتَدَىٰ فَإِنَّمَا يَهْتَدِى لِنَفْسِهِۦ وَمَن ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ حَتَّىٰ
نَبْعَثَ رَسُولًا (١٥) وَإِذَآ أَرَدْنَآ أَن نُّهْلِكَ قَرْيَةً أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا فَفَسَقُوا۟ فِيهَا فَحَقَّ عَلَيْهَا ٱلْقَوْلُ فَدَمَّرْنَٰهَا تَدْمِيرًا (١٦) وَكَمْ
أَهْلَكْنَا مِنَ ٱلْقُرُونِ مِنۢ بَعْدِ نُوحٍ وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ بِذُنُوبِ عِبَادِهِۦ خَبِيرًۢا بَصِيرًا (١٧) مَّن كَانَ يُرِيدُ ٱلْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهُۥ فِيهَا مَا
نَشَآءُ لِمَن نُّرِيدُ ثُمَّ جَعَلْنَا لَهُۥ جَهَنَّمَ يَصْلَىٰهَا مَذْمُومًا مَّدْحُورًا (١٨) وَمَنْ أَرَادَ ٱلْءَاخِرَةَ وَسَعَىٰ لَهَا سَعْيَهَا وَهُوَ
مُؤْمِنٌ فَأُو۟لَٰٓئِكَ كَانَ سَعْيُهُم مَّشْكُورًا (١٩) كُلًّا نُّمِدُّ هَٰٓؤُلَآءِ وَهَٰٓؤُلَآءِ مِنْ عَطَآءِ رَبِّكَ وَمَا كَانَ عَطَآءُ رَبِّكَ
مَحْظُورًا (٢٠) ٱنظُرْ كَيْفَ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ وَلَلْءَاخِرَةُ أَكْبَرُ دَرَجَٰتٍ وَأَكْبَرُ تَفْضِيلًا (٢١) لَّا تَجْعَلْ مَعَ ٱللَّهِ
إِلَٰهًا ءَاخَرَ فَتَقْعُدَ مَذْمُومًا مَّخْذُولًا (٢٢) ﴾ الإسراء: ١ - ٢٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



لغتونه:

(سبحان) دتسبيح نوم دى اومعنايې ده چي الله لره له ټولو بديو اونقصانونو پاکي ده اودغه يوازي په الله پسي ځانګړي تسبيح ده (أسرى) دشپې تګ ته وايي (أسرى) او(سرى) دواړه لغتونه راځي (فجاسوا) له (جوس) څخه اخيستل شوي او چي څه لټوي دشپې تللو راتللوته وايي دغه معنازجاج کړي او واحدي وايې چي: جوس ديوځه شي په لټه کي تګ راتګ ته وايي (الكرة) دولت اوغلبې ته وايي (تتبيرا) هلاکت اودله مينځه تللوپه معناده (محونا) ورک موکړل دلغت علماء وايي چي (محو) ديوڅيزاثرله مينځه وړلوته ويل کېږي ويل کېږي (محوته فانمحى) کله چي يې اثريومخ ايزه ورک شي (طائره) ليکلی عمل خيراوشرته طائرويل شوي ځکه چي عربوبه نېک فالي اوشګون په مرغانو نيول کله به چي ښي لوري ته اوياکيڼ لوري ته والوت (مترفيها) (مترف) هغه هوساآرام اوپه عيش عشرت کي لاهو ته وايي چي دغه پراخ نعمت اوعيش په تکبرکي اچولى وي (يصلاها) ورننوزي اوحرارت يې ځکي (مدحورا) شړل شوى اودالله له رحمت نه ليري کړى شوي ته وايي

تفسير:

﴿سُبۡحَٰنَ ٱلَّذِيٓ أَسۡرَىٰ بِعَبۡدِهِۦ لَيۡلٗا مِّنَ ٱلۡمَسۡجِدِ ٱلۡحَرَامِ إِلَى ٱلۡمَسۡجِدِ ٱلۡأَقۡصَا﴾ (پاکي ده هغه ذات لره چي بېولی يې وو بنده خپل (محمد) دشپې (په يوه برخه کي) له مسجدحرام څخه ترمسجداقصی پوري) يعني پاکي ده له هغوځېزونوچي دده له جلال سره نه ښايي هغه ذات چي خپل بنده اوپيغمبريې دشپې په يوه ټوټه کي له مکې مکرمې څخه بيت المقدس ته بوت. بيت المقدس ته مسجداقصی ځکه ويل کېږي چي دمسجدالحرام اودده ترمينځ مسافه ليري ده. مفسرين کرام وايي: اوداچي ويې فرمايل: ﴿لَيۡلٗا﴾ دتنکيرپه صيغه باندي يې راوړه چي داخبره افاده کړي چي داسراء موده لږه اوخورا اوږدې مسافې او واټنونه يې دشپې په يوه برخه کي ووهل هغه چي دځلوښتوشپوليياره وه چي دغه په اعجاز اوقدرت کي وتلی کمال دی نوداسبب ووچي دسورت پيل يې په (سبحان) سره وفرمايو چي دالله په بشپړقدرت اورسېدلي حکمت دلالت وکړي اودالله سپېڅلتيادمخلوقاتو له صفاتوښيي دغه اسراء اومعراج په روح اوبدن دواړو سره په وېښه ترسره شوي اوخواب نه وو ﴿ٱلَّذِي بَٰرَكۡنَا حَوۡلَهُۥ﴾ هغه چي برکت اچولى دی موږ چارچاپېره دهغه (په ډول ډول معنوي اومحسوسي برکتونولکه مېوې، رواني ويالې کوم چي دشام ټاټوبی الله ورباندي په ځانګړي توګه ښېرازه کړی اودانبياوو مېشت ځای د سپېڅلوپرښتتو اوملائکو دراکوزېدلو هيواد وو ﴿لِنُرِيَهُۥ مِنۡ ءَايَٰتِنَآۚ﴾ (دغه بېول دهغه ددې لپاره وو) چي وښيو موږ دغه (محمد) ته ځيني له دلائلو (دقدرت) خپل) يعني ترڅو محمدصلى الله عليه وسلم ته عجيبه ستردلائل ورونښيو او دځمکني اوآسماني ملکوت خبرتيا ورکړو په تحقيق سره چي رسول الله صلى الله عليه وسلم ډېرعجائبات اوښې نښانې وليدلې چي دالله تعالى په قدرت يې دلالت کاوو ﴿إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلۡبَصِيرُ﴾ بېشکه چي دغه (الله) هم دی ښه اورېدونکی (دمحمد صلى الله عليه وسلم دخبرو) ښه ليدونکی (دمحمدصلى الله) دکړو وړو نوځکه يې په دغوکراماتو اومعجزاتو

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ددرناوي په توګه ونازاوو ﴿ وَءَاتَيۡنَا مُوسَى ٱلۡكِتَٰبَ وَجَعَلۡنَٰهُ هُدٗى لِّبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ﴾ اوورکړې وو موږ موسی ته کتاب (تورات) اوګرزولی وو موږ هغه کتاب دبني اسرائیلو لپاره هدایت (چې ددغه په واسطه دوی دکفر او جهل له تورتم څخه دایمان او علم روښنایي ته وباسي ﴿ أَلَّا تَتَّخِذُواْ مِن دُونِي وَكِيلٗا ﴾ چې مه نیسئ تاسي پرته له ماهیڅ کارجوړونکی (متولي) پروردګار. مفسرین کرام وایي چې: کله یې بیت المقدس ذکرکړ اوهغه دځمکې زړه وو اودبني اسرائیلو د اوسېدلو ځای نوددوی یادونه هم په مناسب ځای کي راغله ﴿ ذُرِّيَّةَ مَنۡ حَمَلۡنَا مَعَ نُوحٍۚ ﴾ (ای اولاده دهغه چاچي موږ سپاره کړي وو سره له نوح) یعني ای دمؤمنانو اولاده هغوی چي له نوح سره په بېړۍ کي سپاره وو موږ ستاسي پلرونو ته نجات ورکړی وو له ډوبېدلو څخه نو دالله دانعام شکرپرځای کړئ ! ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ عَبۡدٗا شَكُورٗا ﴾ بېشکه چي نوح ډېرشکرایستونکی بنده وو ؛ په هرحال کي یې دالله حمد ویلو نو تاسي هم دهغه پیروي وکړئ اودرته ښایي چي شاکر واوسئ ! په دغه نداکي تلطف اودالله جل جلاله دنعمت یادونه ده ﴿ وَقَضَيۡنَآ إِلَىٰ بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ فِي ٱلۡكِتَٰبِ ﴾ اوحکم لېږلی وو موږ بني اسرائیلوته په کتاب تورات کي داسي) یعني موږ هغوی ته اخبارکړی اوپه تورات کي موحی ورته رااستولي وه چي ﴿ لَتُفۡسِدُنَّ فِي ٱلۡأَرۡضِ مَرَّتَيۡنِ ﴾ خامخابه فسادوکړئ تاسي هرومرو په ځمکه د (فلسطین اوخواوشا) کي دوه ځلي (١) ابن عباس رضی الله عنهما وایي چي: لومړی فسادیې دزکریاعلیه السلام وژل اودوهم یې دحضرت یحیی علیه السلام قتل وو ﴿ وَلَتَعۡلُنَّ عُلُوّٗا كَبِيرٗا ﴾ (اوخامخاسرکښي به وکړئ تاسي هرومرو په سرکښي لویه سره) یعني دالله په سپېڅلي ځمکه کي به خوراستره سرکښي په ظلم او دښمني سره وکړی اودالله جل جلاله په محارموبه لاس پوري کړی ﴿ فَإِذَا جَآءَ وَعۡدُ أُولَىٰهُمَا بَعَثۡنَا عَلَيۡكُمۡ عِبَادٗا لَّنَآ ﴾ نوکله چي راغله وعده داول (ځل فسادکولو) دهغو دوونه نومسلط کړل موږ پرتاسي باندي بندګان خپل (سرزوري چي له تاسي څخه کسات اوانتقام واخلي) ﴿ أُوْلِي بَأۡسٖ شَدِيدٖ ﴾ (دغه خلګ) خاوندان دسخت جنګ وو. مفسرین کرام وایي: کله چي بني اسرائیلو دالله حرام شیزونه حلال وګڼل او ویني تویول یې پیل کړل نوالله جل جلاله وربانديي بخت نصرچي دبابل باچاوو وګمارو نواویازره کسان بني اسرائیل یې ووژل نژدې ووچي بوتی یې وکاږي اودغه دلومړي فسادکولوپه وخت کي وو ﴿ فَجَاسُواْ خِلَٰلَ ٱلدِّيَارِۚ وَكَانَ وَعۡدٗا مَّفۡعُولٗا ﴾ (نوګرځېدل دوی (دوژلو اوتالاکولو دپاره) په مینځ د ښارونوستاسي کي او وو (داکاریوه) وعده خامخاپوره کېدونکي) یعني دوی ستاسي په لټه کي سبا بېګاه ستاسوپه کورونو اوښارونو کي ګرزېدل څو مو ووژني ، مالونه مولوټ کړي اوداهغه دالله پاک جل جلاله ژمنه وه چي ستاسي څخه یې دکسات اخیستلو لپاره پرېکړه شوي وه اوپدې کي خلاف اوتبدیل راتلونکی نه وو ﴿ ثُمَّ رَدَدۡنَا لَكُمُ

---

(١) دالله حکم په بني اسرائیلو باندي دوه ځله فسادکول دقهراو الزام حکم نه بلکه دغه دالله له لوري دهغه الٰهي علم څخه اخبار ووچي داسي به پېښېږي اوهمداسي وشول

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar net



﴿ ٱلۡكَرَّةَ عَلَيۡهِمۡ ﴾ (بیابیرته وګرزوله موږ تاسي ته غلبه پردوی) یعني وروسته کله چي تاسي توبه ګارشوی اوالله ته مورجوع وکړه نوموتاسي ته دولت دروسپارو اوغلبه مو درکړه ﴿ وَأَمۡدَدۡنَٰكُم بِأَمۡوَٰلٖ وَبَنِينَ ﴾ (اوله تاسي سره مومرسته وکړه په مالونو درکولو او اولادونو باندي) یعني څرنګه چي ستاسي مالونه لوټ شوي وو نوپرېمانه مالونه مودرباندي ولورول اوچي ځامن موپه اسارت نیول شوي وو دهغوی په بدله کي موډېرزامن درکړل ﴿ وَجَعَلۡنَٰكُمۡ أَكۡثَرَ نَفِيرًا ﴾ اووګرزولی موږتاسي زیات له جهته دملاتړلي (لښکره یعني تاسوته موزیات نفوس درکړل چي بیرته موبایللی پرتم پرځای شي اوپه دښمن باندي غالب یاست ددولت جوړولو جوګه شئ ﴿ إِنۡ أَحۡسَنتُمۡ أَحۡسَنتُمۡ لِأَنفُسِكُمۡۖ وَإِنۡ أَسَأۡتُمۡ فَلَهَاۚ ﴾ (که نېکي وکړئ تاسي نونېکي به کوی لپاره دځانونو خپلو اوکه بدي وکړئ دهغې ګټه تاسوته راتلونکي ده الله ته یې هیڅ ګټه هم نه رسي اوکه موچېري بدي کولوته مخه کړه نودهغې تاوان بیاتاسي ته رسېږي الله جل جلاله غني ذات دی نه دبندګانو طاعت ورته ګټه رسوي اونه هم دهغوی ګناوي اوعصیان ورته نقصان رسولای شي. ﴿ فَإِذَا جَآءَ وَعۡدُ ٱلۡأٓخِرَةِ لِيَسُـُٔواْ وُجُوهَكُمۡ ﴾نوکله چي راغله وعده دوروستي انتقام بیامي خپل بندګان درباندي مسلط کړل ) دپاره ددې چي بدکړي مخونه ستاسي )یعني ترڅوموسپکه سپانده کړي اوپه مخونو کي مودغم او خواشیني آثار اوعلامې څرګندي کړي داهغه دوهم افسادستاسي وو چي یحیی علیه السلام مووواژه اودالله محارم موترپښولاندي کړل﴿ وَلِيَدۡخُلُواْ ٱلۡمَسۡجِدَ كَمَا دَخَلُوهُ أَوَّلَ مَرَّةٖ ﴾اولپاره ددې چي ننوزي دبیت المقدس مسجدته لکه چي په اول ځل ننوتلي وو(اوهغه خراب اوتباه کړي لکه لومړی وار) ﴿ وَلِيُتَبِّرُواْ مَا عَلَوۡاْ تَتۡبِيرًا ﴾اولپاره ددې چي هلاک کړي هرهغه (ځای اوشی) چي دوی (پرې) غالب شوي وو په ډېرسخت خرابولواوهلاکولوسره ﴿ عَسَىٰ رَبُّكُمۡ أَن يَرۡحَمَكُمۡۚ ﴾ نژدې دی چي ستاسي رب پرتاسي رحم وکړي (عفوه درته وکړي که تاسي توبه ګارشئ اودغه دالله له لوري له دوی سره دعذاب پورته کولو وعده ده (په یاد دي وي چي) عسی دالله له لوري واجب معنالري یعني لازمًابه الله درباندي ورحمېږي ﴿ وَإِنۡ عُدتُّمۡ عُدۡنَاۘ ﴾اوکه تاسي بیرته (فساد ته) وګرزېدی نوموږبه هم راوګرزو(ستاسي عقوبت ته انتقام به درڅخه واخلو(۱) ﴿ وَجَعَلۡنَا جَهَنَّمَ لِلۡكَٰفِرِينَ حَصِيرًا ﴾ اوګرځولی دی موږ دوزخ دکافرانولپاره بندیخانه چي هیڅکله به دوی له هغه څخه دوتلو توان ونه مومي وروسته بیاالله تعالی دقرآنکریم دمزیت په باب ارشاد فرمایي چي داهسي کتاب دی چي تر ټولو آسماني کتابونوپورته

(۱) په الظلال تفسیرکي لیکي: چي همداسي دوی فساد کولوته راوګرزېدل اوبیا الله جل جلاله مسلمانانورباندي مسلط کړل اوله عربي جزیري څخه یې وشړل اوبیایې فساد پیل کړ الله نوربندګان ورباندي مسلط کړل آن تردې چي په معاصردورکي لوی الله (هتلر) وریاندي وګمارو اونن یې بیافساد کولوته ملاتړلي چي داسرائیلوپه بنه کي دي ارو مروبه الله تعالی داسي څوک وریاندي مسلط کوي چي سخت عذاب وروڅکي اودادالله وعده اوسنت( طریقه) ده چي هیڅکله خلاف نه مني اوهرسبادکتونکولپاره نژدې دی.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



دی ﴿ إِنَّ هَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانَ يَهۡدِي لِلَّتِي هِيَ أَقۡوَمُ ﴾ بېشکه دغه (عظیم) قرآن لاربنوونه کوي (نېکانوته) هغه لاره چي ډېره برابره، سمه اوصافه روښانه) ده ﴿ وَيُبَشِّرُ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ٱلَّذِينَ يَعۡمَلُونَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ أَنَّ لَهُمۡ أَجۡرٗا كَبِيرٗا ﴾ اوزېری ورکوي مؤمنانوته هغه (مؤمنان) چي کوي دوی ښه عملونه (په غوښتنه ددغه قرآن) دستراجر (په جنات النعیم کي) ﴿ وَأَنَّ ٱلَّذِينَ لَا يُؤۡمِنُونَ بِٱلۡأٓخِرَةِ أَعۡتَدۡنَا لَهُمۡ عَذَابًا أَلِيمٗا ﴾ اوبېشکه هغه کسان چي ایمان نه راوړي په آخرت باندي تیارکړی دی موږ دوی ته دردناک عذاب (په دوزخ کي) دلته آیت شریف ترغیب اوترهیب یوځای رانغښتی دی ﴿ وَيَدۡعُ ٱلۡإِنسَٰنُ بِٱلشَّرِّ دُعَآءَهُۥ بِٱلۡخَيۡرِۖ ﴾ اودعاکوي انسان دشر (په خپل ځان اواولادد خفګان په وخت کي) په مثل (دغوښتلو) دخیر دده؛ نوکه چیری الله دغه ښیرا هم ددعا په شان منلای دوی به هلاک شوي وو. ابن عباس رضی الله عنه وایي: چي دغه دسړي ښېراده چي دخفګان په وخت کي ځان ،اولادته کوي چي (الله دي هلاک کړه الله دي تباه کړه !) ([1]) ﴿ وَكَانَ ٱلۡإِنسَٰنُ عَجُولٗا ﴾ اودی انسان تلوارکونکی (په غوښتلو دخیراوشرکي) یعني دانسان په خټه اوفطرت کي تلوارانغښل شوي ځکه نوناپامه دعا اوښېراکوي دیوځیزعاقبت اوانجام ته سوچ نکوي وروسته بیاالله تبارک وتعالی په کائناتو کي دالله دوحدانیت روښانه دلائل راوړي چي دالله جل جلاله په بشپړقدرت دلالت کوي فرمایي: ﴿ وَجَعَلۡنَا ٱلَّيۡلَ وَٱلنَّهَارَ ءَايَتَيۡنِۖ فَمَحَوۡنَآ ءَايَةَ ٱلَّيۡلِ ﴾ اوګرځولي موده شپه اوورځ دوه دلیله (دخپل بشپړ قدرت) نومحوه کړه موږ علامه دشپې (چي توره تیاره موجوره کړه چي سکون آرام پکي وکړی ﴿ وَجَعَلۡنَآ ءَايَةَ ٱلنَّهَارِ مُبۡصِرَةٗ لِّتَبۡتَغُواْ فَضۡلٗا مِّن رَّبِّكُمۡ ﴾ او اوګرزوله موږ علامه دورځي روښانه (چي هرشی پکي لیدل کېږي ) لپاره ددې چي طلب کړی تاسي (په رڼادورځي کي) فضل له خپله ربه ﴿ وَلِتَعۡلَمُواْ عَدَدَ ٱلسِّنِينَ وَٱلۡحِسَابَۚ ﴾ (اولپاره ددې ) چي معلوم کړی تاسي (په دغه اختلاف سره) شماردکلونو اوحساب (د اوقاتو ) یعني ددې لپاره چي دورځو ، میاشتواوکلونوحساب درباندي وپېژنی اوهمدغه دورځي وشپې له ادلون بدلون ځخه پیداکېږي شپه دراحت اوسکون لپاره اوورځ دکسب اوکارلپاره چي ستاسي دمعاش موندلو ذریعه شي ﴿ وَكُلَّ شَيۡءٖ فَصَّلۡنَٰهُ تَفۡصِيلٗا ﴾ (اوهرځیز( چي تاسي ورته اړیاست) موږ بیان کړي دي په څرګندبیان سره) یعني ستاسي هره دیني اودنیوي چاره موږ په خوراښه او څرګندډول بیان کړیده اودهغه موجوداتو هیڅ یوه چاره تخمین اواټکل ته نه دی پرېښو .ل شوي بلکه په ډېرښکلي انداز اوتقدیراومحکم تدبیرسره سنجول شوي ده ﴿ وَكُلَّ إِنسَٰنٍ أَلۡزَمۡنَٰهُ طَٰٓئِرَهُۥ فِي عُنُقِهِۦۖ ﴾ (اوهرانسان لازم کړی دی موږ له ده سره عمل دده په غاړه دده کي) یعني له هرانسان سره خپل عمل دلاري مل دی اوداسي ورسره لازم دی لکه غاړه کی له غاړي سره چي هیڅ ورځخه بېلېدونکي نه وي ﴿ وَنُخۡرِجُ لَهُۥ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ كِتَٰبٗا يَلۡقَىٰهُ مَنشُورًا ﴾ (اوراوبه باسوده ته په ورځ دقیامت کي یوکتاب (لیکل شوی) چي یوځای به شي وبه ویني هغه غوړېدلی ) یعني په آخرت کي به دده عملنامه ورته غوړېدلي راڅرګنده

([1]) القرطبي ٢٢١٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کړو چي نېکي اوبدي پکي څرګنده ووینې نه به يې پټولای شي اونه به هم څني سترګي الونیاکولای شي، ورته وبه ويل شي: ﴿ ٱقْرَأْ كِتَٰبَكَ كَفَىٰ بِنَفْسِكَ ٱلْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيبًا ﴾ ولوله (دا) کتاب دنا (عملنامه) کافي دی هم داځان ستانن ورځ پرتاباندي حساب کونکی (نه دشاهدضرورت شته اونه د محتسب اړتیا)

﴿ مَّنِ ٱهْتَدَىٰ فَإِنَّمَا يَهْتَدِى لِنَفْسِهِۦ ۖ وَمَن ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ۚ ﴾ هرچاچي سمه صافه لاره ونیوه نوبېشکه همداخبره ده چي سمېږي دی په لاري لپاره د(ګټي) دځان خپل اوهرڅوک چي ګمراه شو پس بېشکه همداخبره ده چي ګمراه کېږي په (نقصان) دځان خپل ﴿ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ﴾ اونه اخلي هیڅ اخیستونکی باردګناه دبل چا(بلکه هرڅوک اوخپل پېټی يې) ﴿ وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ حَتَّىٰ نَبْعَثَ رَسُولًا ﴾ اونه یوموږ عذاب ورکونکي ترهغوپوري چي ولېږو کوم استازی (چي دتوحیداوشریعت لاره ورته بیان کړي پندورکړي اوله عذاب څخه يې ووېروي نوبه دلیل ورباندي ودرېږي ) ﴿ وَإِذَآ أَرَدْنَآ أَن نُّهْلِكَ قَرْيَةً أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا فَفَسَقُوا۟ فِيهَا ﴾ اوکله چي موږ اراده وفرمايو ددې چي يو کلی (ښار) هلاک کړو نوامروکړو غټانو دهغه (ښار) ته په (طاعت دالله) نودوی په هغه کي فسق وکړي (فجور) غوره کړي ﴿ فَحَقَّ عَلَيْهَا ٱلْقَوْلُ فَدَمَّرْنَٰهَا تَدْمِيرًا ﴾ نوثابت شي پردوی هغه خبره (دعذاب) نوهلاکوو موږ دوی په هلاکولو سختو سره (او وراتوویې). ابن عباس رضی الله عنه وايي: چي د﴿ أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا فَفَسَقُوا۟ فِيهَا ﴾ معناداچي موږ د دوی اشرار ورباندي مسلط کوو ترڅو فسق اوفجور عصیان وکړي اوچي کله داهسي وکړي نوالله يې په عذاب هلاک کړي (١)﴿ وَكَمْ أَهْلَكْنَا مِنَ ٱلْقُرُونِ مِنۢ بَعْدِ نُوحٍ ﴾ اوډېر هلاک کړي دي موږله (اهل د قرنونوپس له نوح نه ) يعني ډېرهغه کسان چي دخپلو انبیاوو تکذيب يې کاوو له نوح علیه السلام نه وروسته موږ هلاک کړي دي لکه عادیان، ثمودیان اوفرعون. ابن کثیروايي چي: آیت شریف دقریشي کفارو لپاره اخطاردی اومعناداچي ای دنبي مکذبینو تاسي په الله ترهغه چاګران نه یاست چي دانبیاوو تکذيب يې کاووا وموږ هلاک کړل تاسو دانبیاوو ترټولو د اشرف نبي تکذيب ته ملاتړلې ده نو ستاسو هلاکت اوعذاب حتمي دی (٢)﴿ وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ بِذُنُوبِ عِبَادِهِۦ خَبِيرًۢا بَصِيرًا ﴾ او کافي دی رب ستاپه ګناهونودبندګانو خپلوښه خبردارښه لېدونکی) یعني ای محمده! ستارب کافي دی په څارنه د اعمالودبندګانو چي پټ اوښکاره يې ورته معلوم دي اوپه هغوبه جزاورکوي ﴿ مَّن كَانَ يُرِيدُ ٱلْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهُۥ فِيهَا مَا نَشَآءُ لِمَن نُّرِيدُ ﴾ هرڅوک چي غواړي (په عمل خپل سره) فقط دغه دنیا نوپه تلوارا به ور کړو موږ ده ته په دې دنیاکي هومره چي اراده وفرمايو دهغه لپاره (چي څومره نعمت په تلوار ورکړو نه تول هغه چي دی يې غواړي ) ﴿ ثُمَّ جَعَلْنَا لَهُۥ جَهَنَّمَ يَصْلَىٰهَا مَذْمُومًا مَّدْحُورًا ﴾ بیابه وګرزوو موږ ده ته

(١) المختصر٢/٣٧١

(٢) المختصر٢/٣٧١

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



(عذاب د ) جهنم (په آخرت کي) چي ننوزي به په هغه (دوزخ) کي ملامت کړی شوی شړلی شوی (له رحمته دالله نه) ﴿ وَمَنۡ أَرَادَ ٱلۡأٓخِرَةَ وَسَعَىٰ لَهَا سَعۡيَهَا وَهُوَ مُؤۡمِنٞ ﴾ اوهرڅوک چي آخرت (جنت) غواړي اوزیارباسي هغه ته سعی لائقه (په طاعت کولو دالله حال داچي دی (خالص) مؤمن هم دی (په صادق ایمان سره) ﴿ فَأُوْلَٰٓئِكَ كَانَ سَعۡيُهُم مَّشۡكُورٗا ﴾ (نودغه کسان ده سعی ددوی مقبوله (په نزددالله تعالی کي) یعني دغه کسان چي پورتني سپېڅلي صفتونه لري لکه اخلاص، صالح اعمال اوربښتونی ایمان نوددوی کړه وړه دالله په دربارکي منل شوي اوثواب به بې ورکولی شي ﴿ كُلّٗا نُّمِدُّ هَٰٓؤُلَآءِ وَهَٰٓؤُلَآءِ مِنۡ عَطَآءِ رَبِّكَ ﴾ هریوله دغو(غوښتونکوددنیااوعقبا )سره مرسته کوومونږدغي ټولي سره (چي طالبان ددنیادي) اوددغه دوهم ټولي سره (چي دعقباء طالبان دي) له ورکولودرب ستا(په فضل اواحسان سره نو مؤمن اوکافر، طاعت کونکي اوګنهکار دواړوته زمونږ له پراخي ورکړي اوعطاء څخه ونډه شته ﴿ وَمَا كَانَ عَطَآءُ رَبِّكَ مَحۡظُورًا ﴾ اوندی ورکول درب ستامنع کړی شوی له هیچانه ﴿ ٱنظُرۡ كَيۡفَ فَضَّلۡنَا بَعۡضَهُمۡ عَلَىٰ بَعۡضٖۚ ﴾ وګوره چي څرنګه فضیلت ورکړی ( غوره کړي ) دي مونږ ځیني ددوی ته پرځینو نورو (په رزق اواخلاقوکي)په دنیاکي دغه غني دی اودابل فقیر،دغه شریف دی اودابل حقیر ﴿ وَلَلۡأٓخِرَةُ أَكۡبَرُ دَرَجَٰتٖ وَأَكۡبَرُ تَفۡضِيلٗا ﴾ اوخامخاآخرت ډېرلوی دی له جهته دمرتبو اوډېرلوی ستر تفاوت په آخرت کي دی تردغه دنیوي تفاوت څکه هلته داسي شیان شته چي نه غوږونو اورېدلي ، نه سترګو لیدلی، نه د چابشرپه زړه کي تېرشوي دي ﴿ لَّا تَجۡعَلۡ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ ﴾ مه نیسه (ای بنده) له الله سره بل معبود (شریک چي عبادت یې کوې ﴿ فَتَقۡعُدَ مَذۡمُومٗا مَّخۡذُولٗا ﴾ نو(عاجز) به کېنې (په نزد دالله ) ملامت کړی شوی بې ملګري (بې برخي له خیره)چي هیڅوک به دي مرستندوی نه وي.

بلاغت:

پدې آیتونو کي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوي شته لنډیزیې دادی:

۱ - براعت استهلال چي فرمایي: ﴿ سُبۡحَٰنَ ٱلَّذِىٓ أَسۡرَىٰ بِعَبۡدِهِۦ ﴾ څرنګه چي دغه یو خارق العادة چاره وه نو یې پیل پداسي لفظ وکړچي دالله په بشپړقدرت او له نقص څخه په پاکي دلالت وکړي

۲ - پدې کلام کي چي وایي ﴿ بِعَبۡدِهِۦ ﴾ دغه اضافت دتکریم اوتشریف لپاره دی.

۳ - اشتقاقي جناس لکه په ﴿ وَلَتَعۡلُنَّ عُلُوّٗا كَبِيرٗا ﴾ او ﴿ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٞ وِزۡرَ أُخۡرَىٰ ﴾ کي چي راغلی.

۴ - دطباق صنعت چي فرمایي ﴿ أَحۡسَنتُمۡ .... أَسَأۡتُمۡ ﴾ او ﴿ ضَلَّ .... ٱهۡتَدَىٰ ﴾ کي.

۵ - پدې کلام کي چي الله تعالی فرمایي ﴿ ٱقۡرَأۡ كِتَٰبَكَ ﴾ دلته ایجاز بالحذف راغلی یعني داچي وبه ویل شي ده لره دقیامت په ورځ چي (اقرأکتابک ) اولکه هلته چي فرمایي ﴿ أَمَرۡنَا مُتۡرَفِيهَا فَفَسَقُواْ ﴾ یعني مونږ هغوی ته دطاعت امروکړ خوهغوی عصیان وکړ اوفسق یې پیل کړ.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



۶- عقلي مجازچي الله فرمايي ﴿ءَايَةَ ٱلنَّهَارِ مُبۡصِرَةٗ﴾ ځکه چي ورځ خوپخپله نه ويني بلکه نورځه په هغه کي ليدل کېږي نوګواکي نسبت ديوځيززمان ته وشوچي دغه مجازدی.

۷- په دې کلام کي چي راځي ﴿طَٰٓئِرَهُۥ فِي عُنُقِهِۦ﴾ دله يې طائردانسان له عمل ځخه استعاره کړی اوځرنګه چي عربوبه په مرغانوشاګوم اوبدفالي نيوله نويې خيراوشردواړه په مرغه باندي استعاره راوړل

**لطيفه:**

دالله تعالى حکمت په اسراء کي چي له بيت الحرام ځخه يې بيت المقدس ته خپل بنده پيغمبر بوتلل داوو چي هلته دانبياوو ارواحان غونډ وو اوهلته به الهي وحی په انبياوو رانازلېده اوځرنګه چي دغه دتشريف اوتکريم يون (سفر) وو نوالله وغوښتل چي انبياء عليهم السلام هم ددغه نبي په ليدلو مشرف کړي هلته پيغمبرعليه السلام پردوی باندي لمونځ وګوزارل امامت يې پخپله رسول الله کاوو صلوات الله وسلامه عليهم اجمعين

**تنبيه:**

الله پاک خپل پيغمبردلته په عبوديت وستايه چي: ﴿أَسۡرَىٰ بِعَبۡدِهِۦ﴾ ځکه دغه دمقاماتو ترټولو لوړمقام دی لکه چي دوحی په هکله يې هم وفرمايل ﴿فَأَوۡحَىٰٓ إِلَىٰ عَبۡدِهِۦ مَآ أَوۡحَىٰ﴾ اوهم داسي ددعوت اوبلني په وخت کي يې هم پدغه صفت ستايي چي: ﴿وَأَنَّهُۥ لَمَّا قَامَ عَبۡدُ ٱللَّهِ﴾.

***

الله تعالى فرمايي:

﴿ ۞ وَقَضَىٰ رَبُّكَ أَلَّا تَعۡبُدُوٓاْ إِلَّآ إِيَّاهُ وَبِٱلۡوَٰلِدَيۡنِ إِحۡسَٰنًاۚ إِمَّا يَبۡلُغَنَّ عِندَكَ ٱلۡكِبَرَ أَحَدُهُمَآ أَوۡ كِلَاهُمَا فَلَا
تَقُل لَّهُمَآ أُفّٖ وَلَا تَنۡهَرۡهُمَا وَقُل لَّهُمَا قَوۡلٗا كَرِيمٗا (۲۳) وَٱخۡفِضۡ لَهُمَا جَنَاحَ ٱلذُّلِّ مِنَ ٱلرَّحۡمَةِ وَقُل رَّبِّ
ٱرۡحَمۡهُمَا كَمَا رَبَّيَانِي صَغِيرٗا (۲۴) رَّبُّكُمۡ أَعۡلَمُ بِمَا فِي نُفُوسِكُمۡۚ إِن تَكُونُواْ صَٰلِحِينَ فَإِنَّهُۥ كَانَ لِلۡأَوَّٰبِينَ غَفُورٗا (۲۵)
وَءَاتِ ذَا ٱلۡقُرۡبَىٰ حَقَّهُۥ وَٱلۡمِسۡكِينَ وَٱبۡنَ ٱلسَّبِيلِ وَلَا تُبَذِّرۡ تَبۡذِيرًا (۲۶) إِنَّ ٱلۡمُبَذِّرِينَ كَانُوٓاْ إِخۡوَٰنَ ٱلشَّيَٰطِينِۖ وَكَانَ
ٱلشَّيۡطَٰنُ لِرَبِّهِۦ كَفُورٗا (۲۷) وَإِمَّا تُعۡرِضَنَّ عَنۡهُمُ ٱبۡتِغَآءَ رَحۡمَةٖ مِّن رَّبِّكَ تَرۡجُوهَا فَقُل لَّهُمۡ قَوۡلٗا مَّيۡسُورٗا (۲۸) وَلَا تَجۡعَلۡ
يَدَكَ مَغۡلُولَةً إِلَىٰ عُنُقِكَ وَلَا تَبۡسُطۡهَا كُلَّ ٱلۡبَسۡطِ فَتَقۡعُدَ مَلُومٗا مَّحۡسُورًا (۲۹) إِنَّ رَبَّكَ يَبۡسُطُ ٱلرِّزۡقَ لِمَن يَشَآءُ وَيَقۡدِرُۚ
إِنَّهُۥ كَانَ بِعِبَادِهِۦ خَبِيرَۢا بَصِيرٗا (۳۰) وَلَا تَقۡتُلُوٓاْ أَوۡلَٰدَكُمۡ خَشۡيَةَ إِمۡلَٰقٖۖ نَّحۡنُ نَرۡزُقُهُمۡ وَإِيَّاكُمۡۚ إِنَّ قَتۡلَهُمۡ كَانَ خِطۡـٔٗا كَبِيرٗا
(۳۱) وَلَا تَقۡرَبُواْ ٱلزِّنَىٰٓۖ إِنَّهُۥ كَانَ فَٰحِشَةٗ وَسَآءَ سَبِيلٗا (۳۲) وَلَا تَقۡتُلُواْ ٱلنَّفۡسَ ٱلَّتِي حَرَّمَ ٱللَّهُ إِلَّا بِٱلۡحَقِّۗ وَمَن قُتِلَ
مَظۡلُومٗا فَقَدۡ جَعَلۡنَا لِوَلِيِّهِۦ سُلۡطَٰنٗا فَلَا يُسۡرِف فِّي ٱلۡقَتۡلِۖ إِنَّهُۥ كَانَ مَنصُورٗا (۳۳) وَلَا تَقۡرَبُواْ مَالَ ٱلۡيَتِيمِ إِلَّا بِٱلَّتِي
هِيَ أَحۡسَنُ حَتَّىٰ يَبۡلُغَ أَشُدَّهُۥۚ وَأَوۡفُواْ بِٱلۡعَهۡدِۖ إِنَّ ٱلۡعَهۡدَ كَانَ مَسۡـُٔولٗا (۳۴) وَأَوۡفُواْ ٱلۡكَيۡلَ إِذَا كِلۡتُمۡ وَزِنُواْ بِٱلۡقِسۡطَاسِ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

ٱلْمُسْتَقِيمِ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا (٣٥) وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ ۚ إِنَّ ٱلسَّمْعَ وَٱلْبَصَرَ وَٱلْفُؤَادَ كُلُّ أُو۟لَٰٓئِكَ كَانَ
عَنْهُ مَسْـُٔولًا (٣٦) وَلَا تَمْشِ فِى ٱلْأَرْضِ مَرَحًا ۖ إِنَّكَ لَن تَخْرِقَ ٱلْأَرْضَ وَلَن تَبْلُغَ ٱلْجِبَالَ طُولًا (٣٧) كُلُّ ذَٰلِكَ كَانَ
سَيِّئُهُۥ عِندَ رَبِّكَ مَكْرُوهًا (٣٨) ذَٰلِكَ مِمَّآ أَوْحَىٰٓ إِلَيْكَ رَبُّكَ مِنَ ٱلْحِكْمَةِ ۗ وَلَا تَجْعَلْ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ فَتُلْقَىٰ فِى جَهَنَّمَ مَلُومًا
مَّدْحُورًا (٣٩) أَفَأَصْفَىٰكُمْ رَبُّكُم بِٱلْبَنِينَ وَٱتَّخَذَ مِنَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنَٰثًا ۚ إِنَّكُمْ لَتَقُولُونَ قَوْلًا عَظِيمًا (٤٠) وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِى هَٰذَا
ٱلْقُرْءَانِ لِيَذَّكَّرُوا۟ وَمَا يَزِيدُهُمْ إِلَّا نُفُورًا (٤١) قُل لَّوْ كَانَ مَعَهُۥٓ ءَالِهَةٌ كَمَا يَقُولُونَ إِذًا لَّٱبْتَغَوْا۟ إِلَىٰ ذِى ٱلْعَرْشِ سَبِيلًا (٤٢) سُبْحَٰنَهُۥ
وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يَقُولُونَ عُلُوًّا كَبِيرًا (٤٣) تُسَبِّحُ لَهُ ٱلسَّمَٰوَٰتُ ٱلسَّبْعُ وَٱلْأَرْضُ وَمَن فِيهِنَّ ۚ وَإِن مِّن شَىْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِۦ وَلَٰكِن لَّا
تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ ۗ إِنَّهُۥ كَانَ حَلِيمًا غَفُورًا (٤٤) وَإِذَا قَرَأْتَ ٱلْقُرْءَانَ جَعَلْنَا بَيْنَكَ وَبَيْنَ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِٱلْءَاخِرَةِ حِجَابًا
مَّسْتُورًا (٤٥) وَجَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَن يَفْقَهُوهُ وَفِىٓ ءَاذَانِهِمْ وَقْرًا ۚ وَإِذَا ذَكَرْتَ رَبَّكَ فِى ٱلْقُرْءَانِ وَحْدَهُۥ وَلَّوْا۟ عَلَىٰٓ أَدْبَٰرِهِمْ
نُفُورًا (٤٦) نَّحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَسْتَمِعُونَ بِهِۦٓ إِذْ يَسْتَمِعُونَ إِلَيْكَ وَإِذْ هُمْ نَجْوَىٰٓ إِذْ يَقُولُ ٱلظَّٰلِمُونَ إِن تَتَّبِعُونَ إِلَّا رَجُلًا مَّسْحُورًا
(٤٧) ٱنظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوا۟ لَكَ ٱلْأَمْثَالَ فَضَلُّوا۟ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ سَبِيلًا (٤٨) ﴾ الإسراء: ٢٣ – ٤٨

## مناسبت او تړاو:

څرنګه چې الله تعالى ايمان او صالح اعمال دابدي نېکمرغي لپاره بنسټ وبلل او د مؤمنانو حال يې بيان کړ چې دوى په خپلو اعمالو د آخرت پانګه برابروي نو دلته يې د اوامرو او نواهيو يوه لړۍ راوړه چې د بختوري او فاضلې ټولنې تاداو ورباندې جوړېږي او ورپسې بيا الله تعالى د مشرکانو درېځ چې د دغه ستر قرآن تکذيب يې کاو و بيان کړ.

## لغتونه:

(اف) د زجر کلمه ده ابن الاعرابي وايي چې ( اف) د تکليف کلمه ده او اصل يې له هغه صوت څخه اخيستل شوي چې کله د چا په جامو باندې خاورې ايرې توى شي نو هغه پوکي او په دغه آواز سره چې (اوف) وي پاکوي يې او بيا عام شو د هر ناخوښه کار په وخت کې په همدې کلمه تعبير کېږي (تنهرهما) نهر زجر او غلظت ته وايي ( الاوابين) د (اوّاب) جمع او د هر توبه ګار ته وايه شي له (أوب) څخه اخيستل شوي چې د رجوع په معناده (محسورا) منقطع او له تصرف او نفقې څخه پرېکړي ته وايي عرب هغه اوښ ته چې له تللو و درېږي (محسور) وايي نو هغه څوک چې خپل ټول مال ، دولت خرڅ او ولګوي داسي دى لکه هغه چې نورېې توان ناتوانه او له تللو څخه ودرېږي (١)(املاق) فقر او نېستي ته وايي (خطا) ازهري وايي چې (خطئ يخطئ خِطْأً) هلته راځي چې په قصدي توګه خطاکار و کړي او(أخطأ) بيا هغه ته وايي چې په سهو سره پرته له قصده څني وشي (١) (القسطاس) تله ميزان له (قسط) څخه اخيستل شوي چې هغه عدل ته ته وايي (تقف) د پيروي په معناده اصل يې له بهتان او قذف څخه دى (مرحا) زياتي خوښي ته وايي او دلته

---

(١) القرطبي ١٠. ٢٥٢.

Bawar.net



مرادخني تکبراوخیال کول دي (صرفنا) موږبیان کړي (أکنة) دکنان جمع اوهغه برغولي (سرپوښ) ته وایې (وقرا) کوڼ والی اودغوږونو دروندوالی دی.

تفسیر:

﴿ وَقَضَىٰ رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوٓا۟ إِلَّآ إِيَّاهُ ﴾اوستارب حکم فرمایلی دی چي عبادت مکوئ تاسي (دبل هیچا) مګریوازي دهم دغه (الله) مجاهدوایې چي د(قضیٰ) معنا داچي الله دخپل عبادت اوتوحید توصیه کړي ده ﴿ وَبِٱلْوَٰلِدَيْنِ إِحْسَٰنًا ﴾اواحسان کوئ له والدینو (مورواوپلار)سره په احسان کولو سره؛ مفسرین کرام وایې چي: الله تعالی دموراوپلار احسان له خپل عبادت سره جوخت پدې راوړچي ددوی حق په اولاد خورا ستردی ځکه دوی دهغه ظاهري ژوند اووجودسبب دي اوځرنګه چي دموراو پلار احسان له اولادسره یومخ وروستي سرحدته رسېدلی نوځکه پردوی هم واجب شوچي له مور او پلارسره همداسي احسان وکړي ﴿ إِمَّا يَبْلُغَنَّ عِندَكَ ٱلْكِبَرَ أَحَدُهُمَآ أَوْ كِلَاهُمَا ﴾اوکه چېري هرومرو ورسېدو تاسره (حدود) دزوړوالي ته یوددوی دواړو اویادواړه ددوی ؛ اوددوی دزوړوالي حالت یې ځکه ذکرکړچي هغوی پدې وخت خورازیات اړوي چي ورسره احسان وشي اوحقونه یې ورپه خاې شي چي دوی ناتوانه اوضعیفان دي ﴿ فَلَا تَقُل لَّهُمَآ أُفٍّ وَلَا تَنْهَرْهُمَا ﴾اومه وایه ته دوی دواړوته (کلمه د ) أف (بده ناکاره خبره مه ورباندي اوروه که څه هم دأف کلمه وي) اومه رټه دوی دواړه (چي سختي خبري ورته کوې کله چي ستاناخوښه ورڅخه ووینې ﴿ وَقُل لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيمًا ﴾اووایه دوی دواړو والدینو ته خبره پسته (په ادب، وقار اوتعظیم سره) ﴿ وَٱخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ ٱلذُّلِّ مِنَ ٱلرَّحْمَةِ ﴾اوښکته کړه لپاره ددوی دواړووالدینو وزر دتواضع (عاجزي) له مهرباني څخه ﴿ وَقُل رَّبِّ ٱرْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيَانِى صَغِيرًا ﴾ اووایه ای زمارېه مهرباني( ښښنه) وکړه دوی دواړوته لکه چي زماپالنه یې کړي ده په هغه حال کي چي زه کمکی وم) یعني دوی دواړوته درحمت دعاګاني کوه اووایه چي ای زمارېه زماپه مور اوپلار باندي پخپل پراخ رحمت سره ورحمېږه لکه څرنګه چي دوی زماپه وړوکتوب کي پالنه کړي وه ﴿ رَّبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا فِى نُفُوسِكُمْ ﴾ستاسي رب ښه عالم دی په هغه څه چي په نفسونو (زړونو) ستاسي کي دي (له ارادې دنېکي اویاله آزاراوعقوق څخه) ﴿ إِن تَكُونُوا۟ صَٰلِحِينَ فَإِنَّهُۥ كَانَ لِلْأَوَّٰبِينَ غَفُورًا ﴾که یئ تاسي نېکان (دصلاح، سمون اونېکي قصدلرئ عقوق اوفساد موپه اراده کي نه وي ) نوبېشکه الله د توبه ګاره خلګولپاره ډېرمغفرت کونکی دی (هغه چي کله هم خطاشي نوبیاسمدستي الله ته راستانه شي اوبخښنه غني وغواړي . امام رازي وایې چي : مقصد له دې آیت شریف څخه دادئ چي لومړی آیت دموراوپلار دتعظیم کولو په وجوب دلالت وکړ اوکله ناکله زامن د موراوپلار دتعظیم سره منافي کوم عمل ترسره کړي خوداهسي تېروتنه وي اودآزار اوعقوق قصد یې نلري یوازي دبشري طبیعت له مخه بې احترامي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ځني صادره شي نودغه دبښني ورده (۱) اوپه مناسب د احسان دموراوپلار الله تعالی دخپلوانو
بېوزلانواومسکینانودحقوقوپه هکله هم فرمايي: ﴿ وَءَاتِ ذَا ٱلۡقُرۡبَىٰ حَقَّهُۥ وَٱلۡمِسۡكِينَ وَٱبۡنَ ٱلسَّبِيلِ ﴾ او
ورکوه ( ای بنده) خاونددخپلوي ته دهغه حق او (ورکوه ) مسکين نادارته او( ورکوه) مسافرته
﴿ وَلَا تُبَذِّرۡ تَبۡذِيرًا ﴾ اواسراف مکوه په اسراف کولو سره ) یعني خپل مال دالله له طاعته پرته په نوروشیانو
کي مه لګوه چي مبذر ونه ګڼل شې ځکه چي دتبذير معنادا چي ناحقه مال لګوي. مجاهدوايي: که چېري
انسان خپل ټول مال په حق کي ولګوي مبذرنه ګڼل کېږي اوکه يوه پېمانه ناحقه ولګوي مبذردی اوقتاده
وايي :دتبذيرمعنادالله په معصيت،فساداوناحقه لاره کي دمال لګولوته
وايي(۲) ﴿ إِنَّ ٱلۡمُبَذِّرِينَ كَانُوٓاْ إِخۡوَٰنَ ٱلشَّيَٰطِينِۖ ﴾ بېشکه چي اسراف کونکي دشيطانانو ورونه دي ؛ دغه د
نهی لپاره علت دی اوپه قبح اوذم کي نهايت دی چي دوی لکه شيطانان غوندي دي چي فساد خپروي
دباطل په لاره کي مال لګوي دشر اوفساد په کارونو کي مرسته کوي ځکه دشيطانانو ورونه دي
﴿ وَكَانَ ٱلشَّيۡطَٰنُ لِرَبِّهِۦ كَفُورٗا ﴾ اوشيطان خپل رب ته ډېرناشکره دی ؛ چي دنعمت حق نه اداکوي اولکه
مبذرين ورونه غوندي يې دي چي دنعمت حق نه پېژني حق يې دادی چي په حقوقو اوطاعاتو کي ولګول
شي تجاوزاوتبذيرپکي ونکړل شي ﴿ وَإِمَّا تُعۡرِضَنَّ عَنۡهُمُ ٱبۡتِغَآءَ رَحۡمَةٖ مِّن رَّبِّكَ تَرۡجُوهَا فَقُل لَّهُمۡ قَوۡلٗا مَّيۡسُورٗا ﴾ (اوکه
اعراض کاووتاله (ذوی القربی، مساکينو ، مسافرو اونورو نه ) لپاره دطلب درحمت له (جانبه) درب
ستاچي ته دهغه درحمت اميدلرې نوهغوی ته پسته خوږه خبره ووايه ) يعني که تاد هغوی لپاره ورڅه نه
موندل چي ورېي کړې نونرمه اوخوږه خبره ورته وکړه اودبل وخت لپاره ورسره د ورکړې ژمنه وکړه
﴿ وَلَا تَجۡعَلۡ يَدَكَ مَغۡلُولَةً إِلَىٰ عُنُقِكَ ﴾ (اومه ګرزوه (مه نيسه ) لاس خپل (لکه) تړلی شوی ترغاړي دتاپوري)
دغه دبخل لپاره مثال دی يعني هسي بخل مه کوه لکه چي لاس دي ترغاړي تړلی وي هيڅاته څه نه
ورکوې ﴿ وَلَا تَبۡسُطۡهَا كُلَّ ٱلۡبَسۡطِ ﴾ اومه يې غځوه په بېخي غځولو سره يعني اسراف هم مه کوه چي دغه
دتبذير لپاره مثال دی هسي مه کوه چي هيڅ دي په لاس کي نشي پاتي مقصدله دې آيت شريف څخه
اقتصاددی يعني مه بخيل اومه هم مسرف کېږه ﴿ فَتَقۡعُدَ مَلُومٗا مَّحۡسُورًا ﴾ نو کښېنې به ته ملامت کړی
شوی (په امساک کي ) بې ماله پښېمانه شوی (په اسراف کي يعني ته به په دې صورتونو کي دمخلوق
اوخالق له لوري ملامت شې اوله ماله به بېخي داسي خلاص شې لکه چي يوڅوک له ډېري ستوماني له
سفره پاتي شي او توان يې تمام شي ﴿ إِنَّ رَبَّكَ يَبۡسُطُ ٱلرِّزۡقَ لِمَن يَشَآءُ وَيَقۡدِرُۚ ﴾ بېشکه رب ستاپراخوي
روزي لپاره دهغه چاچي دپراخي اراده يې وفرمايي اوتنګوي يې (دهغه چاچي دتنګي اراده يې وفرمايي
(هغه القابض الباسط ) دی له خپل حکمت سره سم دخلګود مالونوتصرفات کوي

---

(۱) التفسيرالکبير۲۰/ ۱۹۲
(۲) المختصر۲/ ۳۷۵

Bawar.net


﴿إِنَّهُۥ كَانَ بِعِبَادِهِۦ خَبِيرًۢا بَصِيرًا﴾ (بېشکه چي دغه (الله) دی په (مصالحو) دبندګانو خپلوښه خبردارښه ليدونکی) يعني الله دبندګانو په مصلحتونو خبردار اوددوی په ارزاقو کي يې تفاوتونه ددې لپاره نه چي دبخل له وجي دي بلکه دمصلحتونو غوښتنه ده اودوی پخپلو مصلحتونو نه پوهيږي الله وربانديخبراوليدونکی دی ﴿وَلَا تَقۡتُلُوٓاْ أَوۡلَـٰدَكُمۡ خَشۡيَةَ إِمۡلَـٰقٍ﴾ اومه وژنئ تاسي اولاد خپل دفقرله وېري ﴿نَّحۡنُ نَرۡزُقُهُمۡ وَإِيَّاكُمۡ﴾ (موږ دوی ته روزي ورکوو اوتاسي ته هم ) يعني ددوی روزي پرموږ باندي ده پرتاسونه ده تاسو اودوی ته موږ روزي ورکوو نوددوی په سبب له فقره مه وېرېږئ ﴿إِنَّ قَتۡلَهُمۡ كَانَ خِطۡـٔٗا كَبِيرٗا﴾ بېشکه چي ددوی قتل لويه ګناه ده. مفسرين کرام وايي چي: دجاهليت په وخت کي به خلګو لوڼي دلوږي اوپېغور له وېري ژوندۍ ښخولې نو الله پاک دوی له دې څخه منع کړل اودروزي ضمانت يې وفرمايل ﴿وَلَا تَقۡرَبُواْ ٱلزِّنَىٰٓۖ﴾ اوزناته مه نژدې کېږئ ! دغه کلمه تر دې چي (ولاتزنوا) ده خورا أبلغ اولوړه ده ځکه چي دغه دزناله مقدماتو څخه منع راوړي هغه چي لاس ور وړل ، ښکلول ، په سترګواشارې کول اوکتل يانور څه دي چي دزنالپاره پيلامه وي نونهی له نژدې والي څخه د نهی ترفعل ډېره أوچته ده ﴿إِنَّهُۥ كَانَ فَٰحِشَةٗ وَسَآءَ سَبِيلٗا﴾ بېشکه چي دازنا(عقلااوشرعا) قبيحه ده اوبده ده له جهته دروش اولاري (چي سړی دوزخ ته رسوي ) ﴿وَلَا تَقۡتُلُواْ ٱلنَّفۡسَ ٱلَّتِي حَرَّمَ ٱللَّهُ إِلَّا بِٱلۡحَقِّۗ﴾ اومه وژنئ تاسي هغه نفس چي الله يې (وژل) حرام کړي مګرپه حقه سره (چي دشريعت حق اودقتل موجب وي لکه ارتداد ، قتل عمد اوزناسره له( احصانه ) ﴿وَمَن قُتِلَ مَظۡلُومٗا فَقَدۡ جَعَلۡنَا لِوَلِيِّهِۦ سُلۡطَٰنٗا﴾ او هرڅوک چي ووژلی شو پداسي حال کي چي مظلوم وي نوپه تحقيق موږ دده دوارث لپاره ګرزولی دی زور اوقوت چي له قاتل څخه انتقام اخيستی شي (په قصاص، ديت اخيستلواوياعفو سره) ﴿فَلَا يُسۡرِف فِّي ٱلۡقَتۡلِۖ إِنَّهُۥ كَانَ مَنصُورٗا﴾ نوپه قتل کي دي اسراف نکوي (چي غيرحق بې قاتله بل څوک وژني )په تحقيق سره له ده (وارث) سره مددکړی شوی دی) يعني که چېري يوڅوک په ناحقه ووژل شي نودهغه وارث ته مووږ زور اوقوت ورکوو خودی دي له شرعي حدڅخه تجاوز نه کوي چي له قاتله پرته بل څوک ووژني اويايې اندامونه غوڅ کړي (مثله) يې کړي يادیوه پرځای دوه تنه ووژني لکه چي دجاهليت دزماني خلګوبه کول نودده لپاره داکافي ده چي الله په دښمن برې ورکړی نوپخپل قصاص کي دي عدل کوي(په تصرف سره) ﴿وَلَا تَقۡرَبُواْ مَالَ ٱلۡيَتِيمِ إِلَّا بِٱلَّتِي هِيَ أَحۡسَنُ﴾ اومه نژدې کېږئ تاسي ديتيم مال ته مګرپه هغې طريقې سره چي ډېره ښه وي (يعني حفظ اواستثمار يې کوئ) ﴿حَتَّىٰ يَبۡلُغَ أَشُدَّهُۥۚ﴾ تر هغه پوري چي (يتيم) ورسېږي دبلوغ حدته (اوپخپل مال کي سم تصرف کولای شي) ﴿وَأَوۡفُواْ بِٱلۡعَهۡدِۖ إِنَّ ٱلۡعَهۡدَ كَانَ مَسۡـُٔولٗا﴾ اووفاکوئ (دالله) په عهد کي بېشکه چي عهد دی پوښتېدلی شوی (په قيامت کي هغه که دالله اوستاسو ترمينځ وي اوياستاسوپخپلو مينځوکي وي )

Bawar.net



﴿ وَأَوْفُوا۟ ٱلْكَيْلَ إِذَا كِلْتُمْ ﴾ اوتاسي پېمانه پوره ورکوئ هرکله چي تاسي پېمانه کوئ (بل چاته مه يې کموئ) ﴿ وَزِنُوا۟ بِٱلْقِسْطَاسِ ٱلْمُسْتَقِيمِ ﴾ اوتول کوئ تاسي په برابره تله سره (چي درغلي پکي نه وي) ﴿ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا ﴾ دغه پوره کول د (پېمانې اوتول) ډېرغوره او خورانبه دی له جهته دمآل (اوانجام ،عاقبت په آخرت کي ) ﴿ وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ ﴾ او دهغه کارپيروي مه کوه چي نه وي تاته په هغه پوهه (بلکه تثبت کوه . قتاده وايي : چي نه دي وي ليدلی هغه وخت مه وايه چي ماوليداونه دي وي اورېدلی نومه وايه چي ما واورېدل اونه يې پوهېدلی نومه وايه چي زه پوه شوم ځکه الله پاک له دي واړوڅخه تاپوښتني (۱) (چي فرمايي : ) ﴿ إِنَّ ٱلسَّمْعَ وَٱلْبَصَرَ وَٱلْفُؤَادَ كُلُّ أُو۟لَٰٓئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْـُٔولًا ﴾ بېشکه غوږ اوسترګه اوزړه هريوله دغو(درې واړو ) دی له هغه څخه پوښتنه کړی شوی (په قيامت کي حي څه يې کړي دي ؟) ﴿ وَلَا تَمْشِ فِى ٱلْأَرْضِ مَرَحًا ﴾ اومه ګرزه په ځمکه کي په خيال اوتکبرسره ﴿ إِنَّكَ لَن تَخْرِقَ ٱلْأَرْضَ وَلَن تَبْلُغَ ٱلْجِبَالَ طُولًا ﴾ بېشکه چي ته له سره به څېري نکړې ځمکه (ای دنګرناتوانه انسانه له تاسره تکبرنه ښايي څرنګه متکبرانه په ځمکه روان يې؟ اونشي کولای چي په هغې کي دپښوپه دربولو له کبره سوری وکړې ) اوله سره به ونه رسېږې دغرونو(سرو) ته په (جګولودسرسره له ډېرې نخرې) له جهته داوږدوالي (ځکه ته ددې دواړو جماداتو ډېرورکوټی اوبې وزله يې نوڅرنګه تکبراولويي کوې ؟) پدې کي دکبرجنو لپاره استهزاء او تقريع ده ﴿ كُلُّ ذَٰلِكَ كَانَ سَيِّئُهُۥ عِندَ رَبِّكَ مَكْرُوهًا ﴾ ګرد دغه (ذکرشوي امرونه، نهی ) دي بدی د هغه په نزد درب ستا ناخوښه (اوحرامي) ﴿ ذَٰلِكَ مِمَّآ أَوْحَىٰٓ إِلَيْكَ رَبُّكَ مِنَ ٱلْحِكْمَةِ ﴾ (داټول احکام) له داسي قسمه دي چي تاته ستارب وحی کړي دي له حکمت نه) يعني دغه ټول چي له (ادابو ، قصصواواحکامو څخه يادشول هغه څه دي چي تاته ( ای محمده) ستارب وحی کړي دي له مواعظواوحکمتونوڅخه ﴿ وَلَا تَجْعَلْ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ فَتُلْقَىٰ فِى جَهَنَّمَ مَلُومًا مَّدْحُورًا ﴾ اومه نيسه ته له الله سره بل معبود (که دې ونيو ) نو وبه غورځول شې په دوزخ کي ملامت کړی شوی رټلی (دالله له رحمته) صاوي وايي چي : احکام يې په دې باندي پای ته ورسول لکه چي پيل کړي يې هم وو ترڅوتوحيدته اشاره وشي چي دټولو امورو مبدأ اومنتها توحيد دی اوهغه بنسټ دی چي ورباندي اعمال درېږي که دغه نه وي کړه وړه ټول باطل دي اوګڼه نلري (۲) ﴿ أَفَأَصْفَىٰكُمْ رَبُّكُم بِٱلْبَنِينَ وَٱتَّخَذَ مِنَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنَٰثًا ﴾ آيانوغوره کړي يې تاسي ستاسي رب په زامنوسره (او پخپله الله ځان ته ستاسي په زعم ) نيولي دي له پرښتو څخه ښځي (لوڼي) (نوڅرنګه الله د ځان لپاره أدنی نسل اوستاسولپاره يې اعلی ځانګړی کړی دی ؟) ﴿ إِنَّكُمْ لَتَقُولُونَ قَوْلًا عَظِيمًا ﴾ بېشکه تاسي چي ياست

---

(۱) المختصر ۲ / ۳۷۷

(۲) حاشية الصاوي على الجلالين ۲ / ۳۵۰

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


وایاست خبره ډېره لویه (په ګناه اوبشاعت کي چي هغه ته دلوئ نسبت کوئ او پخپله له لوئو څخه نفرت اوکرکه کوئ) ﴿ وَلَقَدۡ صَرَّفۡنَا فِي هَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانِ لِيَذَّكَّرُواْ ﴾ (او خامخا په تحقیق مکرربیان کړي دي موږ پدې عظیم الشان قرآن کي مثالونه، مواعظ او وعد، وعید راوړي چي په روښانه دلائلو يې پند واخلی او له شرک اوضلالت څخه ځان وژغوری ﴿ وَمَا يَزِيدُهُمۡ إِلَّا نُفُورٗا ﴾ او نه زیاتوي دوی ته دغه (مکرر بیان) مګر تېښته اولري والی ( له حقه اوغفلت له عبرته څخه) ﴿ قُل لَّوۡ كَانَ مَعَهُۥٓ ءَالِهَةٞ كَمَا يَقُولُونَ إِذٗا لَّٱبۡتَغَوۡاْ إِلَىٰ ذِي ٱلۡعَرۡشِ سَبِيلٗا ﴾ ووایه (ای محمده! دوی ته) چي که وای له الله سره نور معبودان لکه چي دغه (مشرکان) وايي: نوهلته به خامخا لټولي وه دغو (معبودانو طرف دخاوند دعرش ته لاره (دورتلو لپاره دجنګ ترڅو چي پاچهي ځني ونیسي لکه چي ددنیا پاچهان يې ځيني له ځينو نورو سره کوي) [1] ﴿ سُبۡحَٰنَهُۥ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يَقُولُونَ عُلُوّٗا كَبِيرٗا ﴾ (پاکي ده الله لره او ډېر پورته دی الله له هغه څه چي دوی يې وايي په ډېري لويي سره) يعني پاکي ده الله لره له هغه څه چي دغه ظالمان يې وايي او په دروغو بهتان وړباندي تړي ځکه له داسي افتراء څخه الله پاک اومنزه دی شهاب وايي چي: دلته يې (علو) وروسته له (ذی العرش) څخه ذکرکړه دغه دبلاغت منتهاده ځکه نودغه له عظمت اوجلال سره مناسب ده ﴿ تُسَبِّحُ لَهُ ٱلسَّمَٰوَٰتُ ٱلسَّبۡعُ وَٱلۡأَرۡضُ وَمَن فِيهِنَّۚ ﴾ تسبیح وايي ده ته اوه واړه آسمانونه اوځمکه او هغه څوک چي په دوی کي دي (له مخلوقاتو) ﴿ وَإِن مِّن شَيۡءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمۡدِهِۦ ﴾ (او نشته هيڅوک (له مخلوقاتو) مګر چي تسبیح وايي سره له ثناء ددغه (الله) يعني په دې شته موجوداتو کي هيڅ موجود نشته مګر خو دالله په عظمت او وحدانيت شاهدي ورکوي [2] آسمانونه يې په شین والي کي پاکي وايي، کښتونه په زرغونوالي کي، باغونه په ښکلاکي، وني په ډکو پاڼو، اوبه په آبشارونو او مرغان يې په آوازونو کي لمريې په ختلو او ډوبېدلو کي، وريځي په بارانونو او اوربښت کي او داټول دالله په وحدانيت ګواهي وايي ﴿ وَلَٰكِن لَّا تَفۡقَهُونَ تَسۡبِيحَهُمۡۚ ﴾ مګرنه پوهېږئ تاسي دهغوی په تسبیح باندي ځکه هغه ستاسو په ژبه نه ده ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ حَلِيمًا غَفُورٗا ﴾ (بېشکه دغه الله دی ښه تحمل درلودونکی، ښه بخښونکی) يعني الله پخپلو

---

[1] دغه يې يو تفسیر او بل يې په دوهم مخ کي وګورئ دوهمه وجه دتفسیر داچي معنايې ده که چېري خبره همداسي وای لکه چي تاسي وایاست نودغه معبودان به الله ته لاره لټوله چي ورنږدې شي عبادت او طاعت به يې وکړي دغه دابن جرير او ابن کثیرغوره دی خولو مړی وجه څرګنده ده لکه چي ابو السعود دليکلي او له آيت سره هم مناسب دی چي الله پاک وروسته فرمايي (سبحانه) ځکه دغه صريح انکار او ددوی قول محذور دی.

[2] په الظلال تفسير کي راوړي چي دغه دکائناتو يو عجيب انځور دی کله چي زړه يې ومني چي هره ګټه لوټه هره دانه او ښه پاڼه هر ګل هره مېوه هر بوټی او ونه هره خزنده او پرنده هر انسان او حيوان هر خوځېدونکی او په اوبو کي لامبو وهونکی په هوا الوتونکی او ورسره دآسمان او سېدونکی دالله جل جلاله تسبيح او پاکي وايي او الله ته متوجه وي او کله چي بيا روح سپېڅلتيا و مومي او روښانه شي ددې وجود په اسرارو او رازونو پوهېږي هسي پوهه چي ډېر غافل کسان وړباندي خبر هم نه وي. فی ظلال القرآن ۱۵ / ۳۹

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



بندګانو حليم دی ژرتر ژره يې نه نيسي اوکه دالله حلم اوغفران نه وای نوبه يې بشرپخپل زبردست قوت نيولی وو﴿ وَإِذَا قَرَأۡتَ ٱلۡقُرۡءَانَ جَعَلۡنَا بَيۡنَكَ وَبَيۡنَ ٱلَّذِينَ لَا يُؤۡمِنُونَ بِٱلۡأٓخِرَةِ حِجَابٗا مَّسۡتُورٗا ﴾(اوکله چي لولې ته (ای محمده!) قرآن نو وګرزوو موږ ستاوهغوکسانوپه مينځ کي چي ايمان نه راوړي په آخرت پټونکي ) يعني ای محمده! کله چي ته پردغو مشرکانو قرآن لولې هغوی چي په آخرت ايمان نه راوړي نو موږ ستااود دوی ترمينځ پټونکي پرده پيداکړو چي دوی دقرآنکريم فهم ونشي کولای اوپه اسرارو اوحکمتونو يې ونه پوهېږي ﴿ وَجَعَلۡنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمۡ أَكِنَّةً أَن يَفۡقَهُوهُ ﴾او اچوو موږ ددوی په زړونو پردي (موانع) له دې خبري نه چي په قرآن پوه شي ﴿ وَفِيٓ ءَاذَانِهِمۡ وَقۡرٗا ﴾او ګرزوو موږ په غوږونو ددوی پردي (کونوالی چي قرآن وانه وري)﴿ وَإِذَا ذَكَرۡتَ رَبَّكَ فِي ٱلۡقُرۡءَانِ وَحۡدَهُۥ وَلَّوۡاْ عَلَىٰٓ أَدۡبَٰرِهِمۡ نُفُورٗا ﴾(اوکله چي ته يادکړې خپل رب يوازې په قرآن کي نوبېرته ګرزي دوی په شاوو خپلوپداسي حال کي چي ترهېدونکي وي) يعني کله چي ته دالله په توحيدسره قرآن لولې نومشرکان له دې ځخه تښتي اونه غواړي چي دتوحيداستماع وکړي ﴿ نَّحۡنُ أَعۡلَمُ بِمَا يَسۡتَمِعُونَ بِهِۦٓ ﴾موږ ښه عالم يو په هغه غرض چي اوري دوی په سبب دهغه سره (دا قرآن چي استهزآء اوملنډي دي) مفسرين کرام وايې چي مشرکان به درسول الله صلی الله عليه وسلم خواوشاته کښېناستل چي خلګوته به يې په پام کي ورکول چي قرآن اوري مګرقصدبه يې استهزآء اومسخرې وې نودغه آيت شريف درسول الله صلی الله عليه وسلم دډاډېيني لپاره نازل شو چي په ترخ کي يې دمشرکانولپاره تهديداو وړونه هم شته ﴿ إِذۡ يَسۡتَمِعُونَ إِلَيۡكَ وَإِذۡ هُمۡ نَجۡوَىٰٓ ﴾کله چي دوی تاته غوږ ږدي اوکله چي دوی پټي خبري ( مشورې) کوي ﴿ إِذۡ يَقُولُ ٱلظَّٰلِمُونَ إِن تَتَّبِعُونَ إِلَّا رَجُلٗا مَّسۡحُورًا ﴾کله چي وايې ظالمان (مشرکان) اصحاب کراموته ) چي تاسومتابعت نکوی مګردېوسړي چي ورباندي کوډي شوي دي (اوګډي وډي خبري کوي)﴿ ٱنظُرۡ كَيۡفَ ضَرَبُواْ لَكَ ٱلۡأَمۡثَالَ فَضَلُّواْ ﴾وګوره (ای محمده!) څرنګه بيانوي دغه کفارتالره مثالونه ؟ د(ساحر، شاعر، کاهن اومجنون) نوګمراه شول دوی (په دغه بهتان اودروغوباندي) ﴿ فَلَا يَسۡتَطِيعُونَ سَبِيلٗا ﴾نوطاقت نلري دوی دسمي لارې موندلو (چي هدايت اوحق ته ورسېږي.

## بلاغت:

پدې آيتونوکي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لندون يې په لاندې ډول دی:

۱ – مکنيه استعاره چي فرمايې: ﴿ وَٱخۡفِضۡ لَهُمَا جَنَاحَ ٱلذُّلِّ ﴾عاجزي يې له مرغه سره مشابه کړه مرغه يې حذف کړ او دهغه له لوازمو چي وزر دې راوړل شول چي دغه ته مکنيه استعاره ويل کېږي

۲ – کله چي الله تعالی فرمايې: ﴿ وَلَا تَجۡعَلۡ يَدَكَ مَغۡلُولَةً إِلَىٰ عُنُقِكَ وَلَا تَبۡسُطۡهَا كُلَّ ٱلۡبَسۡطِ ﴾دبخيل لپاره يې دهغه چامثال راووړچي لاس يې له ورکړي څخه منع او په غاړه پوري تړل شوی وي نشي کولای چي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



اوږد يې کړي او د اسراف لپاره يې بيا د لاس اوږدول مشابه کړي هسې چې هيڅ هم په لاس کې خوندي نشي ساتلای.

۳ - پدې کلام کې چې فرمايي: ﴿فَتَقۡعُدَ مَلُومٗا مَّحۡسُورًا﴾ لف او نشر مرتب راغلی ځکه چې (ملوما) د بخيل لپاره او (محسورا) د اسراف کونکي لپاره دی يعني که دې بخل کاوو خلګ به دې ملامت کوي او که دې اسراف کاوو نو يو مخ ايزه به له مال څخه خلاص شې.

۴ - د طباق صنعت لکه په ﴿يَبۡسُطُ وَيَقۡدِرُ﴾ کې.

۵ - اشتقاقي جناس لکه په ﴿قَرَأۡتَ ٱلۡقُرۡءَانَ﴾ کې.

۶ - توبيخ لکه په: ﴿أَفَأَصۡفَىٰكُمۡ رَبُّكُم بِٱلۡبَنِينَ﴾ کې.

۷ - فرض او تقدير لکه په: ﴿لَّوۡ كَانَ مَعَهُۥٓ ءَالِهَةٞ كَمَا يَقُولُونَ﴾ کې.

لطيفه:

دلته موږ د قرآني تعبير هغه عجيبه باريکي وينو چې پدغه سورت کې الله تعالی د زامنو روزي په پلرونو له مخه ياده کړې چې ﴿نَّحۡنُ نَرۡزُقُهُمۡ وَإِيَّاكُمۡ﴾ يې فرمايلي دي او په سورة الانعام کې يې بيا د پلرونو روزي تر زامنو د مخه راوړي چې فرمايي: ﴿نَّحۡنُ نَرۡزُقُكُمۡ وَإِيَّاهُمۡ﴾ او پدې کې رازدادی چې د اولادونو د وژلو علت دلته د هغوی په سبب له فقر څخه و يره وه ځکه الله د هغوی روزي د مخه ياده کړه او په الانعام سورت کې د پلرونو واقعي فقر او نيستي وه چې اولادونه يې وژل نو هلته الله د پلرونو روزي د مخه ياده کړه د تنزيل اسرار خوراډېر او لايتناهي دي (سبحان الله والحمد لله ولآ اله الا الله والله اکبر).

***

الله تعالی فرمايي:

﴿وَقَالُوٓاْ أَءِذَا كُنَّا عِظَٰمٗا وَرُفَٰتًا أَءِنَّا لَمَبۡعُوثُونَ خَلۡقٗا جَدِيدٗا ﴿٤٩﴾ ۞ قُلۡ كُونُواْ حِجَارَةً أَوۡ حَدِيدًا ﴿٥٠﴾ أَوۡ خَلۡقٗا مِّمَّا
يَكۡبُرُ فِي صُدُورِكُمۡۚ فَسَيَقُولُونَ مَن يُعِيدُنَاۖ قُلِ ٱلَّذِي فَطَرَكُمۡ أَوَّلَ مَرَّةٖۚ فَسَيُنۡغِضُونَ إِلَيۡكَ رُءُوسَهُمۡ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ
هُوَۖ قُلۡ عَسَىٰٓ أَن يَكُونَ قَرِيبٗا ﴿٥١﴾ يَوۡمَ يَدۡعُوكُمۡ فَتَسۡتَجِيبُونَ بِحَمۡدِهِۦ وَتَظُنُّونَ إِن لَّبِثۡتُمۡ إِلَّا قَلِيلٗا ﴿٥٢﴾ وَقُل
لِّعِبَادِي يَقُولُواْ ٱلَّتِي هِيَ أَحۡسَنُۚ إِنَّ ٱلشَّيۡطَٰنَ يَنزَغُ بَيۡنَهُمۡۚ إِنَّ ٱلشَّيۡطَٰنَ كَانَ لِلۡإِنسَٰنِ عَدُوّٗا مُّبِينٗا ﴿٥٣﴾ رَّبُّكُمۡ أَعۡلَمُ بِكُمۡۖ
إِن يَشَأۡ يَرۡحَمۡكُمۡ أَوۡ إِن يَشَأۡ يُعَذِّبۡكُمۡۚ وَمَآ أَرۡسَلۡنَٰكَ عَلَيۡهِمۡ وَكِيلٗا ﴿٥٤﴾ وَرَبُّكَ أَعۡلَمُ بِمَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۗ وَلَقَدۡ
فَضَّلۡنَا بَعۡضَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ عَلَىٰ بَعۡضٖۖ وَءَاتَيۡنَا دَاوُۥدَ زَبُورٗا ﴿٥٥﴾ قُلِ ٱدۡعُواْ ٱلَّذِينَ زَعَمۡتُم مِّن دُونِهِۦ فَلَا يَمۡلِكُونَ كَشۡفَ ٱلضُّرِّ عَنكُمۡ
وَلَا تَحۡوِيلًا ﴿٥٦﴾ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ يَدۡعُونَ يَبۡتَغُونَ إِلَىٰ رَبِّهِمُ ٱلۡوَسِيلَةَ أَيُّهُمۡ أَقۡرَبُ وَيَرۡجُونَ رَحۡمَتَهُۥ وَيَخَافُونَ عَذَابَهُۥٓۚ
إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحۡذُورٗا ﴿٥٧﴾ وَإِن مِّن قَرۡيَةٍ إِلَّا نَحۡنُ مُهۡلِكُوهَا قَبۡلَ يَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِ أَوۡ مُعَذِّبُوهَا عَذَابٗا

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

شَدِيدًا كَانَ ذَٰلِكَ فِي الْكِتَابِ مَسْطُورًا ﴿٥٨﴾ وَمَا مَنَعَنَا أَن نُّرْسِلَ بِالْآيَاتِ إِلَّا أَن كَذَّبَ بِهَا الْأَوَّلُونَ ۚ وَآتَيْنَا ثَمُودَ
النَّاقَةَ مُبْصِرَةً فَظَلَمُوا بِهَا ۚ وَمَا نُرْسِلُ بِالْآيَاتِ إِلَّا تَخْوِيفًا ﴿٥٩﴾ وَإِذْ قُلْنَا لَكَ إِنَّ رَبَّكَ أَحَاطَ بِالنَّاسِ ۚ وَمَا جَعَلْنَا
الرُّؤْيَا الَّتِي أَرَيْنَاكَ إِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُونَةَ فِي الْقُرْآنِ ۚ وَنُخَوِّفُهُمْ فَمَا يَزِيدُهُمْ إِلَّا طُغْيَانًا كَبِيرًا ﴿٦٠﴾ وَإِذْ
قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيسَ قَالَ أَأَسْجُدُ لِمَنْ خَلَقْتَ طِينًا ﴿٦١﴾ قَالَ أَرَأَيْتَكَ هَٰذَا الَّذِي
كَرَّمْتَ عَلَيَّ لَئِنْ أَخَّرْتَنِ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَأَحْتَنِكَنَّ ذُرِّيَّتَهُ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٦٢﴾ قَالَ اذْهَبْ فَمَن تَبِعَكَ مِنْهُمْ فَإِنَّ
جَهَنَّمَ جَزَاؤُكُمْ جَزَاءً مَّوْفُورًا ﴿٦٣﴾ وَاسْتَفْزِزْ مَنِ اسْتَطَعْتَ مِنْهُم بِصَوْتِكَ وَأَجْلِبْ عَلَيْهِم بِخَيْلِكَ وَرَجِلِكَ وَشَارِكْهُمْ
فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ وَعِدْهُمْ ۚ وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطَانُ إِلَّا غُرُورًا ﴿٦٤﴾ إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ ۚ وَكَفَىٰ
بِرَبِّكَ وَكِيلًا ﴿٦٥﴾ رَّبُّكُمُ الَّذِي يُزْجِي لَكُمُ الْفُلْكَ فِي الْبَحْرِ لِتَبْتَغُوا مِن فَضْلِهِ ۚ إِنَّهُ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا
﴿٦٦﴾ وَإِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فِي الْبَحْرِ ضَلَّ مَن تَدْعُونَ إِلَّا إِيَّاهُ ۖ فَلَمَّا نَجَّاكُمْ إِلَى الْبَرِّ أَعْرَضْتُمْ ۚ وَكَانَ الْإِنسَانُ كَفُورًا ﴿٦٧﴾ أَفَأَمِنتُمْ
أَن يَخْسِفَ بِكُمْ جَانِبَ الْبَرِّ أَوْ يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا ثُمَّ لَا تَجِدُوا لَكُمْ وَكِيلًا ﴿٦٨﴾ أَمْ أَمِنتُمْ أَن يُعِيدَكُمْ فِيهِ تَارَةً
أُخْرَىٰ فَيُرْسِلَ عَلَيْكُمْ قَاصِفًا مِّنَ الرِّيحِ فَيُغْرِقَكُم بِمَا كَفَرْتُمْ ۙ ثُمَّ لَا تَجِدُوا لَكُمْ عَلَيْنَا بِهِ تَبِيعًا ﴿٦٩﴾

الإسراء: ٤٩ ـ ٦٩

## مناسبت اوتړاو:

كله چي الله تعالى دمشركانودريز دقرآنكريم په وړاندي بيان كړاوداچي دوى دقرآن له پوهېدلو څخه ړانده اوكانه وو ورپسي يې له بعث اونشورڅخه ددوى منكرېدل اوپدې هكله ددوى شكوك اوشبهات اوپه هغوى باندي دالله له لوري دبطلان كرښه راښكل راوړه بيايې دآدم عليه السلام اولعين ابليس كيسه دپندلپاره راغبرګه كړه له دې په هيسته يې په بندګانود سترو نعمتونو ذكر وفرمايواو هغه چاته چي كفر اوانكاركوي وعيد اوتهديد يې ورته راووړ.

## لغتونه:

(رفاتا) خاوري ايرې شوي (ينغضون) فراء وايې چي دوې جملې چي ووايې: (أنغض فلان رأسه) معنايې داده چي فلاني ښكته پورته سر وخوځاوولكه چي څوک تعجب كوي (١)راجزوايې (أنغض نحوي رأسه واقنعا) يعني زمالوري ته يې دقناعت په توګه سروخوځاوو (ينزغ) فساد كوي اوشر راپاروي (لأحتنكن) له يوه مخه له بېخه ايستلوته وايي لكه چي وايې: (احتنک الجرادالزرع) يعنيٓ ملخو كښت يومخ ايزه تباه كړ(استفزز) غولولوته وايې (اجلب) اجلاب له چلونكي شړونكي څخه نارې كولوته وايې (رجل) دراجل جمع اوپياده ته وايي (يزجى) سوق اوشړلوته وايې (حاصبا) وړوكټوته ويل كېږي (قاصفا) قصف ماتولوته وايې اوقاصف فاعل دى (تبيعا) تابع، مرستندوى ته وايه شي.

(١) تفسير كبير ٢٠/ ٢٢

Bawar.net


دنزول سبب:

أ - ابن عباس رضی الله عنه وايې دمکې خلکو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وويل چي: د (صفا) غر دي ددوی لپاره سره زر جوړ کړي او دمکې له ښاره خو اوشا غرونه دي له ښخه وکاږي ترڅو دکښت اوباغداري لپاره مکه برابره شي اوبیا دوی په کي کښت اوزراعت کوي نورسول الله صلی الله علیه وسلم ته وويل شو: که غواړې چي مهلت ورکړم ددې لپاره چي له دوی څخه صالح زوزات اولادونه غوره کړو اوکه غواړې چي دوی ته ددوی غوښتني ورکړو خوکه بیايې کفرغوره کړ نوبه يې هلاک کړو نورسول الله صلی الله علیه وسلم وويل: بلکه ورته مهلت ورکړه نودا آیت نازل شو: ﴿وَمَا مَنَعَنَآ أَن نُّرْسِلَ بِٱلْـَٔايَٰتِ إِلَّآ أَن كَذَّبَ بِهَا ٱلْأَوَّلُونَ﴾(١)

ب - کله چي الله پاک دزقوم ونه په قرآنکریم کي ذکرکړه نوابوجهل وویل: ای قریشو محمدتاسي وېروي چي په دوزخ کي دزقوم ونه ده آیاتاسوته نه ده معلومه چي اور، ونه سوځوي اومحمد گمان کوي چي اور ونه زرغونوي نوآیاپوهېږئ چي زقوم څه شی دی؟ هغه کوچي (مسکه) او خرماده. ای مینځي موږته خرما اوکوچي راوړه کله چي به هغې کوچي اوخرماورته راوړل نوبه يې دوی ته ویل: وخورئ دغه هغه څه دي چي محمد تاسي ورڅخه وېروي نوالله دا آیتونه نازل کړل: ﴿وَٱلشَّجَرَةَ ٱلْمَلْعُونَةَ فِى ٱلْقُرْءَانِ وَنُخَوِّفُهُمْ فَمَا يَزِيدُهُمْ إِلَّا طُغْيَٰنًا كَبِيرًا﴾(٢)

تفسير:

﴿وَقَالُوٓا۟ أَءِذَا كُنَّا عِظَٰمًا وَرُفَٰتًا﴾ اوواېي دغه (منکران) آیاکله چي موږ شو (پس له مرگه) هډوکي اوخاوري میده شوي؟ استفهام دانکاراوتعجب لپاره دی ﴿أَءِنَّا لَمَبْعُوثُونَ خَلْقًا جَدِيدًا﴾ آیاپه تحقيق به موږ بیا راژوندي (ولاړ) کړای شوپه نوي پیداکولو سره؟ ﴿قُلْ كُونُوا۟ حِجَارَةً أَوْ حَدِيدًا﴾ وواېه (ای محمده دوی ته) شئ تاسي تيږي اویا اوسپنه (پداسي حال کي به هم الله تعالی ستاسي په راپاڅولو اوژوندي کولو قادر وي څه خولاداچي هډوکي اوخاوري ایرې یاست الله ته هیڅ کارمشکل نه دی که ستاسي بدنونه داوسپنو اوډبرو شي هغه چي ډېر سخت موجودات دي بیابه هم الله هغه راژوندي اوپاڅوي ﴿أَوْ خَلْقًا مِّمَّا يَكْبُرُ فِى صُدُورِكُمْ﴾ اویا (شئ) بل کوم قسم مخلوق له هغه قسمه چي ډېرلوی (اوسخت) ښکاري په سینو (زړونو) ستاسي کي (چي ژوندي کول يې خورابعیدوي بیابه موهم الله راژوندي کاندي مجاهد وايې: چي معناداچي هرڅه موزړه غواړي هغسي شئ الله به موراژوندي کاندي ﴿فَسَيَقُولُونَ مَن يُعِيدُنَا﴾ نوژربه ووايې: دوی څوک به موږ بیرته راولي (اوژوندي به مو کړي؟ وروسته له فاني کېدلو؟ ﴿قُلِ ٱلَّذِى فَطَرَكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ﴾ ووايه (ای محمده! دوی ته) هغه ذات به تاسي بیا ژوندي کړي

(١) اسباب النزول للواحدي ص: ١٢٢

(٢) زادالمسير ٥/ ٥٥

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



چي پيداكړي يې يې اول كرت (له عدم څخه) ﴿ فَسَيُنْغِضُونَ إِلَيْكَ رُءُوسَهُمْ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هُوَ ﴾ نوژر به دوی تاته سرونه وخوځوي (له ډار، استهزاء او تعجب نه) او وبه وايې (تمسخرًا) كله به وي (دغه بيا ژوندون استبعاداو استنكاربه وكړي) ﴿ قُلْ عَسَىٰٓ أَن يَكُونَ قَرِيبًا ﴾ ورته ووايه: (اى محمده!) ښايي چي وي دغه (بياژوندون) نژدې (څكه چي راتلونكى دى او هرراتلونكى نژدې دى ﴿ يَوْمَ يَدْعُوكُمْ فَتَسْتَجِيبُونَ بِحَمْدِهِۦ وَتَظُنُّونَ إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ په هغه ورځ كي چي (الله) تاسي حساب ته وبولي نو قبول به كړی (بلنه دده) پداسي حال كي چي دالله به ثنا ويونكي ياست او ګمان به كوئ (له ډېره هيبته) چي څندنه دى كړی تاسي مګرلږشاني ﴿ وَقُل لِّعِبَادِى يَقُولُوا۟ ٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ ﴾ او ووايه (اى محمده!) زما مؤمنانوبندګانو ته چي وايې دي (په محاوراتو اوخطابونوكي) هغه خبري چي ډېري غوره دي (لبني پستې، خوږې اونرمي خبري دي كوي) ﴿ إِنَّ ٱلشَّيْطَٰنَ يَنزَغُ بَيْنَهُمْ ﴾ بېشكه چي شيطان دښمني اچوي (او شر پورته كوي) په مينځ ددوی كي كله چي شډلي اوتروې خبري له خولې څخه ووزي ﴿ إِنَّ ٱلشَّيْطَٰنَ كَانَ لِلْإِنسَٰنِ عَدُوًّا مُّبِينًا ﴾ بېشكه چي شيطان دانسان لپاره ښكاره دښمن دی (له لومړي پيل نه څكه نو زياربا سي چي دچادخولې كومه خبره زېږه اوقهرجنه ومومي اودشراوفسادلپاره يې په لمسون كي وكاروي دښمني رامينځته كړي وروښه سره په مصيبت اخته كړي ﴿ رَّبُّكُمْ أَعْلَمُ بِكُمْ إِن يَشَأْ يَرْحَمْكُمْ أَوْ إِن يَشَأْ يُعَذِّبْكُمْ ﴾ ستاسي رب پرتاسي ښه عالم خبردار دی (كه ستاسي درحمت اراده وفرمايې) نو پر تاسي به رحمت وكړي (په توفيق دركولو دايمان) ياكه اراده وفرمايي (دعذابولو ستاسي) نوعذاب به دركړي تاسي ته (په مړه كولو، سره له كفراوعصيانه) ﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَٰكَ عَلَيْهِمْ وَكِيلًا ﴾ اونه يې لېږلی موږ ته پردوی وكيل (ساتونكى دكفارو داعمالو چي په زور يې ايمان ته راكاږې بلكه ته مويوازي وېرونكى استولی يې نوځوك چي ستاطاعت كوي جنت ته به يې بيايې اوځوك چي ستاڅخه غاړه غړوي ځای به يې دوزخ وي ﴿ وَرَبُّكَ أَعْلَمُ بِمَن فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ اورب ستاښه عالم دی په هغه چاچي په آسمانونوكي دی اوچي په ځمكه كي دی (نوهغه چاته نبوتِ وركوي چي خوښه يې شي الله جل جلاله په نېكمرغه اوبدمرغه خلګوښه پوهېږي په آيت شريف كي په مشركانوباندي رد راغلی دی څكه دوی به ويل: څرنګه دابوطالب يتيم نبي جوړشو؟ اوڅرنګه دغه بېوزله، نادارہ كسان دهغه اصحابان شو سرداران اومخه وركسان يې اصحاب نه شي ګڼلی؟﴿ وَلَقَدْ فَضَّلْنَا بَعْضَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ عَلَىٰ بَعْضٍ ﴾ اوخامخاپه تحقيق فضيلت وركړی دی موږ ځينوانبياوو ته پرځينو نوروباندي (چي زموږ په علم اوحكمت پوري اړه لري ځيني موپه ځينومزاياوو ځانګړي كړي دي ابراهيم عليه السلام ته (خُلت) وركول شوی، موسى عليه السلام ته (تكليم)، سليمان عليه السلام ته ستره پاچهي اومحمد صلى الله عليه وسلم ته مواسراء اومعراج وركړی اودږومبنيواوو روستنيو سردار موګرزولی دی دغه ټول د عليم اوحكيم ذات په كړنه چي هيڅ يوكاريې

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



له حکمته خالي نه دی ترسره شوی ﴿وَءَاتَيۡنَا دَاوُۥدَ زَبُورٗا﴾ او ورکړی وو موږ داؤدته زبور(چي په حکمت اوفصل الخطاب مشتمل وو) ﴿قُلِ ٱدۡعُواْ ٱلَّذِينَ زَعَمۡتُم مِّن دُونِهِۦ﴾ (ووایه دوی ته ای محمده!) چي وبولئ تاسي هغه معبودان چي (دخدایانو) گمان وربانديي کوئ بې له الله نه؛ حسن بصري وایي چي مرادخني ملائک،عیسی اوعزیردی چي دوی به ویل دابه د الله په وړاندي زموږ شفاعت کوي ﴿فَلَا يَمۡلِكُونَ كَشۡفَ ٱلضُّرِّ عَنكُمۡ وَلَا تَحۡوِيلًا﴾ نودوی له تاسوځخه دضرردليري کولو اختيارنلري اونه هم دګرزولو دضرربل چاته) ﴿أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ يَدۡعُونَ يَبۡتَغُونَ إِلَىٰ رَبِّهِمُ ٱلۡوَسِيلَةَ أَيُّهُمۡ أَقۡرَبُ﴾ (دغه (معبودان) هغه دي چي (کفاريې) عبادت کوي لټوي دغه (معبودان) خپل رب ته وسيله (د نژدې والی) چي کوم يوله دوی څخه ډېرنژدې دی ) يعني دغه معبودان چي مشرکان بې عبادت کوي دوی پخپله دالله دتقرب په لټه کي دی اوپه طاعت اوعبادت الله ته توسل کوي نوبياتاسوڅرنګه ددوی عبادت کوئ؟ ﴿وَيَرۡجُونَ رَحۡمَتَهُۥ وَيَخَافُونَ عَذَابَهُۥٓ﴾ او اميدلري درحمت ددغه (الله) په طاعت سره او وېرېږي له عذابه ددغه (الله ) اوزيارباسي چي دالله رضاترلاسه کړي ﴿إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحۡذُورٗا﴾ ببشکه عذاب درب ستاددې وړدی چي ترې وېره وکړای شي (هغه ډېرسخت دی) ﴿وَإِن مِّن قَرۡيَةٍ إِلَّا نَحۡنُ مُهۡلِكُوهَا قَبۡلَ يَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِ أَوۡ مُعَذِّبُوهَا عَذَابٗا شَدِيدٗا﴾ اونشته هيڅ کلی(ښاردځمکي په مخ) مګرچي موږ هلاکونکي (داهل) دهغه يو پخواله ورځي دقيامت ياپه عذابونکي يو (داهل) دهغه په سخت عذاب سره يعني نشته هيڅ يوښار دکافرانو چي له الله سرغړونه کوي اود رسولانوتکذيب کوي مګردا چي ژربه يې الله هلاک کړي په يومخ ايزه استيصال سره اويابه يې اهل ته سخت عذاب ور و ويني ﴿كَانَ ذَٰلِكَ فِي ٱلۡكِتَٰبِ مَسۡطُورٗا﴾ دی دغه حکم په کتاب (لوح محفوظ)کي کښل شوی (تغيرنه مومي) ﴿وَمَا مَنَعَنَآ أَن نُّرۡسِلَ بِٱلۡأٓيَٰتِ إِلَّآ أَن كَذَّبَ بِهَا ٱلۡأَوَّلُونَ﴾ (اونه دی منع کړی موږ لره هيڅ څيزله دې نه چي هغه معجزې ولېږو (چي دوی يې غواړي)مګر(دې خبري)چي تکذيب کړی ووپه دغومعجزو پخوانيو (کفارونوهلاک موکړل)مفسرين کرام وايي: مشرکانودرسول الله صلی الله عليه وسلم ته دسترو معجزودراوړلو وړانديز وکړ چي څيني يې داوو؛دصفاغردي سره زرجورکړي اودمکې له ښاره دي غرونه ولېږدوي نوالله تعالی ځواب ورکړکه ددوی دغه وړانديز ومنل شي هم ايمان نه راوړي نوبيابه ديومخ ايزه هلاکېدلو وړ اولائق وګرزي دالله جل جلاله دحکمت غوښتنه داده چي دوی ته مهلت ورکړي څکه الله ته معلوم دي چي څيني ددوی به ايمان راوړي اوهمداسي په نسل کي به يې مؤمنان پيداکېږي نوځکه الله ددوی دغه اقتراح ونه منله (١) اويادامعناچي موږ نه منع کوي له نه منلو ددوی د وړانديز شوي معجزو څخه مګردامومنع کوي چي پخوامو کله هم اقتراحي معجزې اُمتونوته ورلېږلي وې خوهغوی يې بياتکذيب وکړنوالله هلاک اوتباه کړل ﴿وَءَاتَيۡنَا ثَمُودَ ٱلنَّاقَةَ مُبۡصِرَةٗ فَظَلَمُواْ بِهَا﴾ او ور کړي

---

(١) سبب النزول وګورئ !.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



مووه قوم دثمودته اُوښه ښکار معجزه نوظلم وکړ (ثمودیانو په خپلو ځانو) په سبب د(انکار) دهغې(وروسته له هغه چي دوی بې وړاندیز کړی وونوبیا الله تعالی هلاک کړل) ﴿وَمَا نُرۡسِلُ بِٱلۡأٓيَٰتِ إِلَّا تَخۡوِيفٗا﴾ اونه لېږو موږ دغه (کائناتي معجزې لکه زلزلې، تندر، خسوف، کسوف اوتندرونه (صواعق) مګرد پاره دوېرولو (دبندګانوچي له ګناهونو ځان وساتي. قتاده وايې چي: بېشکه الله وېروي بندګان په هغه نښانیوچي اراده يې وشي لپاره ددې چي پندواخلي او رُجوع وکړي(١)) ﴿وَإِذۡ قُلۡنَا لَكَ إِنَّ رَبَّكَ أَحَاطَ بِٱلنَّاسِۚ﴾ اويادکړه هغه وخت چي موږتاته وویل چي: بېشکه رب ستااحاطه کړي پر مخلوقاتو (په علم اوقدرت خپل سره (په ماضي زمانه، حال او استقبال کي له الله څخه ددوی هيڅ حال هم پټ نه دی الله ته معلومه ده چي دوی به له سره ایمان نه راوړي که څه هم ددوی ټولي فرمائشی معجزې ورته راوړی شي

﴿وَمَا جَعَلۡنَا ٱلرُّءۡيَا ٱلَّتِيٓ أَرَيۡنَٰكَ إِلَّا فِتۡنَةٗ لِّلنَّاسِ﴾ اونه دی ګرزولی موږلیدنه هغه چي ښوولي مووه تاته (څرګنده په شپه دمعراج کي له عجائباتودځمکي اوآسمان نه) مګرازموینه لپاره دخلګو(دمکې چي دوی بې تکذیب وکړ اوځيني مرتدهم شول. امام بخاري له اُبن عباس رضی الله عنه څخه روایت راوړي چي دغه دسترګو رؤیاوه خوب نه وه چي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دمعراج په شپه نظاره ورولیدل شوه (٢)) ﴿وَٱلشَّجَرَةَ ٱلۡمَلۡعُونَةَ فِي ٱلۡقُرۡءَانِۚ﴾ او(همدارنګه موفتنه ګرزولي موږ) هغه ونه چي پرې لعنت کړی شوی دی په قرآن کي؛ ابن کثیروايې: کله چي رسول الله صلی الله علیه وسلم دوی ته خبر ورکړ چي هغه جنت اودوزخ لیدلي اوهلته يې دزقوم ونه ولیده نوابوجهل دملنډوپه توګه وویل چي: خرمااوکوچ راوړئ دهغوپه خوړلو يې پیل وکړ چي همدازقوم دی له دې پرته بل زقوم نه پېژنو (٣)

﴿وَنُخَوِّفُهُمۡ فَمَا يَزِيدُهُمۡ إِلَّا طُغۡيَٰنٗا كَبِيرٗا﴾ او وېرووموږ دوی نونه زیاتوي (دوی ته دغه وېرول) مګر طغیان سرکښي لويه یعنی په ضلالت کي له ډوبېدلوپرته يې بل څه ورزيات کړل؟ بیاالله ددغه طغیان لامل بیانوي چي همداشیطان دی څکه يې ورپسې دشیطان ملعون کیسه راوړه ويې فرمایل

﴿وَإِذۡ قُلۡنَا لِلۡمَلَٰٓئِكَةِ ٱسۡجُدُواْ لِأٓدَمَ فَسَجَدُوٓاْ إِلَّآ إِبۡلِيسَ﴾ اويادکړه(ای محمده !) هغه وخت چي وویل موږ پرښتوته چي سجده وکړئ تاسي آدم ته (سجده دتعظیم) نوسجده وکړه دوی مګریوازي ابلیس (چي سجده يې ونکړه حضرت آدم يې ترخان حقیروګانه اوتکبريې غوره کړ) ﴿قَالَ ءَأَسۡجُدُ لِمَنۡ خَلَقۡتَ طِينٗا﴾ وویل: (ابلیس دالله په ځواب کي) آیاسجده وکړم زه هغه چاته چي تاله ختي پیداکړی دی ؟ (څرنګه ښايي چي لوړ مخلوق دي ضعیف اوښکته ته سجده وکړي؟)

﴿قَالَ أَرَءَيۡتَكَ هَٰذَا ٱلَّذِي كَرَّمۡتَ عَلَيَّ﴾ (وویل: (ابلیس) خبرراکړه ماته (داسړی) چي بهتر کړی دي دی په مابانديې) یعني ابلیس لعین دالله په وړاندي په سپین سترګي اوکفرسره وویل: چي آیادغه مخلوق

---

(١) الطبري ١٥/ ١٠٩

(٢) نوموړي مرجع المختصر٢ / ٣٨٢

(٣) ابن کثیر.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar net



تاترما بهر کړی او تر مادي عزت من کړزولی د ﴿لَئِنۡ أَخَّرۡتَنِ إِلَىٰ يَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِ لَأَحۡتَنِكَنَّ ذُرِّيَّتَهُۥٓ إِلَّا قَلِيلٗا﴾ قسم دی که دي تر ورځي د قيامت پوري وروستی کړم نو خامخا به زه بېخ و باسم د اولادې د ده مګر لږ (د دوی چي ستا په حمايت کي وي) طبري وايي چي: د الله د ښمن قسم و خوړ که دي ماته و خت را کړ زه به د آدم د اولادې بېخ او بکرو باسم او ګمراه به يې کړم مګر لږ کسان به پاتي شي(۱) ﴿قَالَ ٱذۡهَبۡ فَمَن تَبِعَكَ مِنۡهُمۡ فَإِنَّ جَهَنَّمَ جَزَآؤُكُمۡ جَزَآءٗ مَّوۡفُورٗا﴾ (نو الله و فرمايل: چي ځه نو هر چا چي ستا متابعت وکړ له دوی نه نو بېشکه دوزخ جزا ستاسي ده پوره جزاء) يعني الله ورته وويل چي تاته مي مهلت درکړ ورځه زيار باسه څوک چي د دوی ستا متابعت وکړي نو ستا او د دوی جزاء دوزخ دی په بشپړه توګه چي هيڅ به څني کم نشي. قرطبي وايي چي د الله امر چي فرمايي: (ځه) امر د اهانت او سپکاوي دی او معنا دا چي ته خپل زيار و باسه تاته مي مهلت درکړ(۲) ﴿وَٱسۡتَفۡزِزۡ مَنِ ٱسۡتَطَعۡتَ مِنۡهُم بِصَوۡتِكَ﴾ او و خوځوه (راګېر کړه) هغه چي طاقت دي رسېږي پر هغه باندي له دوی نه په غږ (بلنه) خپله (فساد ته؟ ابن عباس رضی الله عنه وايي: د شيطان غږ هغه بلونکی دی چي د الله معصيت ته څوک بولي او مجاهد وايي: مراد د شيطان له صوت نه سرود، غنا او لهوه ده (۳) ﴿وَأَجۡلِبۡ عَلَيۡهِم بِخَيۡلِكَ وَرَجِلِكَ﴾ او راکاږه (راټول کړه) پر دوی خپل سپاره او پياده (لښکري) طبري وايي معنا دا چي پر دوی خپل پلی او سپاره لښکر راغونډ کړه چي ور باندي ناري کړي او ستا طاعت ته يې راوبولي زما له طاعت څخه يې وګرزوي ابن عباس رضی الله عنه وايي چي: مراد له پلي او سپرو څخه هر سپور او پلی دی چي د الله په معصيت کي روان وي. زمخشري وايي چي: دغه د تمثيل په توګه راغلی چي د ده حال يې له هغه پهلوان سره مثل کړلی چي په کوم قوم ورو خېژي او ور باندي چيغه کړي له خپلو ځايونو يې ونه خوځوي او بيا ور باندي خپلي پلي لښکري او سپاره راټول کړي ترڅو يې له بېخه و باسي (۴) ﴿وَشَارِكۡهُمۡ فِي ٱلۡأَمۡوَٰلِ وَٱلۡأَوۡلَٰدِ﴾ (او شريک شه له دوی سره په مالونو او اولادونو کي) کوم چي مالونه دي هغه دا چي په حرامو لاړو يې لاس ته راوړي او په ګناهونو کي يې ولګوي او کوم چي اولادونه دي هغه دا چي د نرو او ښځو ګډون ورته ښايسته کړي ترڅو زنا او فجور زيات شي او حرامزاد ګان ډېر شي ﴿وَعِدۡهُمۡۚ وَمَا يَعِدُهُمُ ٱلشَّيۡطَٰنُ إِلَّا غُرُورًا﴾ (او وعده کوه له دوی سره (د دروغو) او نه کوي وعده له دوی سره شيطان مګر د فريب (چي خطا ورته صواب ښکاروي) يعني دوی ته په تېر ايستونکو ژمنو او مکرجنو وعدو دروغجنو هيلو وعدې ورکوه لکه د بتانو شفاعت يا په حرام مال باندي د غنا او بدايي يا

(۱) الطبري ۱۵ / ۱۱۲ او مراد په لږ کسانو هغه مخلصان د الله په عصمت کي ژغورل شو ته وايي.

(۲) القرطبي ۱۰ / ۲۸۸

(۳) القرطبي ۱۰ / ۲۸۸

(۴) الکشاف ۲ / ۲۷۸ سيد قطب رحمه الله وايي چي: همدغه د سرغړوني لپاره يوانځوردی چي څرنګه يې را ايساروي او په زړونو مشاعرو يې غلبه مومي داهغه ستره چګړه ده چي پکي غږونه، سپاره او پلي لښکريان د نورو جګړو په شان کار ول کېږي يو خل چيغه په کار اچوي څو د ښمن له خپلو ځايونو او مورچلونو ولټوي او بيا يې په لومه کي را کېباسي کله چي دوی وتښتي بېديا ته يې . ابهر کاندي نو بيا يې پلي لښکري او سپاره قوتونه په شا و خوا را وګرزوي او کار يې تمام کړي الظلال ۱۵ / ۵۱

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



داچي الله پاک غفور اورحيم دی گناوي کوه الله به يې دروبښي ياهم په لويو گناوو باندي دسرور اوخوښي احساس ورکول يعني خوندونه اخلئ،خوښحالي کوئ څکه هرڅه که څه هم وخت واخلي تېرېدونکي دي ﴿ إِنَّ عِبَادِي لَيۡسَ لَكَ عَلَيۡهِمۡ سُلۡطَٰنٌۚ ﴾ ببشکه (مخلص) بندگان زماچي دي نشته تاته (ای شيطانه پردوی هيڅ ډول غلبه (څکه دوی زماپه حفظ اوامان کي دي) ﴿ وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ وَكِيلٗا ﴾ اوکافي دی رب ستا (ای شيطانه) وکيل ساتونکی (دوی لره ستاله شرڅخه) وروسته الله تعالی په خپلوبندگانو باندي داحسان اونعمتونو يادونه کوي اودخپل وحدانيت او قدرت آثار بيانوي فرمايي: ﴿ رَّبُّكُمُ ٱلَّذِي يُزۡجِي لَكُمُ ٱلۡفُلۡكَ فِي ٱلۡبَحۡرِ لِتَبۡتَغُواْ مِن فَضۡلِهِۦٓۚ ﴾ رب ستاسي هغه ( قادر مطلق ) ذات دی چي چلوي تاسي ته بېړی په بحرکي (چي (روزي ولټوئ) (په تجارت او سفرونو سره) له فضله دده څخه ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ بِكُمۡ رَحِيمٗا ﴾ ببشکه دغه (الله) دی پرتاسوډېر مهربان (څکه يې تاسوته اسباب آسانه کړل ) ﴿ وَإِذَا مَسَّكُمُ ٱلضُّرُّ فِي ٱلۡبَحۡرِ ضَلَّ مَن تَدۡعُونَ إِلَّآ إِيَّاهُۖ ﴾ اوکله چي تاسي ته په بحر کي سختي ورسېږي (اوله غرقه ووېرېږئ ) ورک شی (له فکره ستاسي) هغه کسان چي يې بولئ (او عبادت يې کوئ) مگريوازي دغه (الله) ته (زاري اوعبادت کوئ) يعني پرته له الله بل څوک ستاسي فرياد اورېدونکی او مرستندوی نه وي انسانان په دغه حالت کي بت اووثن ته هډو چيغي نه وهي اونه هم ملک اوفلک ته زاري کوي بلکه يوازي الله تبارک وتعالی ته دعجزاونياز فريادونه کوي ﴿ فَلَمَّا نَجَّىٰكُمۡ إِلَى ٱلۡبَرِّ أَعۡرَضۡتُمۡۚ ﴾ نو کله چي وموژغوري تاسي (اوومورسوي ) وچي ته نوبيا څنگ کوئ (له توحيده ايمان اواخلاص نه) ﴿ وَكَانَ ٱلۡإِنسَٰنُ كَفُورًا ﴾ اودی انسان لوی ناشکره يعني دانسان طبيعت همداسي دی چي دالله دنعمتونو ناشکري کوي وروسته بياالله دوی پخپل سترقدرت وېروي فرمايي: ﴿ أَفَأَمِنتُمۡ أَن يَخۡسِفَ بِكُمۡ جَانِبَ ٱلۡبَرِّ ﴾ (نو آياپه امن يی تاسي (مطمئن ياست) له دې نه چي ډوب کړي تاسي په يو طرف دوچي څمکي کي) يعني کله چي مو له ډوبېدلو اوغرقېدلو وژغوري نو آيامطمئن ياست له دې چي څمکه درباندي وچوي اوتاسي درباندي ومنډي ؟ تاسي خوهره شېبه دالله په واک کي ياست نوڅرنگه دالله له کسات اخيستلو اونيولو بېغمه کېږئ چي درباندي زلزله ،تندراواوربه نه راغورځوي ؟ ﴿ أَوۡ يُرۡسِلَ عَلَيۡكُمۡ حَاصِبٗا ﴾ ياولېږي پرتاسوسخت باداورونکی دوړوکانو(چي ور باندي ومووژني لکه دلوط عليه السلام قوم چي يې وواژه) ﴿ ثُمَّ لَا تَجِدُواْ لَكُمۡ وَكِيلًا ﴾ بياونه مومئ تاسي دخپل ځان لپاره کوم ساتونکی (چي دالله له عذابه مووژغوري) ﴿ أَمۡ أَمِنتُمۡ أَن يُعِيدَكُمۡ فِيهِ تَارَةً أُخۡرَىٰ ﴾ آياپه امان کي يی تاسي له دې چي بيارانني باسي تاسي(الله) پدې (بحر) کي بيادوهم ځلي ﴿ فَيُرۡسِلَ عَلَيۡكُمۡ قَاصِفٗا مِّنَ ٱلرِّيحِ ﴾ نوناڅاپه راولېږي پرتاسي (ماتونکی دهرشي) سخت باد ﴿ فَيُغۡرِقَكُم بِمَا كَفَرۡتُمۡ ﴾ نو غرق به کړي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



(الله)تاسي په سبب دكفردتاسي ﴿ثُمَّ لَا تَجِدُواْ لَكُمۡ عَلَيۡنَا بِهِۦ تَبِيعٗا﴾ پس له هغه به بيانه مومئ دخپلو خانونو دپاره پرموږ په سبب دهغه غرق پوښتېدونكى (چي له موږ نه ستاسي كسات واخلي).

بلاغت:

پدې آيتونو كي چي دبديع اوبيان كومي ښكلاوي شته لندون يې په لاندي ډول دى:

١ - انكاري استفهام لكه چي الله فرمايي ﴿أَءِذَا كُنَّا عِظَٰمٗا﴾ اوپدې كلام كي چي فرمايي ﴿أَءِنَّا لَمَبۡعُوثُونَ﴾ دهمزې تكرار دنكيردتاكيدلپاره اوهمداسي په ان اولام دواړو تاكيددانكاردقوت لپاره راغلى دى.

٢ - په امرسره تعجيزاواهانت لكه: ﴿قُلۡ كُونُواْ حِجَارَةً أَوۡ حَدِيدًا﴾.

٣ - كله چي الله تعالى فرمايي: ﴿يَرۡحَمۡكُمۡ ... يُعَذِّبۡكُمۡ﴾ او ﴿ٱلۡبَرِّ ... ٱلۡبَحۡرِ﴾ دلته دطباق صنعت دى.

٤ - ددوجملوترمينځ لطيفه مقابله لكه: ﴿وَيَرۡجُونَ رَحۡمَتَهُۥ ... وَيَخَافُونَ عَذَابَهُۥٓ﴾

٥ - مجازي نسبت كول اواسنادچي وايي ﴿وَمَا مَنَعَنَآ أَن نُّرۡسِلَ بِٱلۡأٓيَٰتِ﴾ منع دالله په هكله محال دى داسي هيڅ څېزنشته چي الله ذي له خپلى ارادې اوغوښتني منع كړي نومنع له پرېښودلو څخه مجاز راوړل شوى يعني نه ووسبب دپرېښودلو زموږدمعجزاتو مګردپخوانيو اُمتونو تكذيب وو.

٦ - ايجاز بالحذف لكه چي الله فرمايي: ﴿وَلَا تَحۡوِيلًا﴾ يعنى و(ولا تحويل الضر) چي پخوانى ورباندي دلالت كوي.

٧ - پدې كلام كي چي الله تعالى فرمايي ﴿ٱلنَّاقَةَ مُبۡصِرَةٗ﴾ عقلي مجازنغښتى دى څكه چي (اوښه) دحق دليدلولپاره سبب وه نوهغې ته يې د(ابصار) ليدني نسبت وكړچي دغه عقلى مجازاوعلاقه يې سببيت دى.

٨ - تمثيلي استعاره چي الله تعالى فرمايي: ﴿وَأَجۡلِبۡ عَلَيۡهِم بِخَيۡلِكَ وَرَجِلِكَ﴾ دشيطان حال يې له هغه چاسره مثال وګانه چي پخپلو لښكريانو چيغه كړي اوپلي سپاره په دښمن تاراك وكړي اوله پښو يې وغورځوي.

٩ - دوروستاړ(تذييل)صنعت چي فرمايي: ﴿إِنَّهُۥ كَانَ بِكُمۡ رَحِيمٗا﴾ څكه دغه لكه دړومبي نعمت لپاره تعليل غوندي دى چي ستاسو لپاره موبېړۍ په بحركي تابع اورواني كړي دي

تنبيه:

غالبادا ﴿ٱلرُّءۡيَا﴾ لفظ دخوب دليدلو لپاره استعمالېږي اوكله چي په ويښه اوستركوليدل مقصد وي بيايي (رؤيت) بولي اودالله تعالى داوينا چي فرمايي ﴿وَمَا جَعَلۡنَا ٱلرُّءۡيَا ٱلَّتِيٓ أَرَيۡنَٰكَ إِلَّا فِتۡنَةٗ لِّلنَّاسِ﴾ په غيرغالب توګه راغلى څكه دلته مراد دستركو ليدلى حال دى چي پيغمبرعليه السلام په اسراء اومعراج

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کي ولید او عبدالله ابن عباس رضی الله عنه قول مخ کي تېر شو چي ویل یې: (دغه د ستر ګو لیدلی حال وو چي رسول الله ته په اسرآء او معراج کي وروليدل شو) او که چېري د خوب لیدل وای بیا به هیڅکله د خلګو لپاره فتنه او ازمويښت نه وو او ځیني خلک به له اسلامه نه ګرځېدل.

***

الله تعالی فرمایي:

﴿وَلَقَدۡ كَرَّمۡنَا بَنِيٓ ءَادَمَ وَحَمَلۡنَٰهُمۡ فِي ٱلۡبَرِّ وَٱلۡبَحۡرِ وَرَزَقۡنَٰهُم مِّنَ ٱلطَّيِّبَٰتِ وَفَضَّلۡنَٰهُمۡ عَلَىٰ كَثِيرٖ مِّمَّنۡ خَلَقۡنَا
تَفۡضِيلٗا ﴿٧٠﴾ يَوۡمَ نَدۡعُواْ كُلَّ أُنَاسِۭ بِإِمَٰمِهِمۡۖ فَمَنۡ أُوتِيَ كِتَٰبَهُۥ بِيَمِينِهِۦ فَأُوْلَٰٓئِكَ يَقۡرَءُونَ كِتَٰبَهُمۡ وَلَا
يُظۡلَمُونَ فَتِيلٗا ﴿٧١﴾ وَمَن كَانَ فِي هَٰذِهِۦٓ أَعۡمَىٰ فَهُوَ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ أَعۡمَىٰ وَأَضَلُّ سَبِيلٗا ﴿٧٢﴾ وَإِن كَادُواْ لَيَفۡتِنُونَكَ
عَنِ ٱلَّذِيٓ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ لِتَفۡتَرِيَ عَلَيۡنَا غَيۡرَهُۥۖ وَإِذٗا لَّٱتَّخَذُوكَ خَلِيلٗا ﴿٧٣﴾ وَلَوۡلَآ أَن ثَبَّتۡنَٰكَ لَقَدۡ كِدتَّ تَرۡكَنُ
إِلَيۡهِمۡ شَيۡـٔٗا قَلِيلًا ﴿٧٤﴾ إِذٗا لَّأَذَقۡنَٰكَ ضِعۡفَ ٱلۡحَيَوٰةِ وَضِعۡفَ ٱلۡمَمَاتِ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ عَلَيۡنَا نَصِيرٗا ﴿٧٥﴾ وَإِن
كَادُواْ لَيَسۡتَفِزُّونَكَ مِنَ ٱلۡأَرۡضِ لِيُخۡرِجُوكَ مِنۡهَاۖ وَإِذٗا لَّا يَلۡبَثُونَ خِلَٰفَكَ إِلَّا قَلِيلٗا ﴿٧٦﴾ سُنَّةَ مَن قَدۡ
أَرۡسَلۡنَا قَبۡلَكَ مِن رُّسُلِنَاۖ وَلَا تَجِدُ لِسُنَّتِنَا تَحۡوِيلًا ﴿٧٧﴾ أَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ لِدُلُوكِ ٱلشَّمۡسِ إِلَىٰ غَسَقِ ٱلَّيۡلِ وَقُرۡءَانَ ٱلۡفَجۡرِۖ
إِنَّ قُرۡءَانَ ٱلۡفَجۡرِ كَانَ مَشۡهُودٗا ﴿٧٨﴾ وَمِنَ ٱلَّيۡلِ فَتَهَجَّدۡ بِهِۦ نَافِلَةٗ لَّكَ عَسَىٰٓ أَن يَبۡعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامٗا مَّحۡمُودٗا ﴿٧٩﴾
وَقُل رَّبِّ أَدۡخِلۡنِي مُدۡخَلَ صِدۡقٖ وَأَخۡرِجۡنِي مُخۡرَجَ صِدۡقٖ وَٱجۡعَل لِّي مِن لَّدُنكَ سُلۡطَٰنٗا نَّصِيرٗا ﴿٨٠﴾ وَقُلۡ جَآءَ ٱلۡحَقُّ
وَزَهَقَ ٱلۡبَٰطِلُۚ إِنَّ ٱلۡبَٰطِلَ كَانَ زَهُوقٗا ﴿٨١﴾ وَنُنَزِّلُ مِنَ ٱلۡقُرۡءَانِ مَا هُوَ شِفَآءٞ وَرَحۡمَةٞ لِّلۡمُؤۡمِنِينَ وَلَا يَزِيدُ ٱلظَّٰلِمِينَ إِلَّا
خَسَارٗا ﴿٨٢﴾ وَإِذَآ أَنۡعَمۡنَا عَلَى ٱلۡإِنسَٰنِ أَعۡرَضَ وَنَـَٔا بِجَانِبِهِۦ وَإِذَا مَسَّهُ ٱلشَّرُّ كَانَ يَـُٔوسٗا ﴿٨٣﴾ قُلۡ كُلّٞ يَعۡمَلُ عَلَىٰ شَاكِلَتِهِۦ
فَرَبُّكُمۡ أَعۡلَمُ بِمَنۡ هُوَ أَهۡدَىٰ سَبِيلٗا ﴿٨٤﴾ وَيَسۡـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلرُّوحِۖ قُلِ ٱلرُّوحُ مِنۡ أَمۡرِ رَبِّي وَمَآ أُوتِيتُم مِّنَ ٱلۡعِلۡمِ إِلَّا قَلِيلٗا
﴿٨٥﴾ وَلَئِن شِئۡنَا لَنَذۡهَبَنَّ بِٱلَّذِيٓ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ بِهِۦ عَلَيۡنَا وَكِيلًا ﴿٨٦﴾ إِلَّا رَحۡمَةٗ مِّن رَّبِّكَۚ إِنَّ
فَضۡلَهُۥ كَانَ عَلَيۡكَ كَبِيرٗا ﴿٨٧﴾ قُل لَّئِنِ ٱجۡتَمَعَتِ ٱلۡإِنسُ وَٱلۡجِنُّ عَلَىٰٓ أَن يَأۡتُواْ بِمِثۡلِ هَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانِ لَا يَأۡتُونَ بِمِثۡلِهِۦ
وَلَوۡ كَانَ بَعۡضُهُمۡ لِبَعۡضٖ ظَهِيرٗا ﴿٨٨﴾ وَلَقَدۡ صَرَّفۡنَا لِلنَّاسِ فِي هَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانِ مِن كُلِّ مَثَلٖ فَأَبَىٰٓ أَكۡثَرُ ٱلنَّاسِ إِلَّا
كُفُورٗا ﴿٨٩﴾﴾ الإسراء: ٧٠ ـ ٨٩

### مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالی وفرمایل چي په انسانانو یې د ېر احسانونه پېرزو کړي چي هغه د ابو او سیندونو په مخ د بېړیو روانول او له غرقېدلو څخه ژغورل دي نو د هغوی بشپړوالی یې په نورو نعمتونو چي په بني نوع انسان یې لورولی ،عزت یې ورکړی ، په ټولو مخلوقاتو یې بهتر ګرزولی او روزي یې ورکړې ده بیان

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کړل وروسته یې دخلګو احوال اودرجې چې په آخرت کې ورکول کېږي راوړې په پای کې یې رسول الله صلی الله علیه وسلم دمشرکانو دخواهشاتو له متابعت څخه وېراوو.

**لغتونه:**

(بامامهم) امام په لغت کې هرهغه چاته چې ورپسې اقتداء کېږي ویل کېږي هغه که په حقه لاره وي او که په باطله همداسې امام دعملنامې لپاره هم راځي څکه انسان دخپلې عملنامې تابع اومُقتَدي دی یابه یې ج: ت ته بیايي اویاهم دوزخ ته (فتیلا) هغه پوستکي ته وايي چې دخُرمادزړي په درز کې وي اودغه خوراوره اوناځیزشي ته وايي لکه قطمیراونقیرچې یې بولي (ترکن) میلان کول (لیستفزونک) استفزاز په ځورکول چې له هیواده یې وشړي (غوبلا) تغییر اوتبدیل (لدلوک) دلوک ،دلمرډوبېدلو (غروب) ته وايي دغه دابوعبیده اوقتاده وېناده. زهري وايي چې (دلوک )اصل میلان ته وايي چې ویل کېږي لمرزوال ته میلان وکړاولمرډوبېدلوته میلان وکړ(غسق)تاریکي چې ډېره سخته شي (فتهجد) تهجد د شپې لمانځه ته ویل کېږي چې له خوبه وروسته وي اوهجودپه خپله خوب ته وايي (زهق) زائل اوباطل کېدل (نای) لیرې کېدل (ظهیرا) مرستندوی.

**دنزول سبب یې:**

ابن عباس رضی الله عنه وايي چې : یشو یهودانوته وویل موږته یوه پوښتنه راوښیاست چې له دغه سړي (محمده) یې وپوښتو نوهغوی ورته وویل چې له روح څخه یې وپوښتئ نوالله جل جلاله داآیت نازل کړ﴿ وَيَسۡـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلرُّوحِۖ قُلِ ٱلرُّوحُ مِنۡ أَمۡرِ رَبِّي ﴾[1]

**تفسیر:**

﴿ وَلَقَدۡ كَرَّمۡنَا بَنِيٓ ءَادَمَ ﴾اوخامخاپه تحقیق ډېرعزت ورکړی دی موږ اولاددآدم ته(په ټولو مخلوقاتو باندې په عقل، علم، منطق اودټولو شیانوتابع کولو ده لره﴿ وَحَمَلۡنَٰهُمۡ فِي ٱلۡبَرِّ وَٱلۡبَحۡرِ ﴾او سپاره کړي موږ دوی په مرکوباتو باندې په وچه اوبحرکې (دحیواناتو اوبېړیوپه ذریعه)﴿ وَرَزَقۡنَٰهُم مِّنَ ٱلطَّيِّبَٰتِ ﴾اوروزي مو ورکړې ده دوی ته له پاکېزه وو شیانو(دخوراک اوڅښاک)مقاتل وايي هغه غوړي، شات ، کوچ ،خرما اوحلوا دي اودحیواناتو خوراک یې پروړه هډوکي اونورڅه ګرزولي دي ﴿ وَفَضَّلۡنَٰهُمۡ عَلَىٰ كَثِيرٖ مِّمَّنۡ خَلَقۡنَا تَفۡضِيلٗا ﴾اوغوره کړي موږ پرډېرو له هغه چاڅخه چې پیدا کړي موږ په غوره کولو(ډېرو ) سره (هغه که پېریان دي، که چارپایان ، مرغان دي اوکه وحشي ځناوران) ﴿ يَوۡمَ نَدۡعُواْ كُلَّ أُنَاسِۭ بِإِمَٰمِهِمۡۖ ﴾(اویادکړه ) هغه ورځ چې وبه بولو(په نامه سره) هرامت سره له کتاب داعمالو ددوی (چې تسلیم یې کړي اوجزاء داعمالو ورکول شي مرادله کتاب څخه دانسان عملنامه ده اوددې خبرې تائید دالله تعالی داقول هم کېږي چې ﴿ وَكُلَّ شَيۡءٍ أَحۡصَيۡنَٰهُ فِيٓ إِمَامٖ مُّبِينٖ ﴾یس: ۱۲-

(۱) اسباب النزول للواحدي ص: ۱۲۸

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ابن عباس رضی الله عنه وايي چي امام هغه اعمالوته چي ليکل شوي دي وايي څوک چي متقي اوپرهېزګاروي هسي به راپاځي چي عملنامه به يې په ښي لاس اوزېږی به کوي خوښ به وي ﴿ فَمَنۡ أُوتِيَ كِتَٰبَهُۥ بِيَمِينِهِۦ فَأُوْلَٰٓئِكَ يَقۡرَءُونَ كِتَٰبَهُمۡ ﴾ نوهرچاته چي ورکړه شوې اعمالنامه دده په ښي لاس (چي پرهېزګاران او نېکمرغه دي نودغه اصحاب اليمين) لولي به اعمالنامې خپلې (په ډېره خوشحالي سره څکه دوی په ښي لاس اخيستي دي ﴿ وَلَا يُظۡلَمُونَ فَتِيلٗا ﴾ اوظلم به ونکړی شي (پر دوی) په اندازه دنري تار (چي په مينځ دخرمادزړي کي وي) ﴿ وَمَن كَانَ فِي هَٰذِهِۦٓ أَعۡمَىٰ فَهُوَ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ أَعۡمَىٰ وَأَضَلُّ سَبِيلٗا ﴾ اوهرڅوک چي په دغه دنياکي (دحق له پېژندلودزړه) ړوندوي نوهغه به په آخرت کي هم ړوندوي اوډېر ليری به وی (دنجات له لاري موندلونه)(۱) قتاده وايي: څوک چي پدې دنياکي دالله په نعمتونو، مخلوقاتو اوعجائباتوړوندوي نوبه دآخرت په چاروکي لا سخت ړونداولاره نه پيداکونکی ګمراه وي (دړندوپه شان) ﴿ وَإِن كَادُواْ لَيَفۡتِنُونَكَ عَنِ ٱلَّذِيٓ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ ﴾ اوپه تحقيق شان دادی چي نژدې وو کفارمشرکان چي واړوي تاله هغه (قرآنه) چي موږ وحی کړی تاته (له څينواوامرو اونواهيونه ﴿ لِتَفۡتَرِيَ عَلَيۡنَا غَيۡرَهُۥ ﴾ چي وتړې ته پرموږ بې له دې قرآنه (يعني له تعاليمو اوښوونو څخه يې مخالفت وکړې) ﴿ وَإِذٗا لَّٱتَّخَذُوكَ خَلِيلٗا ﴾ نوپه دغه وخت کي به دوی خامخاته په دوستي نېولی وای؛ مفسرين کرام وايي چي: مشرکانو ډېرځله داسي زيار يوست چي محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم له خپل دعوت اوبلني په يونه يوډول راوګرزوي يوداچي که چېري محمدصلی الله عليه وسلم ددوی اودپلرونو دخدايانو بدي بيانول پرېږدي نودغه مشرکان به دالله تعالی عبادت وکړي بل داکه چېري (محمد) ددوی څمکه لکه دبيت الله حرم اعلان کړي چي الله حرم ګڼلی نودوی به ايمان راوړي ياداچي څينو سردارانو اومشرانوورته ويل چي زموږ لپاره ځانګړی مجلس وټاکه اودبېوزلانو فقيرانو اجتماع دي له تاسره ځانګړي ترسره شي خوالله جل جلاله رسول الله صلی الله عليه وسلم له دې ټولو دوکوڅخه وژغوره او دايي ورته وفرمايل چي: هيڅکله ددوی وړانديزونو ته غوږمه ږده الله دي حافظ اوناصردی(۲) ﴿ وَلَوۡلَآ أَن ثَبَّتۡنَٰكَ ﴾ اوکه موږ ته په حق ټينګ کړی نه وای (په عصمت خپل سره ﴿ لَقَدۡ كِدتَّ تَرۡكَنُ إِلَيۡهِمۡ شَيۡـٔٗا قَلِيلًا ﴾ نوخامخاپه تحقيق نژدې شوی وې ته چي ميلان دي کړی وي دوی ته څه لږ (ميلان) ﴿ إِذٗا لَّأَذَقۡنَٰكَ ضِعۡفَ ٱلۡحَيَوٰةِ وَضِعۡفَ ٱلۡمَمَاتِ ﴾ (اوکه څه لږ ميل دي کړی وای) نوپه دغه وخت کي به خامخاپه تحقيق څکلی موږ تاته دوچند عذاب دژوندون (په دنياکي) اودوچند عذاب دمرګ (په آخرت

---

(۱) دغه ګرد دزړه ړوندوالی دی اوچابياويلي چي مرادځني دادی چي دحشرپه ورځ به يې الله ړوندراپاځوي چي الله فرمايي ﴿ وَنَحۡشُرُهُۥ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ أَعۡمَىٰ ١٢٤ قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرۡتَنِيٓ أَعۡمَىٰ وَقَدۡ كُنتُ بَصِيرٗا ١٢٥ ﴾ طه: ۱۲۴ - ۱۲۵.
(۲) ابن عباس رضی الله عنه وايي چي: رسول الله صلی الله عليه وسلم معصوم دی اودغه دامت لپاره لارښوونه ده چي په الهي احکامو کي مشرکانوته هيڅکله ميلان ونکړي. القرطبي ۱۰/۳۰۰.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کي) څکه دسترسرې ګناه هم ستره اوددوه ګون عذاب وړاو مستحق وي غرض اومقصدآیت شریف دادی چي دالله جل جلاله دفضل اومهرباني څرګندونه په پیغمبر ﷺ وشي چي په حق باندي بې تېنګار وربنېلی دی اوله فتني او ازموینت څخه بې ژغورلی که دالله پاک جل جلاله عصمت نه وای نوبه لږ څه دوی ته مایل شوی وای (لولا) دوجودي امتناع توری دی یعني دالله دعصمت له وجي دوی ته میلان کول ممتنع شول اوپه دې کي درسول الله صلی الله علیه وسلم دقدراومنزلت کوم تېینګ والی نشته بلکه آیت شریف دالله دسترفضل بیان کوي چي په نازولي پیغمبرصلی الله علیه وسلم بې پېرزوږی ﴿ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ عَلَيۡنَا نَصِيرًا﴾ بیابه نه وموندلی تادخان لپاره پرموږ باندي مددکونکی (چي زموږ عذاب له تانه دفع کړي) ﴿وَإِن كَادُواْ لَيَسۡتَفِزُّونَكَ مِنَ ٱلۡأَرۡضِ لِيُخۡرِجُوكَ مِنۡهَاۖ﴾ اوبېشکه شان دادی چي نژدې وو(مشرکان پخپل مکراو فریب چي ته بې خوږولی غوښتل بې) چي خامخاوخوځوي تاله څمکي (دمکې) لپاره ددوې چي وباسي تاله دغي (څمکي) ﴿وَإِذٗا لَّا يَلۡبَثُونَ خِلَٰفَكَ إِلَّا قَلِيلٗا﴾ اوپه دغه وخت کي (که بې ایستلی وی) نو درنګ به نه وی کړی وروسته له (ایستلو) دتانه مګرلږ وخت (دغه دالله سنت دی چي هیڅکله تغییرنه مومي کله هم چي کوم اُمت خپل پیغمبرشړلی دی دوی هم هلاک شوي. قتاده وایې چي دمکې مشرکانودرسول الله صلی الله علیه وسلم دایستلوتکل وکړخوالله پاک دوی درسول الله صلی الله علیه وسلم له ایستلوڅخه منع کړل ترڅوبې درسول الله صلی الله علیه وسلم دوتلوامروکړ ﴿سُنَّةَ مَن قَدۡ أَرۡسَلۡنَا قَبۡلَكَ مِن رُّسُلِنَاۖ﴾ (دغه وړاندي) طریقه زموږ (په مثل دهغې طریقې زموږده) په هغه چاکي چي په تحقیق لېږلی وو موږ پخواله تانه له رسولانو څموږ) یعني دغه دالله جل جلاله نه بدلېدونکی سنت اولاره ده چي کوم اُمت خپل پیغمبرله خپل تاتوبي وشړي الله به بې هلاکوي ﴿وَلَا تَجِدُ لِسُنَّتِنَا تَحۡوِيلًا﴾ اونه به مومې ته عادت زموږ ته هیڅ تغییر، تبدیل ﴿أَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ لِدُلُوكِ ٱلشَّمۡسِ﴾ قائموه (ای محمده) سم وږدوه سره له ټولو حقوقو) لمونځ وروسته له زواله دلمر ﴿إِلَىٰ غَسَقِ ٱلَّيۡلِ﴾ دشپې ترتیارې پوري ﴿وَقُرۡءَانَ ٱلۡفَجۡرِۖ﴾ اوله قرائت دفجریعني دسهارلمونځ اداکړه له دې لمانځه څخه بې په قرآن الفجرسره څکه تعبیروفرمایو چي هلته دقرائت اوږدوالی شته ﴿إِنَّ قُرۡءَانَ ٱلۡفَجۡرِ كَانَ مَشۡهُودٗا﴾ بېشکه چي قرآن لوستل (لمونځ کول) دفجرحاضر شوی دی (یعني ورته راحاضرېږي ملائکي دشپې اوورځي لکه چي په حدیث شریف کي راغلي دي تاسوته په نوبت پرېبنتې (ملائکي) په شپه اوورځ کي څي راځي اودمازیګراوسهارپه لمانځه کي سره یوځای کېږي مفسرین کرام وایې چي: په دې آیت شریف کي پنځوفرض لمونځونوته اشاره ده چي دلوک الشمس دلمرزوال ته وایې اودغه دماسپښین لمونځ دی سره له مازیګره اوغسق اللیل بیادماښام او ماسخوتن لمنځونه ښیي قرآن الفجر دسهاردلمانځه لپاره رمز راغلی دی[1] ﴿وَمِنَ ٱلَّيۡلِ فَتَهَجَّدۡ بِهِۦ نَافِلَةٗ لَّكَ﴾ اودشپې په یوه برخه کي

---

(۱) قرطبي وايې چي دغه دمفسرينوپه اجماع سره پنځوفرض لمنځونوته اشاره ده.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



خوب پرېږده او په لمانځه کي قرآن لوله دا زياتي عبادت دی خاص تاته ﴿ عَسَىٰٓ أَن يَبۡعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامٗا مَّحۡمُودٗا ﴾ نږدې چي وبه دروي تارب ستا په هغه مقام ستايلي شوي :(چي مقام د شفاعت عظمی دی هلته چي رومبني او وروستني به تاستايي مفسرين کرام وايي چي: (عسى) دالله په کلام کي دتحقيق لپاره راځي ځکه دغه دکريم وعده ده او هغه له خپلي وعدې څخه مخالفت نه کوي ځکه نوابن عباس رضی الله عنه ويلي چي دالله په کلام کي عسى واجبه اوقطعيت افاده کوي ﴿ وَقُل رَّبِّ أَدۡخِلۡنِي مُدۡخَلَ صِدۡقٖ ﴾ او ووايه (ای محمده!) ای ربه زما دننه کړه ما په ننويستلو رښتيا (ښوسره قبرته) ﴿ وَأَخۡرِجۡنِي مُخۡرَجَ صِدۡقٖ ﴾ اووباسه ما په ويستلو رښتيا (ښوسره له قبره دغه دابن عباس رضی الله عنه قول دی او حسن او ضحاک وايي چي: مرادله دخول څخه مدينه منوره اوله خروج نه مکه مکرمه ده اودا په هغه وخت کي چي مشرکانو دده دوژلو لپاره دوکه وسنجوله (۱) ﴿ وَٱجۡعَل لِّي مِن لَّدُنكَ سُلۡطَٰنٗا نَّصِيرٗا ﴾ او وګرزوه ماته له خپله جانبه خپله يو قوت مدد کونکی (ستا په دښمنانو چي ستا دين غالب شي اوالله يې دُعاومنله په دښمنانو يې بری ورکړ اودين يې په ټولو اديانو لوړکړ ﴿ وَقُلۡ جَآءَ ٱلۡحَقُّ وَزَهَقَ ٱلۡبَٰطِلُۚ إِنَّ ٱلۡبَٰطِلَ كَانَ زَهُوقٗا ﴾ او ووايه (ای محمده دوی ته کله چي مکې ته فاتح ننوتلې) راغی حق (اسلام) او په تېښته ورک شو باطل (کفراوشرک) بېشکه باطل دی ورکېدونکی (نور نه شرک شته او نه هم بت پرستي اوس دايمان نور خپور شو) بېشکه باطل بې ثباته زائليدونکی دی که څه هم يوځل بری پيداکړي خوبيا سمدستي زائلېږي لکه دبړبوکي لمبه غوندي ده چي ډېره لوړه شي خو سمدلاسه مړه شي. روايت کېږي کله چي نبي عليه السلام دمکی دفتحی په کال مکی ته ننوت نو په بيت الله شريفه کی ۳۶۰ بتان وو نبي عليه السلام به په هغه لرګي چي په لاس کي يې وه هغه په خېټه کي وواهه او ويل به يې: ﴿ جَآءَ ٱلۡحَقُّ وَزَهَقَ ٱلۡبَٰطِلُۚ إِنَّ ٱلۡبَٰطِلَ كَانَ زَهُوقٗا ﴾ نو هيڅ بت پاتي نشو چي پرمخي دي غورځېدلی نه وي او بيا يې فرمان صادر کړ او هغوی يې مات کړل (۲) ﴿ وَنُنَزِّلُ مِنَ ٱلۡقُرۡءَانِ مَا هُوَ شِفَآءٞ وَرَحۡمَةٞ لِّلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ او نازلوو (پرتا) له قرآنه هغه څېزچي شفادی د زړونو دجهل او ضلالت له رنځونو چي له تن څخه هوا، هوس، بخل و ناوليتوب ليري کوي) او رحمت دی لپاره دمؤمنانو (ځکه چي پکي ايمان او حکمت پټ دی) ﴿ وَلَا يَزِيدُ ٱلظَّٰلِمِينَ إِلَّا خَسَارٗا ﴾ او نه زياتوي دغه (قرآن) ظالمانو (کافرانو ته) په وخت داوريدلو کي) مګر زيان (چي ايمان وربانديي نه راوړي کفراو ضلالت يې زياتېږي ﴿ وَإِذَآ أَنۡعَمۡنَا عَلَى ٱلۡإِنسَٰنِ أَعۡرَضَ وَنَـَٔا

---

(۱) دغه قول طبري هم غوره کړی او مشهور هم دی اولومړی ځکه څرګند دی چي رومبی دبعث لفظ تېرشوی او مقصد دعاده چي الله مرګ او ژوند مي په ايمان کړي.
(۲) التفسير الكبير للرازي ۲۱ / ۲۳

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

بِجَانِبِهِۦ﴾اوكله چي نازل كړو نعمت په (نافرمان) انسان (له صحت ، امن اوسوكالي څخه ) نومخ وګرزوي (له ياده طاعته ) دالله اوليري شي تري په اړخ ګرزولو(په غروراوتكبرسره) ﴿وَإِذَا مَسَّهُ ٱلشَّرُّ كَانَ يَـُٔوسًا﴾ (اوكله چي ورسېږي ته ده شر نوشي نااُميده ) يعني كله چي بياكړاوونه اومصيبتونه ورته ورسېږي نودالله له رحمته ناهيلى شي په آيت شريف كي دانسان دطغيان تمثيل شوى دى كله چي نعمتونه اواحسانات وركول شي تكبراوخودبيني پيل كړي اوچيري چي بياتكاليف ورته مخ ته شي نومأيوس شي لكه چي بل ځاى الله فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ خُلِقَ هَلُوعًا إِذَا مَسَّهُ ٱلشَّرُّ جَزُوعًا وَإِذَا مَسَّهُ ٱلْخَيْرُ مَنُوعًا ﴾ المعارج: ١٩ - ٢١ ﴿ قُلْ كُلٌّ يَعْمَلُ عَلَىٰ شَاكِلَتِهِۦ ﴾ووايه (اى محمده دوى ته) چي هرڅوك عمل كوي په هغي طريقې چي مناسب دى له حاله دده سره( له هدايته اوضلالته كه چيري دانسان نفس پاك سپېڅلى وي نوبهتراو بختور كړه وړه څني صادرېږي اوكه چيري يې نفس كافراوفاجر وو نودشراو فساد كارونه به كوي ﴿ فَرَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَنْ هُوَ أَهْدَىٰ سَبِيلًا ﴾نورب ستاسي ښه خبردار دى په هغه چاچي هغه ښه موندونكى دى د سمي لاري (اوپه هغه چي هغه دضلالت لاره نيسي نو هريوه ته به له خپل عمل سره سمه جزاوركړي ﴿ وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلرُّوحِ قُلِ ٱلرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّى ﴾او پوښتنه كوي له تانه (اى محمده) له كيفيته او حقيقته د) روح څخه ورته ووايه (اى محمده!) چي روح له امره درب زمادى (چي پټ راز دى ،له رب العالمين څخه پرته بل چاته نه دى معلوم ﴿ وَمَآ أُوتِيتُم مِّنَ ٱلْعِلْمِ إِلَّا قَلِيلًا ﴾اونه دى دركړى شوى تاسي ته (برخه) له علم څخه مګرلږه (ځكه ستاسوعلم دالله ﷻ دعلم په وړاندي لږدى ﴿ وَلَئِن شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ بِٱلَّذِىٓ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ ﴾اوكه اراده وفرمايو موږ نوخامخابيرته به يوسو هغه شيزچي وحى كړى دى موږ تاته (ستاپه سينه كي دى دادالله احسان دى اوددغه بيرته وړل زموږپه وس كي شته) ﴿ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ بِهِۦ عَلَيْنَا وَكِيلًا ﴾بيابه نه مومې ته په دې كاركي پرموږ كوم وكيل( چي له موږ يې درواخلي اوبيرته يې دروړي ) ﴿ إِلَّا رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ ﴾لېكن ايرې مو ښوددا قرآن له جهته د) رحمت له جانبه درب ستا (چي ستااواصحابانو په سينوكي محفوظ دى ﴿ إِنَّ فَضْلَهُۥ كَانَ عَلَيْكَ كَبِيرًا ﴾ببشكه ددغه (الله) فضل دى پرتاډېرلوى (چي قرآن يې پرتانازل كړى دى ، محمود مقام يې دربښلى دى اوسيدالاولين والآخرين يې ټاكلى يې په تايې نبوت ختم كړى دى؛ په آيت شريف كي مقصود په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندي دالله احسان څرګندونه ده چي قرآن يې درباندي نازل كړى اوله دې څخه يې وېروي چي ورڅخه تقصيراوكوتاهي ونشي عليه السلام ته خطاب دى او مراديې اُمت دى ﴿ قُل لَّئِنِ ٱجْتَمَعَتِ ٱلْإِنسُ وَٱلْجِنُّ عَلَىٰٓ أَن يَأْتُوا۟ بِمِثْلِ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانِ لَا يَأْتُونَ بِمِثْلِهِۦ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيرًا ﴾(ووايه (اى محمده دوى ته) خامخاكه يوځاى ټول راټول شي انسانان اوپېريانان په دې چي راوړي په شان ددې (قرآن) را به نه وړاى شى اګركه شي ځيني ددوى ځينو نورو سره مرستيالان ) يعني كه دفصاحت ګرد مېړني له

Bawar.net


پېريانو او انسانانو سره راغونډ شي او وغواړي چې ددې قرآن په مثل څه وليکي خو په توان کي به يې نه وي که څه هم ځيني د دوی ځينونورو لره مرسته کونکي هم وي داد هيچا په توان کي نشته ﴿ وَلَقَدۡ صَرَّفۡنَا لِلنَّاسِ فِي هَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانِ مِن كُلِّ مَثَلٖ ﴾ او خامخا په تحقيق مکرر بيان کړی دی موږ خلکو ته په دې قرآن کي مثل له هر قسمه مثاله (لکه ترهيب، ترغيب، قصې او اخبار چې عبرت پرې واخلي ﴿ فَأَبَىٰٓ أَكۡثَرُ ٱلنَّاسِ إِلَّا كُفُورٗا ﴾ نو غاړه کښېږدي نښوده اکثره خلکو (او په هيڅ راضي نشول) مګر په ناشکري او له حق څخه په انکار باندي يعني سره له دومره دليلونو او څرګند برهانونو منع وکړه اکثره خلکو له منلو يې او د حق انکار يې وکړ د الله او رسول الله تکذيب ته يې ملا وتړله.

**بلاغت:**

پدې کلام الهي کي چې د بديع او بيان کومي ښکلاوي شته دا دي:

۱- استعاره لکه چې فرمايي: ﴿ كُلَّ أُنَاسِۭ بِإِمَٰمِهِمۡۖ ﴾ امام هغه چاته وايي چې په لمانځه کي ترمخ دريږي او دلته د کتاب د اعمالو لپاره استعاره راوړل شوې دی ځکه هغه هم د انسان ملګری او د قيامت په ورځ به يې له مخي وي.

۲ - پدې کلام کي چې الله جل جلاله فرمايي: ﴿ وَلَا يُظۡلَمُونَ فَتِيلٗا ﴾ دلته تمثيلي استعاره ده او دا هغه مثال دی چې د ډېر وړوکي څيز لپاره استعماليږي يعني د دوی د عملونو به بشپړ اجر ورکول شي ديو نري تار چې د خرما د زړي په درز کي وي د هغه په اندازه به هم ظلم ورسره ونشي.

۳ – د طباق صنعت لکه چې: ﴿ ضِعۡفَ ٱلۡحَيَوٰةِ وَضِعۡفَ ٱلۡمَمَاتِ ﴾ په کلام کي راغلی دی.

۴ – کله چې الله فرمايي ﴿ إِنَّ قُرۡءَانَ ٱلۡفَجۡرِ كَانَ مَشۡهُودٗا ﴾ دلته مرسل مجاز دی چې د جزء اطلاق په کل وکړ چې د سهار قرائت او د غه د سهار په لمانځه کي يو جزء دی او مراد ځني لمونځ دی او د دوی ترمينځ د جزئيت علاقه موجوده ده.

۵ – اظهار د اضمار په ځای کي چې زياته پاملرنه افاده کړي فرمايي: ﴿ إِنَّ قُرۡءَانَ ٱلۡفَجۡرِ كَانَ مَشۡهُودٗا ﴾ چې د غه وروسته له دې قول نه راغلی ﴿ وَقُرۡءَانَ ٱلۡفَجۡرِۖ ﴾.

۶ – پدې کلام کي چې الله تعالی فرمايي: ﴿ فَمَنۡ أُوتِيَ كِتَٰبَهُۥ بِيَمِينِهِۦ ﴾ ﴿ وَمَن كَانَ فِي هَٰذِهِۦٓ أَعۡمَىٰ ﴾ وروسته له عملنامې څخه تفصيل بعد الاجمال صنعت راغلی چې دا هم له بديعي محسناتو څخه ګڼل کيږي.

۷ – لطيفه مقابله چې: ﴿ أَدۡخِلۡنِي مُدۡخَلَ صِدۡقٖ ﴾ او ﴿ وَأَخۡرِجۡنِي مُخۡرَجَ صِدۡقٖ ﴾ او ﴿ وَقُلۡ جَآءَ ٱلۡحَقُّ وَزَهَقَ ٱلۡبَٰطِلُۚ ﴾ ترمينځ راغلي ده.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


٨ - دشر اسناد بل چاته او دخیر الله تعالی ته لکه چي فرمايي ﴿ أَنْعَمْنَا عَلَى الْإِنسَانِ .... وَإِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ ﴾ چي بندګانو ته له الله تعالی سره دادب کولو تعليم او ښوونه ورکړي

لطيفه:

روايت کېږي چي يو عالم چي په قرآنکريم کي داستعارې او مجاز څخه منکر وو بل لوړپوړي عالم فاضل ته راغی او خپل له مجاز څخه انکارېي ورته وښودل اتفاقًا دغه پوښتونکی منکر عالم ړوند هم وو نو هغه فاضل عالم په ځواب کي داسي ورته وويل چي: دالله تعالی په دې قول کي څه وايې چي فرمايي ؟ ﴿ وَمَن كَانَ فِي هَٰذِهِ أَعْمَىٰ فَهُوَ فِي الْآخِرَةِ أَعْمَىٰ ﴾ آيا مراد له ړوندوالي څخه حقيقي ړوندوالی دی او که مجازي ړوندوالی چي دبصيرت نېستي ته وايې نو پوښتونکی حيران او بې ځوابه شو.

***

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَقَالُوا لَن نُّؤْمِنَ لَكَ حَتَّىٰ تَفْجُرَ لَنَا مِنَ الْأَرْضِ يَنبُوعًا (٩٠) أَوْ تَكُونَ لَكَ جَنَّةٌ مِّن نَّخِيلٍ وَعِنَبٍ فَتُفَجِّرَ
الْأَنْهَارَ خِلَالَهَا تَفْجِيرًا (٩١) أَوْ تُسْقِطَ السَّمَاءَ كَمَا زَعَمْتَ عَلَيْنَا كِسَفًا أَوْ تَأْتِيَ بِاللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ قَبِيلًا (٩٢)
أَوْ يَكُونَ لَكَ بَيْتٌ مِّن زُخْرُفٍ أَوْ تَرْقَىٰ فِي السَّمَاءِ وَلَن نُّؤْمِنَ لِرُقِيِّكَ حَتَّىٰ تُنَزِّلَ عَلَيْنَا كِتَابًا نَّقْرَؤُهُ ۗ قُلْ سُبْحَانَ
رَبِّي هَلْ كُنتُ إِلَّا بَشَرًا رَّسُولًا (٩٣) وَمَا مَنَعَ النَّاسَ أَن يُؤْمِنُوا إِذْ جَاءَهُمُ الْهُدَىٰ إِلَّا أَن قَالُوا أَبَعَثَ اللَّهُ بَشَرًا رَّسُولًا
(٩٤) قُل لَّوْ كَانَ فِي الْأَرْضِ مَلَائِكَةٌ يَمْشُونَ مُطْمَئِنِّينَ لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِم مِّنَ السَّمَاءِ مَلَكًا رَّسُولًا (٩٥)
قُلْ كَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ ۚ إِنَّهُ كَانَ بِعِبَادِهِ خَبِيرًا بَصِيرًا (٩٦) وَمَن يَهْدِ اللَّهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ ۖ وَمَن
يُضْلِلْ فَلَن تَجِدَ لَهُمْ أَوْلِيَاءَ مِن دُونِهِ ۖ وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ عُمْيًا وَبُكْمًا وَصُمًّا ۖ مَّأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ ۖ كُلَّمَا
خَبَتْ زِدْنَاهُمْ سَعِيرًا (٩٧) ذَٰلِكَ جَزَاؤُهُم بِأَنَّهُمْ كَفَرُوا بِآيَاتِنَا وَقَالُوا أَإِذَا كُنَّا عِظَامًا وَرُفَاتًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ خَلْقًا
جَدِيدًا (٩٨) ۞ أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّ اللَّهَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ قَادِرٌ عَلَىٰ أَن يَخْلُقَ مِثْلَهُمْ وَجَعَلَ لَهُمْ أَجَلًا لَّا رَيْبَ
فِيهِ فَأَبَى الظَّالِمُونَ إِلَّا كُفُورًا (٩٩) قُل لَّوْ أَنتُمْ تَمْلِكُونَ خَزَائِنَ رَحْمَةِ رَبِّي إِذًا لَّأَمْسَكْتُمْ خَشْيَةَ الْإِنفَاقِ ۚ وَكَانَ الْإِنسَانُ
قَتُورًا (١٠٠) وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَىٰ تِسْعَ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ ۖ فَاسْأَلْ بَنِي إِسْرَائِيلَ إِذْ جَاءَهُمْ فَقَالَ لَهُ فِرْعَوْنُ إِنِّي لَأَظُنُّكَ يَا مُوسَىٰ
مَسْحُورًا (١٠١) قَالَ لَقَدْ عَلِمْتَ مَا أَنزَلَ هَٰؤُلَاءِ إِلَّا رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ بَصَائِرَ وَإِنِّي لَأَظُنُّكَ يَا فِرْعَوْنُ مَثْبُورًا
(١٠٢) فَأَرَادَ أَن يَسْتَفِزَّهُم مِّنَ الْأَرْضِ فَأَغْرَقْنَاهُ وَمَن مَّعَهُ جَمِيعًا (١٠٣) وَقُلْنَا مِن بَعْدِهِ لِبَنِي إِسْرَائِيلَ اسْكُنُوا الْأَرْضَ فَإِذَا
جَاءَ وَعْدُ الْآخِرَةِ جِئْنَا بِكُمْ لَفِيفًا (١٠٤) وَبِالْحَقِّ أَنزَلْنَاهُ وَبِالْحَقِّ نَزَلَ ۗ وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا مُبَشِّرًا وَنَذِيرًا (١٠٥) وَقُرْآنًا فَرَقْنَاهُ
لِتَقْرَأَهُ عَلَى النَّاسِ عَلَىٰ مُكْثٍ وَنَزَّلْنَاهُ تَنزِيلًا (١٠٦) قُلْ آمِنُوا بِهِ أَوْ لَا تُؤْمِنُوا ۚ إِنَّ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ مِن قَبْلِهِ إِذَا يُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ
يَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ سُجَّدًا (١٠٧) وَيَقُولُونَ سُبْحَانَ رَبِّنَا إِن كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا لَمَفْعُولًا (١٠٨) وَيَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ يَبْكُونَ وَيَزِيدُهُمْ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

خُشُوعًا ۩ (١٠٩) قُلِ ٱدۡعُواْ ٱللَّهَ أَوِ ٱدۡعُواْ ٱلرَّحۡمَٰنَۖ أَيّٗا مَّا تَدۡعُواْ فَلَهُ ٱلۡأَسۡمَآءُ ٱلۡحُسۡنَىٰۚ وَلَا تَجۡهَرۡ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتۡ بِهَا
وَٱبۡتَغِ بَيۡنَ ذَٰلِكَ سَبِيلٗا (١١٠) وَقُلِ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ ٱلَّذِي لَمۡ يَتَّخِذۡ وَلَدٗا وَلَمۡ يَكُن لَّهُۥ شَرِيكٞ فِي ٱلۡمُلۡكِ وَلَمۡ يَكُن لَّهُۥ وَلِيّٞ مِّنَ ٱلذُّلِّۖ
وَكَبِّرۡهُ تَكۡبِيرَۢا (١١١) ﴾ الإسراء: ٩٠ – ١١١

## مناسبت او تړاو:

کله چې الله تعالی قرآنکریم او پکې هغه دلائل چې په قطعي توګه د رسول الله صلی الله علیه وسلم رښتنولي ثابتوي یادکړل چې دغه أمي نبي پیغمبر د دغي قرآني معجزې راوړونکی دی او دوی ته یې چلینج ورکړ چې دغه رنګه کلام راوړئ خو دوی په ښکاره عاجزي سره عاجز شول بیا د لته د کفارو هغه ګمراهي او سرټمبګي بیانوي چې دوی له قرآنه پرته نوري مادي معجزې او خوارق اقتراح کړل وروسته د حضرت عیسی علیه السلام کیسه بیانوي او وروسته د فرعون تکذیب رااخلي چې د څومره ډېرو معجزاتو او خوارقو سره سره یې موسی علیه السلام نه مانو تر څو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د مشرکانو د تکذیب او دروغجن بللو په هکله تسلیت او ډاډینه ورکړي او بیا سورت د الله جل جلاله د قدرت او وحدانیت په دلائلو پای ته رسوي،

## لغتونه:

(کسفا) ټوټې فرآء وایي چې: له یو اعرابي څخه مي واورېدل چې جامې پلورونکي ته یې ویل (أعطني کسفة) یعني ماته یوه ټوټه راکړه ([1]) (قبیلا) مخامخ (ترقی) وخېژې (خبت) چې مړشي ویل کېږي (خبت النار) کله چې ومري او اور او شغلې یې مړې شي او (همدت) بیا هغه اور ته وایي چې یو مخ ایره ټول ایرې شي ([2]) (قتورا) بخیل (مثبورا) هلاک شوی (ثبور) هلاکت ته وایي (لفیفا) د مختلفو ډلو څخه قومي جوړښت جوهري وایي چې (لفیف) د خلګو هغي اجتماع ته ویل کېږي چې له مختلفو قبیلو څخه تشکیل شوی وي. ویل کېږي (جآء القوم بلفهم ولفیفهم) یعني قوم راغی له یوه مخه نه یې (لف) پاتي دی او نه هم لفیف (مکث) درنګ کول (تخافت) ته کلام پټول (خافت فی الکلام) معنادا چې داسي وروخبري وکړي چې هیڅ اهم ونه اورېدې (الأذقان) د ذقن جمع او (زنی) ته وایي هغه چې د واړه بارخوګان ورباندي جمع کېږي.

## د نزول سبب یې:

أ- ابن عباس رضی الله عنه وایي چې: د قریښو مشران د کعبې په خواکي سره راټول شول او وېې ویل چې محمد ته یو څوک ورواستوئ او ورسره خبري او مباحثه وکړئ څو چې ملامت شي نو یې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته څوک واستاوو چې د قوم مشران دي راغوند شوي غواړي چې له تا سره خبري وکړي هغه هم په بېړه راغی او د دوی دایمان راوړلو تلوسه یې درلوده دوی ورته وویل: (ای محمده! موږ په خدای قسم که په ټولو عربو کي داسي څوک لیدلی دی چې خپل قوم ته هغه څه ورکړي چې تا ورکړل تا پلرونه وښکنځل دین ته دي پېغور ورکړ هغوی دي ناپوهان وګڼل ټولنه دي تیت او پرک کړه که ته دغه کارونه د دې لپاره کوې چې مال دولت پیدا کړې نو موږ به له خپلو مالونو څخه دومره درکړو چې تر ټولو

---

([1]) تفسیر کبیر امام رازي ٢١ / ٥٢
([2]) البحر ٢ / ٢٧

Bawar.net



ته زيات مالدارشې اوكه ته پدې سره دمنصب غوښتونكى يې موږ به دې سردار مقرركړو اوكه دغه كارونه تاته دپېريانوله خواپېښېږي نوموږ به خپل مالونه ستادعلاج اوتداوي په لاره كې ولګوو چې روغ شې اوكه نه ستاپه باب موږ عذرلرو نورسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: په ماباندې هغه څه نشته چې تاسووايا ست زه ستاسې دمالونو غوښتونكى نه يم اونه دمنصب اوپاچهي آرزولرم خوالله جل جلاله زه ستاسي لورته رااستولى يم كه له ماڅخه دالله جل جلاله كلام ومنئ چې مادرته راوړى نوستاسې ددنيااوآخرت ګټه ده اوكه يې ونه منئ زماالله جل جلاله ته صبردى څوزمااوتاسو ترمينځ هغه فيصله وكړي نودوى ورته وويل چې: اى محمده! كه ته زموږ وړانديزونه ،نه منې نوته پوهېږې چې ترهرچاموږ په تنګسياكې اوسو كاختي راباندې راغلي نوالله ته دې سوال وكړه چې دغه غرونه روان كړي دغه مځكې وېرې اوپراخې شي اورودونه ،نهرونه وبهېږي اوزموږله پلرونو څخه يوڅوک راپاڅوي چې موږ ستاپه هكله ورڅخه وپوښتو چې آياستاويناحق ده؟ بل داچې له الله وغواړه درته باغونه اوبنګلې قصرونه جوړكړي چې دسرو اوسپينوزرو وي نوبه له موږ څخه بې پرواشې الله تعالى داآيت شريف نازل كړچې: ﴿ وَقَالُواْ لَن نُّؤۡمِنَ لَكَ حَتَّىٰ تَفۡجُرَ لَنَا مِنَ ٱلۡأَرۡضِ يَنۢبُوعًا ﴾(١)

ب - له ابن عباس رضى الله عنه څخه روايت كېږي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په مكه مكرمه كې په پټه هستوګنه كوله اوكله چې به يې له خپلو اصحابانو رضى الله عنهم سره لمونځ كاوو نوپه لوړ آوازبه يې قرآن كريم لوست اوچې مشركانوبه واوريدونوبه يې قرآنكريم ته ښكنځل كول اوهغه چاته چې قرآنكريم يې رالېږلى اوچې چاته يې وركړى تولوته به يې بد رد ويل نوالله تعالى خپل پيغمبرته وفرمايل: ﴿ وَلَا تَجۡهَرۡ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتۡ بِهَا وَٱبۡتَغِ بَيۡنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا ﴾(٢)

تفسير:

﴿ وَقَالُواْ لَن نُّؤۡمِنَ لَكَ حَتَّىٰ تَفۡجُرَ لَنَا مِنَ ٱلۡأَرۡضِ يَنۢبُوعًا ﴾(اوواېي (مشركان) له سره به ايمان رانه وړو په تا(اى محمده!) ترهغه پورې چې ته جاري كړې له ځمكې (دمكې تل بهېدونكې) چينه (چې تل له اوبوډكه وي اونه وچېږي) څرنګه چې دقرآنكريم اعجاز څرګندشواوپردوى دليل ثابت شونودوى په وړانديزونو پيل وكړ(چې موږ ته دمكې ځمكه كرونده كړه اوچينې راته وبهوه) ﴿ أَوۡ تَكُونَ لَكَ جَنَّةٞ مِّن نَّخِيلٖ وَعِنَبٖ ﴾ياچې وي تاته يوباغ له خرماوو اوانګورو ﴿ فَتُفَجِّرَ ٱلۡأَنۡهَٰرَ خِلَٰلَهَا تَفۡجِيرًا ﴾نوروانې كړې ته ويالې په مينځ ددې باغ كې په روانولو سره (چې خوراپه قوت اوزياتوالي وي) ﴿ أَوۡ تُسۡقِطَ ٱلسَّمَآءَ كَمَا زَعَمۡتَ عَلَيۡنَا كِسَفًا ﴾ياچې راوغورځوې ته له آسمانه لكه چې ګمان كوې ته پرموږ باندې ټوټې ټوټې (لكه چې موږ وېروې) دغه دريم وړانديز دى چې دوى به كاوو يعني لكه چې ته ګمان كوې په موږ به الله عذاب راولي نوله آسمانه ټوټې راوغورځوه كه موږ ايمان نه راوړو. مفسرين كرام وايې دوى پدې

(١) زادالمسير ٥/ ٨٥
(٢) اسباب النزول ص: ١٧٠

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



سره دالله تعالى هغه قول ته اشاره كوي چي فرمايي: ﴿إِن نَّشَأۡ نَخۡسِفۡ بِهِمُ ٱلۡأَرۡضَ أَوۡ نُسۡقِطۡ عَلَيۡهِمۡ كِسَفٗا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ﴾ ﴿أَوۡ تَأۡتِيَ بِٱللَّهِ وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ قَبِيلًا﴾ ياچي راولې ته الله اوپرښتې مخامخ (اوموږ يې ووينو) ﴿أَوۡ يَكُونَ لَكَ بَيۡتٞ مِّن زُخۡرُفٍ﴾ ياچي وي تاته يو كور له سروزرو نه (دختو او ډبرو كور نه وي) ﴿أَوۡ تَرۡقَىٰ فِي ٱلسَّمَآءِ وَلَن نُّؤۡمِنَ لِرُقِيِّكَ حَتَّىٰ تُنَزِّلَ عَلَيۡنَا كِتَٰبٗا نَّقۡرَؤُهُۥ﴾ ياچي پورته په آسمان كي وخېژې اوله سره به ايمان نه راوړو (په تش) ختلوستا (آسمان ته ترهغوپوري چي راكوزكړې پرموږ باندي داسي يو كتاب چي لولويې (اوستاتصديق كوي) دغه شپږمه او وروستى اقتراح ده خو په مجموع كي داټولي ددوى په بې عقلي اوجهل باندي دلالت كوي چي دوى دالله په سنت او حكمت هډو له سره نه پوهېږي ځكه همداسي وړانديزونه كوي ﴿قُلۡ سُبۡحَانَ رَبِّي هَلۡ كُنتُ إِلَّا بَشَرٗا رَّسُولٗا﴾ ووايه (اى محمده دوى ته) پاكي ده رب زماته آيايم زه (يعني نه يم زه) مگريوانسان رالېږلى شوى (په شان دنورو رسولانو) يعني سبحان الله آيازه الله يم چي تاسو له ماڅخه هسي غوښتني كوئ زه خونه يم مگريوازي تاسوته يوبشري استازى يم بيانو ولي دومره عناد انكاركوئ؟ ﴿وَمَا مَنَعَ ٱلنَّاسَ أَن يُؤۡمِنُوٓاْ إِذۡ جَآءَهُمُ ٱلۡهُدَىٰٓ إِلَّآ أَن قَالُوٓاْ أَبَعَثَ ٱللَّهُ بَشَرٗا رَّسُولٗا﴾ اونه دي منع كړي دې خلكولره له دې نه چي ايمان راوړي كله چي راغى دوى ته بيان دحق (درسول په ژبه) مگرمنع كړي دي خلك) دې خبري چي ويلى به دوى آيارالېږلى دى الله يوسړى رسول؟ (پرښته ولي نه رالېږي؟) (نوالله پاک ددوى دخبري ترديد دا ډول فرمايي: ﴿قُل لَّوۡ كَانَ فِي ٱلۡأَرۡضِ مَلَٰٓئِكَةٞ يَمۡشُونَ مُطۡمَئِنِّينَ﴾ (ووايه (اى محمده دوى ته!) كه چېري په ځمكه كي پرښتې واى چي په آرام سره گرځېدلاى (په پښوخپلو) ﴿لَنَزَّلۡنَا عَلَيۡهِم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ مَلَكٗا رَّسُولٗا﴾ (نوخامخاموږبه پردوى له آسمانه يوه پرښته رانازله كړي واى) ځكه دالله تعالى حكمت همداسي جاري دى چي هرقوم ته له خپله جنسه پيغمبر وراستوي ترڅوچي هغوى يې په خبره وپوهېږي اومخاطبه يې ورته آسانه وي پدې كي دمشركانو دمنطق تجهيل اوددوى تسفيه ده ﴿قُلۡ كَفَىٰ بِٱللَّهِ شَهِيدَۢا بَيۡنِي وَبَيۡنَكُمۡ﴾ ووايه (اى محمده دوى ته!) كافي دى الله شاهد په مينځ زما اوستاسي كي (زما په رښتنولي باندي) ﴿إِنَّهُۥ كَانَ بِعِبَادِهِۦ خَبِيرَۢا بَصِيرٗا﴾ بېشكه چي الله په خپلو بندگانو ښه خبردار دى ښه ليدونكى دى (او دوى ته به ددوى په اعمالو جزا وركړي) ﴿وَمَن يَهۡدِ ٱللَّهُ فَهُوَ ٱلۡمُهۡتَدِ﴾ اوهرچاته چي الله سمه لاره وښودله نو همغه دسمي لاري موندونكى دى (نېكمرغه شو) ﴿وَمَن يُضۡلِلۡ فَلَن تَجِدَ لَهُمۡ أَوۡلِيَآءَ مِن دُونِهِۦ﴾ اوهرڅوک چي يې گمراه كړى (الله) نوله سره به نه مومې دوى ته نوردوستان پرته له الله (چي سمه لاره ور وښيي يعني هرڅوک چي الله يې دهغه دبدبختي اوتعنت له مخي گمراه كړي نو بيابه يې څوک مرستندوى پيدانشي چي دالله له عذابه يې وژغوري ﴿وَنَحۡشُرُهُمۡ يَوۡمَ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ٱلۡقِيَٰمَةِ عَلَىٰ وُجُوهِهِمۡ ﴾ اوراجمع به کړو موږ دوی لره دقیامت په ورځ (نسکور) پرمخونو خپلو(چي ددوزخ په لوربه بېي پربښتې له پښونیولي کښوي لکه چي په دنیاکي یوچاته په ډېرسپک نظرکتلی او عذاب ورکولی شي ﴿ عُمۡيٗا وَبُكۡمٗا وَصُمّٗاۖ ﴾ چي ړانده ، ګونګیان اوکانه به وي یعنې حواس به یې کار نشي کولای نه به ویني ، نه به غږ کولای شي اونه به اورېدلای شي بیابه الله بیرته ددوی اورېدل ، لیدل اونطق ورته راستون کړي ، اوربه ویني دهغه غږ اوچیغي به اوري اوخبري به کوي لکه چي الله له دوی نه حکایت کوي له أنس رضی الله عنه څخه روایت دی چي چاوویل: یارسول الله !څرنګه به خلګ په مخونو راپاڅول شي ؟ نورسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل هغه ذات چي په پښوبې روان کړي په دې هم قادردی چي په مخونو بې روان کړي (١) ﴿ مَّأۡوَىٰهُمۡ جَهَنَّمُۖ كُلَّمَا خَبَتۡ زِدۡنَٰهُمۡ سَعِيرٗا ﴾ ځای ددوی به دوزخ وي هرکله چي غلي شي (لمبې یې )زیات به کړو دوی ته تېز اور(او سکروټې اولمبې یې ) (٢) ﴿ ذَٰلِكَ جَزَآؤُهُم بِأَنَّهُمۡ كَفَرُواْ بِـَٔايَٰتِنَا وَقَالُوٓاْ أَءِذَا كُنَّا عِظَٰمٗا وَرُفَٰتًا أَءِنَّا لَمَبۡعُوثُونَ خَلۡقٗا جَدِيدًا ﴾ دا(عذاب) جزاددوی دی په سبب ددې چي بېشکه دوی کافران شوي ووپه آیتونو زموږ اوویل به دوی چي آیاکله چي شوموږ هډوکي اوخاوري رژېدلي آیاخامخاموږبیا پورته کېدای شوپه نوي پیدا ایښت سره (دوهم ځل؟) الله تعالی ددوی دتردید لپاره هسي فرمایي: ﴿ أَوَلَمۡ يَرَوۡاْ أَنَّ ٱللَّهَ ٱلَّذِي خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ قَادِرٌ عَلَىٰٓ أَن يَخۡلُقَ مِثۡلَهُمۡ ﴾ آیانه ګوري دوی چي بېشکه هغه الله چي پیداکړي یې ده ځمکه او آسمانونه (ومابینهما ) قادردی په دې چي پیداکړي په مثل ددوی (نور ډېرخلګ وروسته له فناڅخه څکه څوک چي په لومړي ځل څوک پیداکولای شي هغه یې وروسته له مرګه ډېرآسانه بیرته راپاڅولی هم شي. په البحرالمحیط کي وایي چي دوی ته الله پخپل سترقدرت اورسېدلي حکمت تنبیه ورکړه چي ویې فرمایل: ﴿ أَوَلَمۡ يَرَوۡاْ ﴾ دغه انکاري استفهام دی چي دوی به دبعث اونشورپه هکله استبعاد کاوو اوپردوی باندي دلیل راوړل دي چي دوی خودالله سترقدرت ولیدچي هسي ستراجرام بې پنځولي نوڅرنګه دوی په پیدا ایښت ددې دومره مخلوق اقرارکوي ؟ اوبیایې له بعثت څخه انکار کوي (٣) ﴿ وَجَعَلَ لَهُمۡ أَجَلٗا لَّا رَيۡبَ فِيهِ ﴾ اومقرره کړي یې ده دوی ته یوه نېټه چي نشته هیڅ شک په هغه کي ﴿ فَأَبَى ٱلظَّٰلِمُونَ إِلَّا كُفُورٗا ﴾ نومنع وکړه ظالمانو او ونې نه منله هیڅ شی ، مګرناشکري (اوله بعث او حشره څخه یې انکاروکړ ) ﴿ قُل لَّوۡ أَنتُمۡ تَمۡلِكُونَ خَزَآئِنَ رَحۡمَةِ رَبِّيٓ ﴾ ووایه (ای محمده ! دوی ته ای معاندینو اومکابرینو چي دمعجزاتو اوخارق العاده پېښو وړاندیزونه کوی) که چېري تاسي دخزانو مالکان شی درحمت درب زما ﴿ إِذٗا لَّأَمۡسَكۡتُمۡ خَشۡيَةَ ٱلۡإِنفَاقِۚ ﴾ نوپه دغه وخت کي هرو مرو منع به راوړي (بخل به کوي

---

(١) متفق علیه .

(٢) په التسهیل کي وایي چي مرادخني دادی کله چي اورددوزخیانو غوښي وسوځوي نوبه یې لمبې غلي شي بیابه نور وجودونه ورکول شي اوبیابه اورپه غرغندوشي ترپخوابه لازیات وي.

(٣) الکشاف ٢ / ٢٩٦

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



په ورکړه د صدقاتو ) له ویرې د (خلاصېدلو د مال ) په انفاق سره ﴿ وَكَانَ ٱلۡإِنسَٰنُ قَتُورٗا ﴾ او دی انسان بخیل (اومنع کونکی ) دغه د عبدالله بن عباس رضی الله عنه تفسیر دی چې ( قتور ) یې بخیل اومنوع کړلی زمخشري وایې چې : د دغه بخل مبالغه په (شُح ) سره کېږي هغه چې وروستنی مرحله یې ده چې وهم نه وررسېږي ، بیاالله تعالی دذې یادونه کوي چې د ډېرو معجزاتو څرګندېدل ایمان ته په منکرو زړونو کې خای نه پرانېزي هم دغه موسی علیه السلام دی چې نه (٩ )معجزاتي ورکول شوې خوبیاهم فرعون اودقوم اشراف یې وربانديې ایمان نه راوړي اوهلاکېږي ﴿ وَلَقَدۡ ءَاتَيۡنَا مُوسَىٰ تِسۡعَ ءَايَٰتِۭ بَيِّنَٰتٖۖ ﴾ اوقسم دی چې ورکړی دی موږ موسی ته نهه معجزې ښکاره (په نبوت دده اودهغه څه چې له الله څخه یې راوړي (دغه نه معجزې (یدبیضاء، عصا ، طوفان، ملخ، قمل، ضفادع، دم، د دریاب څېرېدل اوقحط دی پنځه یې په سورة الاعراف کې راغلي چې﴿ فَأَرۡسَلۡنَا عَلَيۡهِمُ ٱلطُّوفَانَ وَٱلۡجَرَادَ وَٱلۡقُمَّلَ وَٱلضَّفَادِعَ وَٱلدَّمَ ءَايَٰتٖ مُّفَصَّلَٰتٖ ﴾ الأعراف: ١٣٣- اوباقي پاتي یې په جلا جلا توګه دي ﴿ فَسۡـَٔلۡ بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ إِذۡ جَآءَهُمۡ ﴾ نو پوښتنه وکړه (ای محمده ! ) له بني اسرائیلو چې کله راغی موسی دوی ته ) نو دموسی او فرعون ترمینځ څه پېښه وشوه ؟ څکه دوی ته دتورات له مخې معلومات شته . امام رازي وایې چې: مقصد له پوښتلو دبني اسرائیلو څخه دانه دی چې ددوی له علم څخه استفاده وشي بلکه داچې عامو یهودانو ته څرګنده شي اوعلماء یې وپوهېږي چې کوم څېزرسول الله وایې هغه رښتیادی نودغه به استشهادي پوښتنه وي (١)﴿ فَقَالَ لَهُۥ فِرۡعَوۡنُ إِنِّي لَأَظُنُّكَ يَٰمُوسَىٰ مَسۡحُورٗا ﴾ نو ویل دغه (موسی ) ته فرعون چې بېشکه زه پرتا ګومان کوم ای موسی د سحرکړی شوي ) (عقل دي بایللی شوی دي ) ﴿ قَالَ لَقَدۡ عَلِمۡتَ مَآ أَنزَلَ هَٰٓؤُلَآءِ إِلَّا رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ بَصَآئِرَ ﴾ وویل (موسی بیا ) خامخاپه تحقیق پوهېږې ( ته په خپل زړه کې) چې نه دی رانازل کړي دغه (نهه ) معجزې هیڅوا ) مګررب دآسمانواوځمکې معجزې ښکاره (چې هره یوه یې زمایه نبوت او رښتنولي شاهدي ورکوي اوخلګوته دالله جل جلاله قدرت وربښیې خوته متکبراو معاندیې ﴿ وَإِنِّي لَأَظُنُّكَ يَٰفِرۡعَوۡنُ مَثۡبُورٗا ﴾ اوپه تحقیق زه خامخاپرتا ګمان کوم ای فرعونه دهلاک شوي (خُسران کونکي) ﴿ فَأَرَادَ أَن يَسۡتَفِزَّهُم مِّنَ ٱلۡأَرۡضِ ﴾ نواراده وکړه (فرعون ) ددې چې وخوځوي او(لیري کړي دوی له مځکې (دمصرڅخه ) ﴿ فَأَغۡرَقۡنَٰهُ وَمَن مَّعَهُۥ جَمِيعٗا ﴾ نو ډوب موکړ فرعون اوهرهغه څوک چې له ده سره ووتول (په دریاب کې) ﴿ وَقُلۡنَا مِنۢ بَعۡدِهِۦ لِبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ٱسۡكُنُواْ ٱلۡأَرۡضَ ﴾ اوومو ویل: وروسته (له غرق ) دفرعون بني اسرائیلو(اولنبکروته یې) اوسئ تاسې (په دې) ځمکه (دمصرکې) ﴿ فَإِذَا جَآءَ وَعۡدُ ٱلۡأٓخِرَةِ جِئۡنَا بِكُمۡ لَفِيفٗا ﴾ نوکله چې دآخرت وعده راشي نوبه راولوتاسې (په محشرکې مؤمنان کافران، نېکمرغه ،بدمرغه ،فاسقان، نیکوکاران ) ګډ وډ (بیابه ستاسې په مینځ کې دسعداء و اواشقیاووجلاوالی وکړو وروسته الله تعالی دقرآنکریم دتعظیم او د هغه دلوړقدرلوري ته راګرزي

(١) البحر ٨٢/٢

Bawar.net



فرمايي:﴿ وَبِٱلۡحَقِّ أَنزَلۡنَٰهُ وَبِٱلۡحَقِّ نَزَلَ ﴾اوپه حقه سره مودغه قرآن نازل كړى او په حقه سره نازل شوى (هيڅ شك اوشبه پكي نشته پدې كي حكمتونه پندونه اوامثال دي همداسي دالله له لوري راغلي دي ﴿ وَمَآ أَرۡسَلۡنَٰكَ إِلَّا مُبَشِّرٗا وَنَذِيرٗا ﴾اونه يې لېږلى موږته (اى محمده!) مگرزېرى وركونكى( مؤمنانوته په جنت سره) او وېرونكى (كافرانوته په جحيم سره) ﴿ وَقُرۡءَانٗا فَرَقۡنَٰهُ لِتَقۡرَأَهُۥ عَلَى ٱلنَّاسِ عَلَىٰ مُكۡثٖ ﴾اوقرآن نازل كړى دى موږ هغه ټوټه ټوټه لپاره ددې چي ولولې ته دغه قرآن په خلگو باندي په آرام سره (چي يادول يې وږته آسان اوپه باريكيويې خبردار شي آسانه شي ﴿ وَنَزَّلۡنَٰهُ تَنزِيلٗا ﴾اونازل كړى مودى دغه (قرآن) په نازلولو سره (داحوالواومصالحوله غوښتنو اوارتياووسره ) ﴿ قُلۡ ءَامِنُواْ بِهِۦٓ أَوۡ لَا تُؤۡمِنُوٓاْۚ ﴾ووايه (اى محمده دوى ته) چي ايمان راوړئ په دې قرآن ياايمان مه راوړئ (ستاسو ايمان راوړل به دقرآن كمال ورزيات نكړي اوايمان نه راوړل به موهغه ته څه نقص ونه رسوي ) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡعِلۡمَ مِن قَبۡلِهِۦٓ إِذَا يُتۡلَىٰ عَلَيۡهِمۡ يَخِرُّونَۤ لِلۡأَذۡقَانِۤ سُجَّدٗا ﴾بېشكه هغه كسان چي دوى ته تر پخوا له دغه (قرآنه)علم وركړل شوى دى كله چي ولوستى شي پردوى دغه (قرآن نو ) نسكورپرېوزي دوى (پرڅمكه )په زنو (دغه جمله دپورتني كلام لپاره تعليل دى يعني كه تاسوايمان نه راوړ نوهغوكسانو چي ترتاسوښه اوپوه وورباندي ايمان راوړى چي هغه علما اونېكان اهل كتاب وو چي قرآن به يې واورېدو ورباندي به يې اغېزه وكړه رب العالمين ته به پرمخي په سجده پرېوتلو ﴿ وَيَقُولُونَ سُبۡحَٰنَ رَبِّنَآ إِن كَانَ وَعۡدُ رَبِّنَا لَمَفۡعُولٗا ﴾پدې حال كي چي سجده كونكي وي اووايې دوى پاكي رب زموږته (له خلافه د وعدې خپلي)په تحقيق سره زموږ درب وعده خامخاكېدونكي ده﴿ وَيَخِرُّونَ لِلۡأَذۡقَانِ يَبۡكُونَ وَيَزِيدُهُمۡ خُشُوعٗا ﴾(اونسكورپرېوزي دوى پرڅمكه په تندوخپلوچي ژاړي دوى (دقرآن داورېدلو په وخت كي) اوزياتوي دوى ته (دقرآن اورېدل) عاجزي) امام رازي وايې چي ددغه تكرارفائده ددوحالتونو اختلاف دى يوداچي دسجدې لپاره نسكورپرېوتل اوبل داچي دقرآنكريم په اورېدلو سره په ژړاوي(١) ﴿ قُلِ ٱدۡعُواْ ٱللَّهَ أَوِ ٱدۡعُواْ ٱلرَّحۡمَٰنَۖ أَيّٗا مَّا تَدۡعُواْ فَلَهُ ٱلۡأَسۡمَآءُ ٱلۡحُسۡنَىٰۚ ﴾(ووايه اى محمده! دوى ته) وبولئ تاسي الله ياوبولئ تاسي رحمان دهريونوم چي واخلى (وبولى ) نوده لره دي نومونه ډېرښه) مفسرين كرام وايې چي سبب دنزول ددې آيت دادى چي كله كفارو واورېدل چي رسول الله صلى الله عليه وسلم الله پاك په (ياالله يارحمن) سره يادوي نودوى ويل كه چېري محمدموږته ديو الله په بللوامركوي خودى پخپله بيادوو خدايانو نومونه اخلي نوداآيت شريف نازل شوچي ددې څرگندونه كوي (ددواړو نومونومسمى يو واحدلاشريك ذات دى ﴿ وَلَا تَجۡهَرۡ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتۡ بِهَا ﴾اوډېر ظاهروالى مه كوه په (قرائت د )لمانځه خپل كي اومه كوه ډېرنرم والى په هغه (قرائت ) كي (ځكه په لوړآواز لوستلوكي به مشركان قرآن دقرآن نازولونكي ته ښكنځل كوي اوپه ډېركراروالي

---

(١) التفسيرالكبير٢١ / ٦٩

Bawar.net



کي به ستاله وروسته مقتديان سمع نشي کولای ) ﴿ وَٱبۡتَغِ بَيۡنَ ذَٰلِكَ سَبِيلٗا ﴾او ولټوه په مینځ دد غه جهر او اخفاء کي يوه لياره (ميانه) ابن عباس رضی الله عنه وايي چي: رسول الله صلی الله علیه وسلم به قرآن په لوړ آواز لوستلو نوچي مشرکانو به واورېدو قرآن کريم اود قرآن نازلونکي ته به يې ښکنځل کول چتي اپلتي خبري به يې ويلې ﴿ وَقُلِ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ ٱلَّذِي لَمۡ يَتَّخِذۡ وَلَدٗا ﴾ووايه (ای محمده) چي ټوله ثناصفت هغه الله لره دي چي يې نه دی نيولی څوک ولد ﴿ وَلَمۡ يَكُن لَّهُۥ شَرِيكٞ فِي ٱلۡمُلۡكِ ﴾اونشته ده ته شريک په ملک (الوهيت) کي ﴿ وَلَمۡ يَكُن لَّهُۥ وَلِيّٞ مِّنَ ٱلذُّلِّۖ وَكَبِّرۡهُ تَكۡبِيرَۢا ﴾اونشته ده لره څوک دوست (مرستندوی) له جهته دعاجزي اونسبت دلويي وکړه الله ته (په بشپړه توګه ) په لويي کاملي سره (دعزت کمال، عظمت اوجلال په نومونو يې يادکړه . سورت لکه چي پيل شوی وداسي پای ته رسېږي دالله دحمد اووحدانيت په اظهارکوي چي نه ولدلري نه شريک اونه هم مرستندوی اودوست ته دعاجزي له کبله اړدي هوالله العلی الکبير.

بلاغت: پدې آيتونوکي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته په لندډول دادي:

١- انکاري استفهام لکه: ﴿ أَبَعَثَ ٱللَّهُ بَشَرٗا رَّسُولٗا ﴾....؟.

٢- پدې کلام کي چي فرمايي: ﴿ وَنَحۡشُرُهُمۡ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ ﴾دالتفات صنعت دی چي له غياب څخه تکلم ته راغلی دی او ګټه يې دمحشرپه چاروا هتمام دی.

٣- دطباق صنعت لکه په ﴿ يَهۡدِ ٱللَّهُ ... وَمَن يُضۡلِلۡ ﴾او ﴿ مُبَشِّرٗا وَنَذِيرٗا ﴾او ﴿ تَجۡهَرۡ ... تُخَافِتۡ ﴾کي.

۴- ناقص جناس لکه ﴿ مَسۡحُورٗا ... مَثۡبُورٗا ﴾چي څيني توري يې سره تغييرلري.

۵- لطيفه مقابله لکه ﴿ وَإِنِّي لَأَظُنُّكَ يَٰفِرۡعَوۡنُ مَثۡبُورٗا ﴾په مقابله دفرعوني وينا کي چي ﴿ إِنِّي لَأَظُنُّكَ يَٰمُوسَىٰ مَسۡحُورٗا ﴾.

٦- ښايسته اواغلي سجع چي په جمالي اسلوبو کي زياتوالی راولي لکه: ﴿ فَتُفَجِّرَ ٱلۡأَنۡهَٰرَ خِلَٰلَهَا تَفۡجِيرًا ﴾او ﴿ مُبَشِّرٗا وَنَذِيرٗا ﴾او ﴿ إِنِّي لَأَظُنُّكَ يَٰمُوسَىٰ مَسۡحُورٗا ﴾او ﴿ وَإِنِّي لَأَظُنُّكَ يَٰفِرۡعَوۡنُ مَثۡبُورٗا ﴾

دالله جل جلاله په ثنا اوصفت دالاسرآء سورت تفسير بشپړ شو

وصلی الله علی محمد وعلی آله وصحبه اجمعين وسلم تسليما

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



## دالكهف سورت مكي دى اويو سل اولس آيتونه لري.

دكهف سورت يوله هغو پنځومكي سورتونوڅخه دى چي په الحمدلله سره پيل كېږي چي دغه سورتونه ؛ الفاتحه ,الانعام ، الكهف ، سبأ او فاطر دى اوټول دالله په حمد اوستاينه شروع كېږي دالله تعالى تمجيداوتقديس پكي اوپه عظمت اوكبريا ، جلال اوكمال يې اعتراف دى.

* په دې سورت كي درې نادرې قرآني كيسې راغلي چي ددوى ټولو اساسي موخه اوهدف د عقيدې ټينګاراوذى الجلال ذات په عظمت باندي دايمان تثبيت دى لومړى دأصحاب الكهف كيسه ده هغه چي دعقيدې په لاره كي دقرباني نمونه ده زلمي مؤمنان له خپلو ښارونو وزي ددين دڅغورلو په فكركي دي يوې سمڅي ته پناه وروړي اوهلته درې سوه نه كاله ويده پاتي كېږي وروسته يې الله له دومره اوږدې مودې بيارا پاڅوي

* دوهمه كيسه دموسى عليه السلام اوحضرت خضرده اودغه دعلم دزده كړي په لاره كي دتواضع اوعاجزي كيسه ده اوداچي څومره پټ اوالونيارازونه پكي شته چي الله تعالى خپل دغه بنده حضرت خضرته وربښودلي خوحضرت موسى عليه السلام هدو ورباندي خبرهم نه دى ترڅوچي خضريې ورته بيانوي دلته دبېړۍ ورانول، دماشوم وژل اوددېوال جوړولو كيسې اوپېښي پكي نغښتل شوي دي

* دريمه كيسه دذوالقرنين ده هغه چي الله تعالى هغه ته دتقوى اوعدل په نتيجه كي دا وس وركړى ووچي خپله پاچهي ددنياپرمخ وغوړوي اوختيځ لويديځ دواړه دده دپاچهي ايل اوتابع وي اوداچي ستربندجوړوي اولكه څرنګه چي دعقيدې په لاره كي يې دغه درې كيسې راوړي دي همداسي يې واقعي مثالونه درې ګوني استعمال كړي چي داوښيي حق په ډېرمال دولت اوسلطان سره نه دى بلكه په عقيده پوري اړه لري لومړى مثال دهغه بډاى سړي دى چي پخپل مال اودولت وياړي اوبل هغه بېوزله مسكين اونادار دى چي پخپله عقيده اوايمان فخركوي اودغه كيسه ددووباغونو د مالكانوده دوهم داچي دنياخامخازوال مومندونكي ده اودريم داچي تكبراوغرورخوابليس لعين كړى وو چي آدم ته يې دتعظيم له سجدې كولو څخه امتناع وكړه نوهغه وشړل شو اودالله له رحمت څخه محروم شو دغه ګردي كيسې دپند اخيستلو اووعظ لپاره دي

تسميه اونومول يې:

دې سورت ته ځكه سورت الكهف وايې چي په دغه غريبه اوعجيبه كيسه داصحاب كهفوكي رباني معجزه شتون لري.

الله تعالى فرمايي:

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ ٱلَّذِيٓ أَنزَلَ عَلَىٰ عَبۡدِهِ ٱلۡكِتَٰبَ وَلَمۡ يَجۡعَل لَّهُۥ عِوَجَاۜ ١ قَيِّمٗا لِّيُنذِرَ بَأۡسٗا شَدِيدٗا مِّن لَّدُنۡهُ وَيُبَشِّرَ
ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ٱلَّذِينَ يَعۡمَلُونَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ أَنَّ لَهُمۡ أَجۡرًا حَسَنٗا ٢ مَّٰكِثِينَ فِيهِ أَبَدٗا ٣ وَيُنذِرَ ٱلَّذِينَ قَالُواْ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


أَتَّخَذَ ٱللَّهُ وَلَدًا ﴿٤﴾ مَّا لَهُم بِهِۦ مِنْ عِلْمٍ وَلَا لِءَابَآئِهِمْۚ كَبُرَتْ كَلِمَةً تَخْرُجُ مِنْ أَفْوَٰهِهِمْۚ إِن يَقُولُونَ إِلَّا كَذِبًا
﴿٥﴾ فَلَعَلَّكَ بَٰخِعٌ نَّفْسَكَ عَلَىٰٓ ءَاثَٰرِهِمْ إِن لَّمْ يُؤْمِنُوا۟ بِهَٰذَا ٱلْحَدِيثِ أَسَفًا ﴿٦﴾ إِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى ٱلْأَرْضِ زِينَةً
لَّهَا لِنَبْلُوَهُمْ أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا ﴿٧﴾ وَإِنَّا لَجَٰعِلُونَ مَا عَلَيْهَا صَعِيدًا جُرُزًا ﴿٨﴾ أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحَٰبَ ٱلْكَهْفِ
وَٱلرَّقِيمِ كَانُوا۟ مِنْ ءَايَٰتِنَا عَجَبًا ﴿٩﴾ إِذْ أَوَى ٱلْفِتْيَةُ إِلَى ٱلْكَهْفِ فَقَالُوا۟ رَبَّنَآ ءَاتِنَا مِن لَّدُنكَ رَحْمَةً وَهَيِّئْ لَنَا مِنْ أَمْرِنَا
رَشَدًا ﴿١٠﴾ فَضَرَبْنَا عَلَىٰٓ ءَاذَانِهِمْ فِى ٱلْكَهْفِ سِنِينَ عَدَدًا ﴿١١﴾ ثُمَّ بَعَثْنَٰهُمْ لِنَعْلَمَ أَىُّ ٱلْحِزْبَيْنِ أَحْصَىٰ لِمَا لَبِثُوٓا۟
أَمَدًا ﴿١٢﴾ نَّحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَأَهُم بِٱلْحَقِّۚ إِنَّهُمْ فِتْيَةٌ ءَامَنُوا۟ بِرَبِّهِمْ وَزِدْنَٰهُمْ هُدًى ﴿١٣﴾ وَرَبَطْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ
إِذْ قَامُوا۟ فَقَالُوا۟ رَبُّنَا رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ لَن نَّدْعُوَا۟ مِن دُونِهِۦٓ إِلَٰهًاۖ لَّقَدْ قُلْنَآ إِذًا شَطَطًا ﴿١٤﴾ هَٰٓؤُلَآءِ قَوْمُنَا
ٱتَّخَذُوا۟ مِن دُونِهِۦٓ ءَالِهَةًۖ لَّوْلَا يَأْتُونَ عَلَيْهِم بِسُلْطَٰنٍۭ بَيِّنٍۖ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ ٱفْتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا ﴿١٥﴾ وَإِذِ
ٱعْتَزَلْتُمُوهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ إِلَّا ٱللَّهَ فَأْوُۥٓا۟ إِلَى ٱلْكَهْفِ يَنشُرْ لَكُمْ رَبُّكُم مِّن رَّحْمَتِهِۦ وَيُهَيِّئْ لَكُم مِّنْ أَمْرِكُم مِّرْفَقًا ﴿١٦﴾
۞ وَتَرَى ٱلشَّمْسَ إِذَا طَلَعَت تَّزَٰوَرُ عَن كَهْفِهِمْ ذَاتَ ٱلْيَمِينِ وَإِذَا غَرَبَت تَّقْرِضُهُمْ ذَاتَ ٱلشِّمَالِ وَهُمْ فِى فَجْوَةٍ
مِّنْهُۚ ذَٰلِكَ مِنْ ءَايَٰتِ ٱللَّهِۗ مَن يَهْدِ ٱللَّهُ فَهُوَ ٱلْمُهْتَدِۖ وَمَن يُضْلِلْ فَلَن تَجِدَ لَهُۥ وَلِيًّا مُّرْشِدًا ﴿١٧﴾ وَتَحْسَبُهُمْ
أَيْقَاظًا وَهُمْ رُقُودٌۚ وَنُقَلِّبُهُمْ ذَاتَ ٱلْيَمِينِ وَذَاتَ ٱلشِّمَالِۖ وَكَلْبُهُم بَٰسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِٱلْوَصِيدِۚ لَوِ ٱطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ
لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ فِرَارًا وَلَمُلِئْتَ مِنْهُمْ رُعْبًا ﴿١٨﴾ وَكَذَٰلِكَ بَعَثْنَٰهُمْ لِيَتَسَآءَلُوا۟ بَيْنَهُمْۚ قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ كَمْ
لَبِثْتُمْۖ قَالُوا۟ لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍۚ قَالُوا۟ رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ فَٱبْعَثُوٓا۟ أَحَدَكُم بِوَرِقِكُمْ هَٰذِهِۦٓ إِلَى ٱلْمَدِينَةِ
فَلْيَنظُرْ أَيُّهَآ أَزْكَىٰ طَعَامًا فَلْيَأْتِكُم بِرِزْقٍ مِّنْهُ وَلْيَتَلَطَّفْ وَلَا يُشْعِرَنَّ بِكُمْ أَحَدًا ﴿١٩﴾ إِنَّهُمْ إِن يَظْهَرُوا۟
عَلَيْكُمْ يَرْجُمُوكُمْ أَوْ يُعِيدُوكُمْ فِى مِلَّتِهِمْ وَلَن تُفْلِحُوٓا۟ إِذًا أَبَدًا ﴿٢٠﴾ وَكَذَٰلِكَ أَعْثَرْنَا عَلَيْهِمْ لِيَعْلَمُوٓا۟ أَنَّ
وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ وَأَنَّ ٱلسَّاعَةَ لَا رَيْبَ فِيهَآ إِذْ يَتَنَٰزَعُونَ بَيْنَهُمْ أَمْرَهُمْۖ فَقَالُوا۟ ٱبْنُوا۟ عَلَيْهِم بُنْيَٰنًاۖ رَّبُّهُمْ أَعْلَمُ بِهِمْۚ قَالَ
ٱلَّذِينَ غَلَبُوا۟ عَلَىٰٓ أَمْرِهِمْ لَنَتَّخِذَنَّ عَلَيْهِم مَّسْجِدًا ﴿٢١﴾ سَيَقُولُونَ ثَلَٰثَةٌ رَّابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ وَيَقُولُونَ خَمْسَةٌ
سَادِسُهُمْ كَلْبُهُمْ رَجْمًۢا بِٱلْغَيْبِۖ وَيَقُولُونَ سَبْعَةٌ وَثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْۚ قُل رَّبِّىٓ أَعْلَمُ بِعِدَّتِهِم مَّا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا قَلِيلٌۗ فَلَا
تُمَارِ فِيهِمْ إِلَّا مِرَآءً ظَٰهِرًا وَلَا تَسْتَفْتِ فِيهِم مِّنْهُمْ أَحَدًا ﴿٢٢﴾ وَلَا تَقُولَنَّ لِشَا۟ىْءٍ إِنِّى فَاعِلٌ ذَٰلِكَ غَدًا ﴿٢٣﴾ إِلَّآ
أَن يَشَآءَ ٱللَّهُۚ وَٱذْكُر رَّبَّكَ إِذَا نَسِيتَ وَقُلْ عَسَىٰٓ أَن يَهْدِيَنِ رَبِّى لِأَقْرَبَ مِنْ هَٰذَا رَشَدًا ﴿٢٤﴾ وَلَبِثُوا۟ فِى كَهْفِهِمْ ثَلَٰثَ
مِا۟ئَةٍ سِنِينَ وَٱزْدَادُوا۟ تِسْعًا ﴿٢٥﴾ قُلِ ٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا لَبِثُوا۟ۖ لَهُۥ غَيْبُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِۖ أَبْصِرْ بِهِۦ وَأَسْمِعْۚ مَا لَهُم
مِّن دُونِهِۦ مِن وَلِىٍّ وَلَا يُشْرِكُ فِى حُكْمِهِۦٓ أَحَدًا ﴿٢٦﴾ ﴾ الكهف: ١ – ٢٦

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



لغتونه:

(باخع) وژونکی لیث وایي چي ددې جملې معناچي (باخع الرجل نفسه ) داده چي وواژه سړي خپل ځان په غم اوغصه باندي (بخع) په اصل کي کوښښ اوزیارته وایې لکه چي دفراء مذهب دی (جرزا) لامزروع ځمکه (کهف) هغه پراخ ځای چي په غرونو کي دی هغه ته کهف وایې اوچي تنګ وي بیایې غاربولي (الرقیم) هغه سرلوحه چي داصحاب کهفونومونه په کي لیکل شوي وو (شطط) شطط ظلم اوغلوته وایې فراء وایې (اشتط فی الامر) معناداچي له حدڅخه یې تجاوزوکړ (تزاور) میلان ته وایې (الوصید) فنا (تادري)ته وایې (فجوة) پراخه ځای (ورق) دسپینوزرو روپی ته وایې هغه که مصکوکه وي اوکه نه (أعثرنا) موږ خبرشوي یو ( لاتمار) ته جګړه مکوه !.

تفسیر:

﴿ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ ٱلَّذِىٓ أَنزَلَ عَلَىٰ عَبۡدِهِ ٱلۡكِتَـٰبَ ﴾ټول ثنااوصفت په هغه ذات چي نازل کړی یې دی پخپل بنده (محمد )کتاب (قرآن) یعني ټوله ثناسره له تعظیمه اواجلاله هغه الله لره ده چي پخپل پیغمبراوبنده (محمدصلی الله علیه وسلم )یې قرآن نازل کړی ترڅوپرده اوګردومخلوقاتوباندي نعمت وي ﴿ وَلَمۡ يَجۡعَل لَّهُۥ عِوَجَا ﴾حال داچي نه یې دی ګرزولی په دې قرآن کي هیڅ کوږوالی (نه په الفاظواونه هم په معانیوکي ﴿ قَيِّمًا ﴾حال داچي سم برابردی نه پکي څه عیب شته اونه تناقض) طبري وایې چي دلته تقدیم او تأخیرراغلی یعني کتاب یې برابرنازل کړی اوپه هغه کي هیڅ کوږوالی دافراط ،تفریط) نشته نه پکي څه اختلاف شته اونه تفاوت نه هم کوږوالی اوياله حق څخه کوم میلان ﴿ لِّيُنذِرَ بَأۡسًا شَدِيدًا مِّن لَّدُنۡهُ ﴾ لپاره ددې چي ووېروي (په قرآن سره کافران) له سخته عذابه (چي راتلونکی دی) دالله له جانبه ﴿ وَيُبَشِّرَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ٱلَّذِينَ يَعۡمَلُونَ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ ﴾اوزېری ورکړي مؤمنانوته (په قرآن) هغوته چي کړي یې دي ښه عملونه ﴿ أَنَّ لَهُمۡ أَجۡرًا حَسَنًا ﴾چي بېشکه شته دوی ته اجرښه (چي جنت اوپکي تل ترتله نعمتونه دي ﴿ مَّـٰكِثِينَ فِيهِ أَبَدًا ﴾حال داچي اوسېدونکي به وي په هغه کي تل ترتله (تېرېدل به نلري) ﴿ وَيُنذِرَ ٱلَّذِينَ قَالُواْ ٱتَّخَذَ ٱللَّهُ وَلَدًا ﴾اوچي ووېروي (په دردناک عذاب) هغه کسان چي وایې ( له ډېره جهله ) نیولی دی الله ولد (الله ته دولدنسبت کوي) بیضاوي وایې چي په ځانګړي ترګه یې ددغوکفارو ذکر وکړځکه چي ددوی افتراء خورا سخته افتراء ده اودوېرېدلو ښېزېږې ځکه یادنکړه چي ړومبی تېرشوی دی[1] ﴿ مَّا لَهُم بِهِۦ مِنۡ عِلۡمٍ ﴾(نشته دوی ته پدې خبره کي هیڅ علم) یعني ددغي افتراء په ترلوچي دوی لره هیڅ پوهه اصلانشته ﴿ وَلَا لِأٓبَآئِهِمۡ ﴾اونه ددوی پلرونو ته (څه علم شته چي دوی دهغوتقلیدکوي دوی ګرده دجهالت اوګمراهي په دښتوکي لالهاند ایسارشوي دي ﴿ كَبُرَتۡ كَلِمَةً تَخۡرُجُ مِنۡ أَفۡوَٰهِهِمۡ

---

(۱) البیضاوي ۲/۲

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



إِن يَقُولُونَ إِلَّا كَذِبٗا ﴾(لويه ده خبره (ددوى) چي راوزي له خولې ددوى څخه نه وايي دوى مګر دروغ (ډېرغټ) يعني کومه بده اوناکاره لويه خبره چي ددوى له خولې څخه راوزي دغه بېخي فاسده اوباطله ده ﴿ فَلَعَلَّكَ بَٰخِعٞ نَّفۡسَكَ عَلَىٰٓ ءَاثَٰرِهِمۡ ﴾ نوښايي چي ته وژنې خپل ځان (له غم او خفګانه) پر وروسته ګرځېدو ددوى (له ايمانه څخه) ﴿ إِن لَّمۡ يُؤۡمِنُواْ بِهَٰذَا ٱلۡحَدِيثِ أَسَفًا ﴾(که نه راوړي (دوى) ايمان پدې خبره (قرآن) نوته ځان وژنې) له ډېره غمه ) دوئ ددومره خفګان ورنه دي په آيت شريف کي درسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره ډاډينه ده ) ﴿ إِنَّا جَعَلۡنَا مَا عَلَى ٱلۡأَرۡضِ زِينَةٗ لَّهَا ﴾(بېشکه موږ ګرځولې دي هرهغه څېزچي پرځمکه دى زينت لپاره ددې ځمکي ) يعني ګردهغه شيان چي په ځمکه دي له ښکلا، سامانونو، سپينوزرواوسروزرواونورو دغه دځمکي لپاره زينت اوښايست دى لکه چي موآسمانونه په ستوروښايسته کړي دي ﴿ لِنَبۡلُوَهُمۡ أَيُّهُمۡ أَحۡسَنُ عَمَلٗا ﴾ددې لپاره چي وازمويو دوى چي کوم يوددوى ډېرغوره دى له جهته دعمل (لپاره دآخرت) ﴿ وَإِنَّا لَجَٰعِلُونَ مَا عَلَيۡهَا صَعِيدٗا جُرُزًا ﴾(اوبېشکه موږ خامخا ګرزونکي يودهرهغه څيزچي پرځمکه دى ډاګ وچ کلک ) يعني ژردى چي موږبه دغه زينت اونعمت خاوري ايري وګرزوو اوداځمکه به وچ ډاګ شي نه به ورباندي وابنه اونه ژوند وي وروسته له هغه چي ښکلي اغلي اوښايسته وه رنګينه اوپه ونو، ګلانو پوښلي وه. قرطبي وايي چي: آيت شريف درسول الله صلى الله عليه وسلم دتسليت اوډاډيني لپاره راغلی معنا داچي ای محمده !) ددنيااواهل په هکله يې ډېراهتمام څکه مکړه چي دغه موږد امتحان او ازموينښت لپاره ګرزوو ځيني کسان به سوچ کوي اوايمان به راوړي ځيني به بياکافران کېږي اود قيامت ورځ بيا ددوى په وړاندي ده نوددوى کفردي تاچورتمن نکړي موږ به دوى ته سزا ورکړو([1]) ﴿ أَمۡ حَسِبۡتَ أَنَّ أَصۡحَٰبَ ٱلۡكَهۡفِ وَٱلرَّقِيمِ كَانُواْ مِنۡ ءَايَٰتِنَا عَجَبًا ﴾آياګمان کوې ته(ای محمده !)ددې خبري چي خاوندان دغار اوتختې وو دوى (په اعتبارد کيسې) له دلائلو(دقدرت) زموږ ډېرعجيبه ؟ او نورنشته بلکه نور زيات عجيبه دلائل دالله دقدرت هم شته دغه تفسيريې مجاهد کړى دى ﴿ إِذۡ أَوَى ٱلۡفِتۡيَةُ إِلَى ٱلۡكَهۡفِ فَقَالُواْ رَبَّنَآ ءَاتِنَا مِن لَّدُنكَ رَحۡمَةٗ وَهَيِّئۡ لَنَا مِنۡ أَمۡرِنَا رَشَدٗا ﴾يادکړه هغه وخت چي رجوع وکړه هغو زلميانو (دکفاروله وېري) غارته (اوهلته يې پناه واخيسته) نو وويل: دوى ای زموږربه راکړه موږته له خپله نزده (د) رحمت (له خزانومغفرت اوروزي) اوتيارکړه موږته له دې کاره رشداوهدايت زموږټول کارونه سم کړه([2]) ﴿ فَضَرَبۡنَا عَلَىٰٓ ءَاذَانِهِمۡ فِي ٱلۡكَهۡفِ سِنِينَ عَدَدٗا ﴾او کښېښوده موږ(پرده) پرغوږونو ددوى (چي

---

(١) القرطبي ١٠/٣٥٤

(٢) داصحاب کهفولنډه کيسه داچي مفسرين کرام ليکي په روم کي يوښارچي طرطوس نومېده باچايي ډېرظالم اوغالي بت پرست سړى وو چي نوم يې دقيانوس ووهغه دعيسى عليه السلام نه وروسته وو خلګ به يې بُت پرستي ته رابلل اوهرچا چي دده دغه دضلالت بلنه نه منله هغه به يې واژه دغه ازموينښت په ايماندارو خلګو ډېرسخت شواوځوتنه زلميان چي دغه سخته ازموينه يې وليده له خوراخفه اوغمجن شول اوباچاته ددوى حال ورسېدو هغه ورپسې ځوک واستول اودوى دباچا دمحاکمې

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



هيڅ غربيږي نه اوربدو اوويده پراته وو) په غارکي څوکاله په شمېر ﴿ ثُمَّ بَعَثۡنَٰهُمۡ لِنَعۡلَمَ أَيُّ ٱلۡحِزۡبَيۡنِ أَحۡصَىٰ لِمَا لَبِثُوٓاْ أَمَدٗا ﴾بیاموږ دوی راپورته کړل دپاره ددې چي معلو م کړو (په حالی علم سره هم) چي کومه یوه له دغودواړو ډلوڅخه ښه حساب کونکي ده دهغه څه چي څوموده یې (په غارکي) تېره کړې ده ؟ په التسهیل کي وایي چي: مرادله مختلفو دوو ډلو څخه یو اصحاب کهف اوبله ډله هغه کسان چي ددوی نندارہ یې کوله (١) او مجاهد وایې چي دغه دوه ډلي پخپله اصحاب کهف دملګرو دي کله چي له خوبه راپاڅېدل نوځینوو ویل: یوه ورځ او یاکم تریوې ورځي اونوروبیا ویل: ﴿ رَبُّكُمۡ أَعۡلَمُ بِمَا لَبِثۡتُمۡ ﴾(٢) لومړی وېناله عبدالله ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت شوي ده ﴿ نَّحۡنُ نَقُصُّ عَلَيۡكَ نَبَأَهُم بِٱلۡحَقِّۚ ﴾ موږ تاته (مفصله) کیسه کوو خبرحال ددوی په حقه سره (چي رښتیا اوزیات او کم پکي نه وي) ﴿إِنَّهُمۡ فِتۡيَةٌ ءَامَنُواْ بِرَبِّهِمۡ وَزِدۡنَٰهُمۡ هُدٗى ﴾بېشکه چي دوی داسي زلمیان دي چي ایمان لري په رب خپل

په وړاندي ودرېدل نوباچا ورته وویل: که مودبتانوعبادت ونکړ اودهغوی لپاره موسجدې نکولې هرومرو به مووژنم خودوی په بې ساري مېړانه دباچا په وړاندي دخپل ایمان څرګندونه داسي وکړه: ﴿ رَبُّنَا رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ لَن نَّدۡعُوَاْ مِن دُونِهِۦٓ إِلَٰهٗاۖ ﴾نو باچاورته وویل: تاسو خوتنکي ځوانان یاست ترسباپوري مهلت درکوم ښه سوچ وکړئ نودوی دشپې وتښتېدل اوپه یوه شپانه باندي تېرېدل چي سپی ورسره وو سپی هم په دوی پسي روان شو اوسهارګاه په غره کي یوه غارته ننوتل پاچادوی په لټون کي شوهرلوري ته یې جاسوسان واستول اوکله چي دغارخولې ته ورغلو ځني ووېرېدل چي ورننوزي پاچاوویل: دغار خوله پسي بنده کړئ چي همدلته له لوږي اوتندي څخه ومري اوالله پاک پردوی باندي خوب راووست بیده شول درې سوه نهه کاله (٣٠٩) بیده پراته وواوبیاالله راویښ کړل دوی فکرکاووچي یوه ورځ یاڅه کم به ویده شوي وي اودلوږي احساس یې وکړ یوتن یې د دوډۍ لپاره ښارته واستاوو او ورته یې وویل چي ځان سره دېرپام کوه څوک درباندي ونه پوهېږي کله چي هغه ښارته ورسېدونوکه ګوري ښاربله بڼه غوره کړي هغه پخوانۍ لاري کوڅې یومخ بدلي شوي دي هیڅوک په ګردښارکي نه پېژني نوله خانه سره یې وویل: چي ښایې لاره یې غلطه کړې وي او دوډۍ یې رانیوله اوچي کله یې پیسي ورکړې دوډۍ خرڅونکي هغه روپۍ په لاس کي واړولې راواړولې ورته ویل یې دادي له څه وې ؟ له کومه دي کړې ؟ خلګ ورباندي راغونډ شول اودغه روپۍ یې په تعجب سره کتلې بیایې ورته وویل: خوانه ته څوک یې ؟ ښایې خزانه دي موندلي وي ده ورته ویل: نه والله که مي خزانه پیداکړې وي دغه زمادخپلو ملګروروپۍ دي دوی ورته ویل داډېري پخوانۍ اودقیانوس دوخت روپۍ دي هغه ورته وویل: دقیانوس څه وکړل ؟ دوی ویل: هغه ډېرپخوامړشوی دی نوده ورته ویل: زماخبره والله که څوک رښتیاوګڼي موږ څو ځوانان پرګاه له هغه پاچاڅخه چي موږېې دبتانوپه عبادت کولو مجبورولو وتښتېدو اوپه غارکي پټ شوو اوس زه ملګرو دوډۍ لپاره راواستولم راځئ چي زه خپل ملګري درونبیم که یې نه منئ نودوی تعجب وکړاوپاچایې ورباندي خبرکړکله چي هغه پدې پېښه خبرشونو پخپله پاچالښکر اودښارخلګ یې تنداړې ته وروان شول اوچي غارته نژدې ورسېدل اصحاب کهفو ددوی دآسونو غږونه واورېدل خیال یې وکړچي همدغه دقیانوس راغلی نوپه لمانځه ودرېدل اوپاچاهم ورته راورسېدو که ګوري دوی په لمانځه ولاړدي اوچي له لمانځه فارغ شول نوپاچا ورسره غاړه غړی شو اودوی ته یې وویل: چي دی پخپله مسلمان دی اودقیانوس پخواهلاک شوی دی ددوی کیسه یې ځني واورېده اوپه دې وپوهېده چي الله راپاڅولي دي چي ددوی واقعه دخلګو لپاره نښانه اودلیل دی وروسته الله پاک بیاورباندي خوب راووست اوساوي یې وختلې نوخلګوو ویل: ﴿ لَنَتَّخِذَنَّ عَلَيۡهِم مَّسۡجِدٗا ﴾.

(١) التسهیل ٢ / ١٨٣

(٢) حاشیة الجمل علی الجلالین ٣ / ٧

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


اوزيات كړي وو موږدوى له جهته دهدايت (اويقينه) ﴿ وَرَبَطۡنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمۡ ﴾ اوټينګ تړلى دى موږ پرزړونو ددوى (صبراوقوت چي زړونه يې په ايمان سمبال اوپه حق باندي مضبوط او مطمئن وو ﴿ إِذۡ قَامُواْ فَقَالُواْ رَبُّنَا رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ ﴾ كله چي پاڅېدل (دظالم كافرپاچا په وړاندي اوبې پروا) نوووېل: دوى رب زموږ رب دآسمانونو او (رب) دځمكي دى (نه هغه چي ته مودبتانو عبادت ته بولې ﴿ لَن نَّدۡعُوَاْ مِن دُونِهِۦٓ إِلَٰهٗاۖ ﴾ له سره به عبادت ونكړوبې له همغه الله دبل معبود (هغه واحدلا شريك دى) ﴿ لَّقَدۡ قُلۡنَآ إِذٗا شَطَطًا ﴾ (كه موبل څوك په الوهيت سره ومانو) خامخا په تحقيق موږبه خطاخبره ويلي وي (له حق څخه به موتجاوزكړى وي اوپه ظلم اوضلالت كي به پرېوتي يو) ﴿ هَٰٓؤُلَآءِ قَوۡمُنَا ٱتَّخَذُواْ مِن دُونِهِۦٓ ءَالِهَةٗۖ ﴾ داكسان زموږقوم نيولي دي دوى بې له الله (نورباطل) معبودان (په تقليد سره اودليل نلري) ﴿ لَّوۡلَا يَأۡتُونَ عَلَيۡهِم بِسُلۡطَٰنِۭ بَيِّنٖۖ ﴾ ولي نه راوړي دوى په (عبادت دهغو) كوم څرګند دليل، اومقصدله هڅولوپه ﴿ لَّوۡلَا ﴾ سره ددوى تعجيزدى لكه چي دوى وايې دوى نشي كولاى په دې هكله څرګند دليل راوړي چي ددغوبتانو عبادت كوي نودوى اكه پكه په الله دروغ تړي[1] ﴿ فَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّنِ ٱفۡتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبٗا ﴾ نوڅوك دى ډېرظالم له هغه چاڅخه چي پرالله دروغ تړي (شريكان ورسره نيسي بلكه بل څوك نه دى) دلته استفهام دنفى په معنادى ﴿ وَإِذِ ٱعۡتَزَلۡتُمُوهُمۡ وَمَا يَعۡبُدُونَ إِلَّا ٱللَّهَ ﴾ اوكله چي په څنګ شوى تاسي (اى ځوانانو) له مشركانو اوله هغه (بتانو) چي دوى يې پرته له الله څخه عبادت كوي ﴿ فَأۡوُۥٓاْ إِلَى ٱلۡكَهۡفِ ﴾ نوځاى ونيسئ تاسي هغه غارته (اوپكي دېره شئ) ﴿ يَنشُرۡ لَكُمۡ رَبُّكُم مِّن رَّحۡمَتِهِۦ ﴾ خپوربه كړي تاسي ته رب ستاسي له خپله رحمته (وبه غوړوي پرتاسو) ﴿ وَيُهَيِّئۡ لَكُم مِّنۡ أَمۡرِكُم مِّرۡفَقٗا ﴾ (اوتيار به كړي تاسي ته له كارستاسي اسباب د ګذران) يعني تاسوته به د روزي اسباب آسانه كړي اودغرمې بېګاه دډوډۍ انتظام به موپه دې سمڅي كي وكړي ﴿ وَتَرَى ٱلشَّمۡسَ إِذَا طَلَعَت تَّزَٰوَرُ عَن كَهۡفِهِمۡ ذَاتَ ٱلۡيَمِينِ ﴾ اووينې به ته (اى مخاطبه!) لمركله چي راخېژي نوميلان كوي له غاره

---

[1] شهيد سيدقطب وايې چي: همدلته دځوانانودريز كوتلى اوڅرګندښكاريږي چي هيڅ ډول تردد اوشك شبه پكي نشته دوى هغه اتل زلميان چي دقوي ايمان خاوندان دي اودخپل تېربې ايماني ته بد رد وايې ددوى اودقوم دواړه لورې ښېخي جوت اوبېل دي نوله تېښتي پرته بله لاره نه ويني اوهغه زلموتي مؤمنان دي چي دظالم اوكافرپاچاپه غبرګون كي يې هدايت وموندى دوى له هغه سره شپې نشي تېرولاى خپله عقيده يې په ډاګه څرګنده كړه همداسي دوى نشي كولاى له خپل قوم سره په نفاق شپې تېرې كړي اودبتانوعبادت ورسره وكړي اوخپله عقيده هم خوندي وساتي اوس ددوى رازلوڅ شوبله لاره نه مومي پرته له دې چي وتښتي اودسمڅي ژوند په سمسورژوندانه غوره كړي همداسي يې وپتېيله اوتورتياره غارته يې پناه ورووړه دالله درحمت دعايې وكړه نوهغه غار ورته پراخ اودالله درحمت وړمې پكي وچلېدې سيورى يې وېړوو پستوالى، خوښي اوآرام يې پكي بياموندى ۱۵/۱۳ في ظلال القرآن .

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ددوی ښي طرف ته ﴿ وَإِذَا غَرَبَت تَّقْرِضُهُمْ ذَاتَ ٱلشِّمَالِ ﴾ اوکله چي لوېږي نو پرېږدي دوی (خني ليري کېږي) کيڼ طرف ته (مقصد داچي دلمر وړانګي پردوی باندي دراختلو او پرېوتلو په وخت کي نه لوېږي چي دهغه په تودوخه دوی ته کوم تکليف ورسېږي ﴿ وَهُمْ فِى فَجْوَةٍ مِّنْهُ ﴾ اودوی په ارت ميدان کي دي له دې غاره په مينځ کي يې دي چي لمرورته نه رسېږي نه په پيل دورځي کي اونه هم په پای کي ﴿ ذَٰلِكَ مِنْ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ ﴾ دغه ( د دوی ذکرشوی حال) له دلائلو (دقدرت) دالله دي ابن عباس رضی الله عنه وايي: که لمرپردوی رالوېدلای نوبه يې سوځولي وای اوکه په يوبل لوري نه اړول کېدای نوبه ځمکي خوړلي وای (او پرهارونه به وربانديجوړشوي وو) ﴿ مَن يَهْدِ ٱللَّهُ فَهُوَ ٱلْمُهْتَدِ ﴾ (هرچاته چي سمه صافه لاره الله وښوده نو همغه دسمي لاري موندونکی دی ) يعني هرچاته چي الله پاک دايمان راوړلو توفيق ورکړی اودنېکرغی لاره وروښيي هغه په رښتيالاره پيداکونکی دی ﴿ وَمَن يُضْلِلْ فَلَن تَجِدَ لَهُۥ وَلِيًّا مُّرْشِدًا ﴾ اوهرڅوک چي (الله يې ګمراه کړي (په بدعمل کولو ) نوله سره به نه مومې ته ده ته دوست لاره ښوونکی ﴿ وَتَحْسَبُهُمْ أَيْقَاظًا وَهُمْ رُقُودٌ ﴾ (اوته به پردوی ګمان کوې چي ويښ دي حال داچي دوی ويده دي ) يعني ای کتونکي ! که يې ووينې ګمان به وکړې چي دوی بيداردي ځکه سترګي يې رڼې او په يوبل اړخ اوړي حال داچي دوی په خوب ويده دي ﴿ وَنُقَلِّبُهُمْ ذَاتَ ٱلْيَمِينِ وَذَاتَ ٱلشِّمَالِ ﴾ او اړوو موږ دوی په ښي اوکيڼ اړخ (څوچي ځمکه يې بدن ونه خوري) ﴿ وَكَلْبُهُم بَٰسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِٱلْوَصِيدِ ﴾ او سپی ددوی (هغه چي ددوی متابعت يې وکړ) غځونکی دی (په ځمکه) ددواړو څنګلو دغار په خوله کي (لکه چي پيره پرې کوي) ﴿ لَوِ ٱطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ فِرَارًا وَلَمُلِئْتَ مِنْهُمْ رُعْبًا ﴾ که چېري ته دوی ته ور پورته شې (دوی ووينې په همغه حال کي) نوخامخابه مخ وګرځوې ته له دوی په تېښته او خامخاډک به کړی شې ته له وېري ددوی نه (داپدې چي الله پاک دوی ته دهيبت جامې وراغوستي اوچي څوک يې ووينې څني وېرېږي هغوی په يوبل لوري اوړي اونه راويښېږي) ﴿ وَكَذَٰلِكَ بَعَثْنَٰهُمْ لِيَتَسَآءَلُوا۟ بَيْنَهُمْ ﴾ اوهمداسي (لکه چي ويده کړي موږ هغوی) ويښ کړو موږدوی وروسته له ډېري اوږدې مودې چي مرګ ته ورته وه ترڅو ) چي پوښتنه وکړي پخپلو مېنځونو کي (دهمدې مودې چي په غارکي اوسېدل ﴿ قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ كَمْ لَبِثْتُمْ قَالُوا۟ لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ﴾ نوويل يو ويونکي له دوی نه چي څومره موده موتېره کړې ده نو وويل: ورته (دغو نورو ) چي تېره کړې موده يوه ورځ ، يايوه برخه دورځي. مفسرين کرام وايې چي : دوی په سمځه کي سهارننوتلي وو اودورځي په پای کي الله پاک راويښ کړل نوکله چي دوی وليدل ګمان يې کاووچي لمرلوېدلی دی خوبيايې وليدل چي لمرلاړدی نويې وويل: چي يوه برخه دورځي اوپدې نه ووخبر چي درې سوه کاله ويده شوي دي ﴿ قَالُوا۟ رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ ﴾ وويل (نورو) چي ستاسي رب ښه خبردی په هغه موده چي تاسي تېره کړې ده (نورددغه بې ګټي

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



بحث څخه لاس واخلئ هغه چي مهم اوګټوردي دهغه په باب تصميم ونيسئ موږ اوس وربي يو ﴿ فَٱبْعَثُوٓاْ أَحَدَكُم بِوَرِقِكُمْ هَٰذِهِۦٓ إِلَى ٱلْمَدِينَةِ ﴾ نوولېږئ تاسي يوتن په دې سپينوزروستاسي چي دادى دې ښارته ﴿ فَلْيَنظُرْ أَيُّهَآ أَزْكَىٰ طَعَامًا فَلْيَأْتِكُم بِرِزْقٍ مِّنْهُ ﴾ نوودي ګوري چي کوم يوله دغه (خلګو دښار ) نه ښه پاکيزه دى له جهته دطعامه نوتاسي ته دي رزق له هغه څخه راوړي ﴿ وَلْيَتَلَطَّفْ وَلَا يُشْعِرَنَّ بِكُمْ أَحَدًا ﴾ اونرمي دي کوي (په معامله کي ) اوښارته ننوتلوکي ) اوپه تاسي دي هيڅوک هم نه خبروي ﴿ إِنَّهُمْ إِن يَظْهَرُواْ عَلَيْكُمْ يَرْجُمُوكُمْ أَوْ يُعِيدُوكُمْ فِى مِلَّتِهِمْ ﴾ بېشکه دوى که پرتاسوخبرشي نوتاسوبه سنګسار کړي ، يابه بيرته وګرزوي دوى تاسي لره پخپل دين کي ﴿ وَلَن تُفْلِحُوٓاْ إِذًا أَبَدًا ﴾ (اوله سره به خلاص نشئ تاسي په دغه وخت کي هيڅکله ) يعني که چېرې ددوى دين ته وګرزېدلى اوپه کفرکي مو ورسره موافقه وکړه بيابه هيڅکله په مراد ونه رسېږئ همدارنګه ځوانان پخپل مينځ کي په ترس اووېره يوله بله دزړه خواله کوي چي باچا ورباندي خبرنشي بيابه يې ياووژني اويابه يې دبتانو عبادت ته جبرًا اړباسي ځکه نوملګري ته وايې چي په تګ راتګ ښارته ډېرمحتاط اوسه ﴿ وَكَذَٰلِكَ أَعْثَرْنَا عَلَيْهِمْ لِيَعْلَمُوٓاْ أَنَّ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ وَأَنَّ ٱلسَّاعَةَ لَا رَيْبَ فِيهَآ ﴾ اوهمداسي لکه چي (موويښ کړي وو ) خبر کړل موږ (خلګ ) پردوى باندي چي پوه شي (منکران دبعث چي) بېشکه دالله وعده حقه ده او بېشکه قيامت (راتلونکى دى) شک پکي نشته هغه ذات چي داصحاب کهف په راپاڅولو قادر او توانادى چي درې سوه کاله ويده وو نوهغه دمخلوقاتو په راپاڅولو وروسته له مرګه هم قادردى ﴿ إِذْ يَتَنَٰزَعُونَ بَيْنَهُمْ أَمْرَهُمْ ﴾ (اوموږ خلګ پرې خبرکړل ) کله چي جګړې کولې دوى په خپلو مينځونو کي په کار د اصحاب کهفوکي ) وروسته له خبرېدلو بياالله پاک داصحاب کهفوارواحان قبض کړل ﴿ فَقَالُواْ ٱبْنُواْ عَلَيْهِم بُنْيَٰنًا ﴾ نوويل دغو(خلګويوبل ته) چي جوړ کړئ پر(دروازه دغارد ) دوى يوه بناء (چي پر دوى نښاني وي ) ﴿ رَّبُّهُمْ أَعْلَمُ بِهِمْ ﴾ رب ددوى ښه عالم دى په (احوالوشان د ) دوى ﴿ قَالَ ٱلَّذِينَ غَلَبُواْ عَلَىٰٓ أَمْرِهِمْ لَنَتَّخِذَنَّ عَلَيْهِم مَّسْجِدًا ﴾ وويل هغوکسانوچي غالب وو (په اکثريت سره) په کارد دوى چي خامخا جوړبه کړو موږ هرومروپردوى باندي مسجدچي موږبه لمونځ اودالله تعالى عبادت پکي ترسره کوو ﴿ سَيَقُولُونَ ثَلَٰثَةٌ رَّابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ ﴾ ژربه وايې (دغه کسان اهل کتاب چي درسول الله ﷺ په زمانه کي ددوى کيسه خبرې)چي دوى درې دي څلورم يې سپى دى ﴿ وَيَقُولُونَ خَمْسَةٌ سَادِسُهُمْ كَلْبُهُمْ رَجْمًۢا بِٱلْغَيْبِ ﴾ ( وبه وايې ځيني نور) پنځه دي شپږم ددوى سپى د دوى دى (دغه يې دګمان په ډول بې له دليله ويل) په غيب سره (لکه چي څوک هسي ځاى په ډبرو ويشتل کوي چي ورته معلوم نه وي ﴿ وَيَقُولُونَ سَبْعَةٌ وَثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْ ﴾ اووبه وايې (ځيني نور) چي اوه دي اواتم ددوى

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


سپی ددوی دی ﴿قُل رَّبِّيٓ أَعۡلَمُ بِعِدَّتِهِم مَّا يَعۡلَمُهُمۡ إِلَّا قَلِيلٞ﴾ووایه (ای محمده دوی ته) رب زمانبه علم لري ددوی په شمیر. نه پوهیږي (په شمیرد) دوی مګرلږ (کسان) ابن عباس رضی الله عنه وایي چي: زه هم له دغه لږو خلګو څخه یم دوی اوه تنه وو څکه الله پاک وګڼل آن تردې چي اووته راورسیدو(١) مفسرین کرام وایي چي: کله الله پاک لومړی اودوهم قول راوړل نو بیي ﴿رَجۡمَۢا بِٱلۡغَيۡبِ﴾وفرمایل او کله چي بې دریم قول راووړ هیڅ ډول بې بد ونه باله لکه چي الله تعالی په همدې تثبیت کړی وي او بیایې دنازولي استازي هغه لوري ته تنبیه وفرمایله چي هغه افضل او اکمل دی کوم چي علم بې علام الغیوب ته حواله کړی دی ﴿فَلَا تُمَارِ فِيهِمۡ إِلَّا مِرَآءٗ ظَٰهِرٗا﴾نو جګړه مکوه (ای محمده! له اهل کتابو سره ددوی په شمیر او شان کي) مګرجګړه ښکاره د(یقین چي ته په حقیقت آګاه یې) ﴿وَلَا تَسۡتَفۡتِ فِيهِم مِّنۡهُمۡ أَحَدٗا﴾اوفتوی مه غواړه په باب ددغو(اصحاب کهفو) کي له دغو هیڅ یو څخه (څکه چي کومه وحی الله تاته کړي هغه کفایت کوي) ﴿وَلَا تَقُولَنَّ لِشَاْيۡءٍ إِنِّي فَاعِلٞ ذَٰلِكَ غَدًا إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُۚ﴾اومه وایه له سره په هیڅ باب کي چي بیشکه زه ددغه کار سباته کونکی یم مګر(متصل ورسره ووایه ای محمده! (انشآءالله) که اراده فرمایلي وي الله ابن کثیر وایي: ددې آیت شریف دنزول سبب داوو چي کله له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه وپوښتل شو چي داصحاب کهف څه ډول کیسه وه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل چي: سبا به یې درو ښیم نو وحی پنځلس ورځي وځنډېده(٢) ﴿وَٱذۡكُر رَّبَّكَ إِذَا نَسِيتَ﴾اویادوه رب ستا کله چي دي هیرشي یعني کله چي دي انشآء الله هیرشي نو بیا دې په یادشي بیایې ووایه چي ترڅو دالله جل جلاله عظمت دي تل په پام کي وي ﴿وَقُلۡ عَسَىٰٓ أَن يَهۡدِيَنِ رَبِّي لِأَقۡرَبَ مِنۡ هَٰذَا رَشَدٗا﴾اووو ایه (ای محمده دوی ته) ښایي چي سمه صافه لاره وښیي رب زما ډیري نژدې ته له دغي نه له جهته دلارښووني (کومه چي زماددیني اودنیوي چارومصلحت پکې وي) ﴿وَلَبِثُواْ فِي كَهۡفِهِمۡ ثَلَٰثَ مِاْئَةٖ سِنِينَ وَٱزۡدَادُواْ تِسۡعٗا﴾اوموده تیره کړي وه دغو(زلمیانو) په غار کي ددوی درې سوه اوزیات کړي وو پردوی نه (کاله) دغه دهغه اجمال چي پخوایې فرمایلی وو﴿سِنِينَ عَدَدٗا﴾تفصیل دی ﴿قُلِ ٱللَّهُ أَعۡلَمُ بِمَا لَبِثُواْۖ﴾ووایه (ای محمده دوی ته) الله ښه عالم دی په اندازه دهغي مودې چي دوی (په یقیني توګه ) هلته تیره کړي وه ﴿لَهُۥ غَيۡبُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۖ﴾خاص هم ده لره دي پټ (رازونه) دآسمانونو اودځمکي (او هغه تاته خبر درکړو په غوڅه توګه ددوی له حاله الله حکیم اوخبیردی) ﴿أَبۡصِرۡ بِهِۦ وَأَسۡمِعۡۚ﴾څه ښه لیدونکی دی الله او څه ښه اوریدونکی دی الله(دهرموجود اومسموع هغسي خفیات ورته معلوم دي لکه څرنګه چي په جلیاتو پوهیږي) ﴿مَا لَهُم مِّن دُونِهِۦ مِن وَلِيّٖ﴾اونشته چیري دوی ته بې له دې نه هیڅ دوست (مددګار)

---

(١) زادالمسیر ٥ / ١٣٢

(٢) مختصرابن کثیر ٢ / ٤١٥

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ وَلَا يُشۡرِكُ فِي حُكۡمِهِۦٓ أَحَدٗا ﴾ او نه شريکوي په حکم خپل کي بل هيڅوک يعني نه يې سيال شته ، نه شريک او مثال او نه مني پخپله قضا او حکم کي بل څوک هغه له هرچا بې پرواذات دی.

بلاغت:

پدې آيتونو کي د بديع او بيان صنائع شته چي لندون يې دادی:

١ – د طباق صنعت لکه د ﴿ وَيُبَشِّرَ ﴾ او ﴿ وَيُنذِرَ ﴾ او ﴿ يَهۡدِ ﴾ او ﴿ يُضۡلِلۡ ﴾ او د ﴿ أَيۡقَاظٗا ﴾ او ﴿ رُقُودٞ ﴾ او ﴿ ذَاتَ ٱلۡيَمِينِ وَذَاتَ ٱلشِّمَالِ ﴾ ترمينځ.

٢ – معنوي طباق چي فرمايې: ﴿ فَضَرَبۡنَا عَلَىٰٓ ءَاذَانِهِمۡ ﴾ ﴿ ثُمَّ بَعَثۡنَٰهُمۡ ﴾ ځکه د لومړي معنا داچي ويده کړي موو او د دوهم داچي راويښ کړي موو او دغه طباق دی.

٣ – پدې کلام کي چي فرمايې: ﴿ لِّيُنذِرَ بَأۡسٗا شَدِيدٗا ﴾ ﴿ وَيُنذِرَ ٱلَّذِينَ قَالُواْ ٱتَّخَذَ ٱللَّهُ وَلَدٗا ﴾ د لته د اطناب صنعت دی چي خاص يې وروسته له عام ځخه ذکر کړی دی او داهم پدې چي و نبيي الله جل جلاله لره ولد نسبت کول خورا بده دعوی ده او پکي يو عجيبه حذف او فصاحت دی هغه داچي لومړنی مفعول يې حذف کړی (چي: لينذر الکافرين بأسا شديدا) و او وبيايې لومړنی مفعول په دوهمه برخه کي ذکر کړی او دوهم مفعول يې حذف کړی دی چي ﴿ وَيُنذِرَ ٱلَّذِينَ قَالُواْ ٱتَّخَذَ ٱللَّهُ وَلَدٗا ﴾ (عذابًا شديدا) يې حذف کړی ځکه چي لومړنی ورباندي دلالت کوي او چي لومړنی يې حذف کړی ځکه چي دوهم ورباندي دلالت کوي او دغه خورا باريک او لطيف ډول فصاحت دی.

۵ – د تعجب صيغه راوړل لکه چي ﴿ أَبۡصِرۡ بِهِۦ وَأَسۡمِعۡ ﴾.

٦ – کله چي الله تعالی فرمايې: ﴿ فَلَعَلَّكَ بَٰخِعٞ نَّفۡسَكَ عَلَىٰٓ ءَاثَٰرِهِمۡ ﴾ د رسول الله ﷺ حال يې د هغه چاله حاله سره مشابه کړچي خپل دوستان ځني بېل شي نو هغه د ځان دوژلو تکل وکړي او يانژدې وي چي د هغوی د بېلتون له غمه مړ شي نو دغه تمثيلي استعاره ده.

٧ – تبعيه استعاره چي فرمايې: ﴿ فَضَرَبۡنَا عَلَىٰٓ ءَاذَانِهِمۡ ﴾ د دوی د روند خوب يې له هغه څه سره مشابه کړی چي د چاپه غوږونو پرده وهله شي لکه چي په اوسېدونکو باندي خېمه ووهلی شي او همدا راز بله استعاره په دې قول کي چي ﴿ وَرَبَطۡنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمۡ ﴾ دی راغلي ځکه ربط تړلو ته وايې او مقصد ځني دادی چي د دوی په زړونو موتړل کړي لکه چي د لوښي په خوله پټې او يا برغولی بند کړي چي سرپوښ ورباندي وتړي.

***

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



الله تعالى فرمايي:

﴿وَٱتۡلُ مَآ أُوحِيَ إِلَيۡكَ مِن كِتَابِ رَبِّكَۖ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَٰتِهِۦ وَلَن تَجِدَ مِن دُونِهِۦ مُلۡتَحَدٗا (٢٧) وَٱصۡبِرۡ نَفۡسَكَ
مَعَ ٱلَّذِينَ يَدۡعُونَ رَبَّهُم بِٱلۡغَدَوٰةِ وَٱلۡعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجۡهَهُۥۖ وَلَا تَعۡدُ عَيۡنَاكَ عَنۡهُمۡ تُرِيدُ زِينَةَ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَاۖ وَلَا
تُطِعۡ مَنۡ أَغۡفَلۡنَا قَلۡبَهُۥ عَن ذِكۡرِنَا وَٱتَّبَعَ هَوَىٰهُ وَكَانَ أَمۡرُهُۥ فُرُطٗا (٢٨) وَقُلِ ٱلۡحَقُّ مِن رَّبِّكُمۡۖ فَمَن شَآءَ فَلۡيُؤۡمِن وَمَن شَآءَ
فَلۡيَكۡفُرۡۚ إِنَّآ أَعۡتَدۡنَا لِلظَّٰلِمِينَ نَارًا أَحَاطَ بِهِمۡ سُرَادِقُهَاۚ وَإِن يَسۡتَغِيثُواْ يُغَاثُواْ بِمَآءٖ كَٱلۡمُهۡلِ يَشۡوِي ٱلۡوُجُوهَۚ بِئۡسَ
ٱلشَّرَابُ وَسَآءَتۡ مُرۡتَفَقًا (٢٩) إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجۡرَ مَنۡ أَحۡسَنَ عَمَلًا (٣٠)
أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمۡ جَنَّٰتُ عَدۡنٖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهِمُ ٱلۡأَنۡهَٰرُ يُحَلَّوۡنَ فِيهَا مِنۡ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٖ وَيَلۡبَسُونَ ثِيَابًا خُضۡرٗا مِّن سُندُسٖ
وَإِسۡتَبۡرَقٖ مُّتَّكِـِٔينَ فِيهَا عَلَى ٱلۡأَرَآئِكِۚ نِعۡمَ ٱلثَّوَابُ وَحَسُنَتۡ مُرۡتَفَقٗا (٣١) ۞ وَٱضۡرِبۡ لَهُم مَّثَلٗا رَّجُلَيۡنِ جَعَلۡنَا لِأَحَدِهِمَا جَنَّتَيۡنِ
مِنۡ أَعۡنَٰبٖ وَحَفَفۡنَٰهُمَا بِنَخۡلٖ وَجَعَلۡنَا بَيۡنَهُمَا زَرۡعٗا (٣٢) كِلۡتَا ٱلۡجَنَّتَيۡنِ ءَاتَتۡ أُكُلَهَا وَلَمۡ تَظۡلِم مِّنۡهُ شَيۡـٔٗاۚ وَفَجَّرۡنَا خِلَٰلَهُمَا نَهَرٗا
(٣٣) وَكَانَ لَهُۥ ثَمَرٞ فَقَالَ لِصَٰحِبِهِۦ وَهُوَ يُحَاوِرُهُۥٓ أَنَا۠ أَكۡثَرُ مِنكَ مَالٗا وَأَعَزُّ نَفَرٗا (٣٤) وَدَخَلَ جَنَّتَهُۥ وَهُوَ ظَالِمٞ
لِّنَفۡسِهِۦ قَالَ مَآ أَظُنُّ أَن تَبِيدَ هَٰذِهِۦٓ أَبَدٗا (٣٥) وَمَآ أَظُنُّ ٱلسَّاعَةَ قَآئِمَةٗ وَلَئِن رُّدِدتُّ إِلَىٰ رَبِّي لَأَجِدَنَّ خَيۡرٗا مِّنۡهَا
مُنقَلَبٗا (٣٦) قَالَ لَهُۥ صَاحِبُهُۥ وَهُوَ يُحَاوِرُهُۥٓ أَكَفَرۡتَ بِٱلَّذِي خَلَقَكَ مِن تُرَابٖ ثُمَّ مِن نُّطۡفَةٖ ثُمَّ سَوَّىٰكَ رَجُلٗا (٣٧) لَّٰكِنَّا۠ هُوَ
ٱللَّهُ رَبِّي وَلَآ أُشۡرِكُ بِرَبِّيٓ أَحَدٗا (٣٨) وَلَوۡلَآ إِذۡ دَخَلۡتَ جَنَّتَكَ قُلۡتَ مَا شَآءَ ٱللَّهُ لَا قُوَّةَ إِلَّا بِٱللَّهِۚ إِن تَرَنِ أَنَا۠ أَقَلَّ مِنكَ
مَالٗا وَوَلَدٗا (٣٩) فَعَسَىٰ رَبِّيٓ أَن يُؤۡتِيَنِ خَيۡرٗا مِّن جَنَّتِكَ وَيُرۡسِلَ عَلَيۡهَا حُسۡبَانٗا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ فَتُصۡبِحَ صَعِيدٗا زَلَقًا
(٤٠) أَوۡ يُصۡبِحَ مَآؤُهَا غَوۡرٗا فَلَن تَسۡتَطِيعَ لَهُۥ طَلَبٗا (٤١) وَأُحِيطَ بِثَمَرِهِۦ فَأَصۡبَحَ يُقَلِّبُ كَفَّيۡهِ عَلَىٰ مَآ أَنفَقَ فِيهَا وَهِيَ خَاوِيَةٌ
عَلَىٰ عُرُوشِهَا وَيَقُولُ يَٰلَيۡتَنِي لَمۡ أُشۡرِكۡ بِرَبِّيٓ أَحَدٗا (٤٢) وَلَمۡ تَكُن لَّهُۥ فِئَةٞ يَنصُرُونَهُۥ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَمَا كَانَ مُنتَصِرًا (٤٣) هُنَالِكَ
ٱلۡوَلَٰيَةُ لِلَّهِ ٱلۡحَقِّۚ هُوَ خَيۡرٞ ثَوَابٗا وَخَيۡرٌ عُقۡبٗا (٤٤) وَٱضۡرِبۡ لَهُم مَّثَلَ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا كَمَآءٍ أَنزَلۡنَٰهُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ فَٱخۡتَلَطَ بِهِۦ
نَبَاتُ ٱلۡأَرۡضِ فَأَصۡبَحَ هَشِيمٗا تَذۡرُوهُ ٱلرِّيَٰحُۗ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ مُّقۡتَدِرًا (٤٥) ٱلۡمَالُ وَٱلۡبَنُونَ زِينَةُ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَاۖ
وَٱلۡبَٰقِيَٰتُ ٱلصَّٰلِحَٰتُ خَيۡرٌ عِندَ رَبِّكَ ثَوَابٗا وَخَيۡرٌ أَمَلٗا (٤٦) وَيَوۡمَ نُسَيِّرُ ٱلۡجِبَالَ وَتَرَى ٱلۡأَرۡضَ بَارِزَةٗ وَحَشَرۡنَٰهُمۡ فَلَمۡ نُغَادِرۡ
مِنۡهُمۡ أَحَدٗا (٤٧) وَعُرِضُواْ عَلَىٰ رَبِّكَ صَفّٗا لَّقَدۡ جِئۡتُمُونَا كَمَا خَلَقۡنَٰكُمۡ أَوَّلَ مَرَّةِۭۚ بَلۡ زَعَمۡتُمۡ أَلَّن نَّجۡعَلَ لَكُم مَّوۡعِدٗا (٤٨)
وَوُضِعَ ٱلۡكِتَٰبُ فَتَرَى ٱلۡمُجۡرِمِينَ مُشۡفِقِينَ مِمَّا فِيهِ وَيَقُولُونَ يَٰوَيۡلَتَنَا مَالِ هَٰذَا ٱلۡكِتَٰبِ لَا يُغَادِرُ صَغِيرَةٗ وَلَا كَبِيرَةً
إِلَّآ أَحۡصَىٰهَاۚ وَوَجَدُواْ مَا عَمِلُواْ حَاضِرٗاۗ وَلَا يَظۡلِمُ رَبُّكَ أَحَدٗا (٤٩) وَإِذۡ قُلۡنَا لِلۡمَلَٰٓئِكَةِ ٱسۡجُدُواْ لِأٓدَمَ فَسَجَدُوٓاْ إِلَّآ إِبۡلِيسَ
كَانَ مِنَ ٱلۡجِنِّ فَفَسَقَ عَنۡ أَمۡرِ رَبِّهِۦٓۗ أَفَتَتَّخِذُونَهُۥ وَذُرِّيَّتَهُۥٓ أَوۡلِيَآءَ مِن دُونِي وَهُمۡ لَكُمۡ عَدُوُّۢۚ بِئۡسَ لِلظَّٰلِمِينَ بَدَلٗا
(٥٠) ۞ مَّآ أَشۡهَدتُّهُمۡ خَلۡقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ وَلَا خَلۡقَ أَنفُسِهِمۡ وَمَا كُنتُ مُتَّخِذَ ٱلۡمُضِلِّينَ عَضُدٗا (٥١) وَيَوۡمَ يَقُولُ

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


نَادُواْ شُرَكَآءِيَ ٱلَّذِينَ زَعَمۡتُمۡ فَدَعَوۡهُمۡ فَلَمۡ يَسۡتَجِيبُواْ لَهُمۡ وَجَعَلۡنَا بَيۡنَهُم مَّوۡبِقٗا ﴿٥٢﴾ وَرَءَا ٱلۡمُجۡرِمُونَ ٱلنَّارَ فَظَنُّوٓاْ أَنَّهُم مُّوَاقِعُوهَا وَلَمۡ يَجِدُواْ عَنۡهَا مَصۡرِفٗا ﴿٥٣﴾ ﴾ الكهف: ۲۷ ـ ۵۳

**مناسبت او تړاو:**

کله چي الله تعالی داصحاب کهف کیسه ذکرکړه هغه چي دقرباني انځور اوډایمان په لارکي دمېړاني اوقهرماني یوه ځانګړي بېلګه وه ورپسي يې ددووباغونو دخاوند کیسه راوړه چي هغه هم د عقیدې په لاره کي دوپاره ډک مثال دی کله چي دبني اسرائیلوپه قوم کي دوه تنه ورونه چي یويې مؤمن اوپخپل ایمان فخرکوي اوبل يې دباغونومالک کافردی الله تعالی دارابښې چي پدې کیسه کي خومره پندونه اونصیحتونه شته دي او همدغسي دآیاتونوپه ترڅ کي قرآني توجیهات اولارښووني موجودي دي.

**لغتونه:**

(ملتحدا) پناه ګاه اصل يې له لحدځخه اخیستل شوی اوهغه میلان ته وايې اوځوک چي چېرته پناه یوسي ګواکي هغه لوري ته يې میلان وکړ(فرطا) له حدځخه تجاوزکونکي ته ویل کېږي (فرسٌ فُرُطٌ) یعني تراسونو دمخه شوی آس ،لیث وايې چي (فُرط) هغه څه ته وايې چي پکي افراط شوی دی (سرادقها) دېوالونه (المهل) تېول هغه چي له معادنوځخه ویلي کېږي (سندس) نري وربښم (استبرق) دوربښموپنډي جامې چي دېباج يې هم بولي (الارائک) داریکة جمع اوهغه تخت ته وايې چي په جامو ،پردو اوښکلا سینګار شوی وي لکه دناوي پالنګ (حسبانا) تندراوتکه (هشیما) وچ کلک وابنه (نغادر) موږ پرېږدو.

**دنزول سبب يې:**

روایت کېږي چي دقریشومخه وراشراف رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغونډشول اوهغه ته يې وویل: که غواړې چي موږپرتاایمان راوړو نودغه بېوزلان له خپله درباره وشړه (مقصديې له دوی ځخه حضرت بلال، خباب، صهیب اونور اصحاب رضوان الله علیهم وو )ځکه موږ عیب ګڼوچي له دوی سره یوځای ستاسي په مجلس کي کینو ته ددوی لپاره کوم بل وخت وټاکه چي ستامجلس ته راشي نوالله پاک دغه آیت نازل کړچي: ﴿وَٱصۡبِرۡ نَفۡسَكَ مَعَ ٱلَّذِينَ يَدۡعُونَ رَبَّهُم بِٱلۡغَدَوٰةِ وَٱلۡعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجۡهَهُۥۖ وَلَا تَعۡدُ عَيۡنَاكَ عَنۡهُمۡ﴾ دآیت ترپایه

**تفسیر:**

﴿وَٱتۡلُ مَآ أُوحِيَ إِلَيۡكَ مِن كِتَابِ رَبِّكَۖ﴾ اوولوله (ای محمده دوی ته !) هغه چي وحی کړی شوي ده تاته له کتابه درب دتا (چي ذکر حکیم دی) ﴿لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَٰتِهِۦ﴾ نشته بدلونکی دکلماتوددغه الله) ﴿وَلَن تَجِدَ مِن دُونِهِۦ مُلۡتَحَدٗا﴾ اوله سره به نه مومې غیرله دغه (الله) ځای دپناه (هیڅکله) ﴿وَٱصۡبِرۡ نَفۡسَكَ مَعَ ٱلَّذِينَ يَدۡعُونَ رَبَّهُم بِٱلۡغَدَوٰةِ وَٱلۡعَشِيِّ﴾ اوصبر(ټینګ) کړه ځان خپل له هغوکسانوسره چي بولي(عبادت کوي د ) رب خپل په سبااوبېګا کي (یعني دفقراوو اوبېوزله اصحابوسره مشغول اوسېږه)

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



﴿ يُرِيدُونَ وَجۡهَهُۥ ﴾ غواړي دوی ذات دالله (پخپله بلنه(دعاسره) ﴿ وَلَا تَعۡدُ عَيۡنَاكَ عَنۡهُمۡ ﴾ اونه دي تېرې ستر ګي ستاله دوی نه (نوروبډايانواومخه ورواشرافوته ) مفسرين کرام وايي چې: رسول الله صلی الله عليه وسلم دسردارانوپه ايمان راوړلوکي ډېرحرص اوتلوسه درلوده ترڅوچي دهغوی پيروان به هم ايمان راوړي او ددنياداري له پلوه هيڅکله هم درسول الله صلی الله عليه وسلم دوی ته توجه نه وه نوالله پاک وفرمايل چې تل دي ددغومتقيانومؤمنانولوري ته مخ کړي اوله دغولويو متکبرانوڅخه دي

مخ واړوي چې مشرکان دي﴿ تُرِيدُ زِينَةَ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا ﴾چې غواړې ته (زينت) ددې فاني ژوندد دنيا(اوددوی په ناستي پاستي وياړې) (١) ابن عباس رضی الله عنهماوايې چې: معنا دا چې له

دغوضعيفانو، بېوزلانوڅخه نورودمال اوشرف خاوندانوته مخ مه اړوه ﴿ وَلَا تُطِعۡ مَنۡ أَغۡفَلۡنَا قَلۡبَهُۥ عَن

ذِكۡرِنَا ﴾ اواطاعت مکوه د هغه چاچي غافل کړی دی موږ زړه دده له ذکره زموږڅخه (چې دوی دمؤمنانو شړل غواړي ) وايي چې: دغه دعيينة بن حصن اودهغه دملګروپه باب نازل شوی دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغلل اوله رسول الله صلی الله عليه وسلم سره يوه تولی بېوزله اصحابان لکه سلمان فارسي اونور ووچي دوړينوجاموبې دخولوبوی لګېدونوعيينة رسول الله صلی الله عليه وسلم ته وويل: آيادد غو بوی تکليف نه درکوي؟ اوموږ دمضرد قبيلې مشران اوسرداران يوکه موږ ايمان راوړخلګ به راسره ايمان راوړي اوله ايمان راوړلوڅخه مودغه ستاپيروان منع کوي دوی درڅخه ګوښه کړه چې موږ ايمان راوړو يازمو: لپاره ځانله مجلس وټاکه اوددوی لپاره ګوښې مجلس جوړکړه نوبيامحمد رسول الله صلی الله عليه وسلم راووت اوهغه فقرآء اصحاب يې لټول چې ويې موندل ورسره کښېناست اوويې ويل: الحمد لله چې زماپه أمت کي الله داسي کسان شامل کړي چې ماته امرکوي له دوی سره مشغول اوسم)

﴿ وَٱتَّبَعَ هَوَىٰهُ وَكَانَ أَمۡرُهُۥ فُرُطٗا ﴾ اومتابعت يې کړی دی دخپلي هوا(اوالله يې پرې اينبی ) اودهغه کاردی هلاکت (اوتجاوزله حده) ﴿ وَقُلِ ٱلۡحَقُّ مِن رَّبِّكُمۡۖ فَمَن شَآءَ فَلۡيُؤۡمِن وَمَن شَآءَ فَلۡيَكۡفُرۡۚ ﴾ ووايه (ای محمده دغوغافلينوته چې ځرګنده شوی) حق دی له ربه ستاسي پس هرڅوک چې (دايمان) اراده وکړي نوايمان دي راوړي ! اوهرڅوک چې(دکفر) اراده وکړي نوکافر دي شي ؛ دغه په ظاهري ډول امردی اوپه واقعيت

کي وعيداوانذاردی اولکه دالله تعالی هغه وينادغسي ده چې فرمايي: ﴿ ٱعۡمَلُواْ مَا شِئۡتُمۡ ﴾ ﴿ إِنَّآ أَعۡتَدۡنَا

لِلظَّٰلِمِينَ نَارًا أَحَاطَ بِهِمۡ سُرَادِقُهَاۚ ﴾ بېشکه چې موږ تيارکړی دی لپاره دظالمانو(کافرانو داسي) اورچې چاپېرشوی دی له دوی پردې دهغه (اوداسي ورباندي راګرزېدلی لکه لاس وندی په مرونډ باندي)

﴿ وَإِن يَسۡتَغِيثُواْ يُغَاثُواْ بِمَآءٖ كَٱلۡمُهۡلِ يَشۡوِي ٱلۡوُجُوهَۚ ﴾ اوکه فريادوکړي دوی(له تندي) نوفريادبه يې واوريدل شي په (ورکولوداسي اوبو ) لکه زوی چې مخونه به وريتوي (يالکه دتېلوخټ چې کله دوی ته ورنژدې کړل شي له ډېري ګرمي به يې مخونه کبابوي. په حديث شريف کي راځي: داسي اوبه به ورکول

---

(١) المختصر ٢ / ٤١٢

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کېږي لکه د تېلو خښتې چې کله ورنژدې کړی شي نو د مخ پوستوکي به يې له ډېري ګرمي راولوېږي(١) الله مودې د دوزخ څخه وژغوري آمين ﴿ بِئۡسَ ٱلشَّرَابُ وَسَآءَتۡ مُرۡتَفَقًا ﴾ بد څښېږد څښلو دی دا زوی او بد دی (دغه اور ځای) دا وسېدلو چې دوزخيان به وربا ندې انتفاع اخلي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجۡرَ مَنۡ أَحۡسَنَ عَمَلًا ﴾ بېشکه هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او کړي يې دي ښه عملونه مونږ نه ضائع کوو ثواب د هغه چاچې ډېر نېک وي له جهته د عمله (بلکه زياتوو يې او وده ورکوو) کله چې الله پاک د بد مرغانو حال بيان کړنو ورپسې يې د نېکمرغه کسانو ذکرو فرمايه هغه ډول چې د قرآنکريم اسلوب دی چې ترهيب او ترغيب يود بل له اړخه راوړي ﴿ أُوْلَـٰٓئِكَ لَهُمۡ جَنَّـٰتُ عَدۡنٖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهِمُ ٱلۡأَنۡهَـٰرُ ﴾ دغه (مؤمنان چې دي) شته دوی ته هسې جنتونه د تل هستوګنې چې لاندې (له ماڼيو او ونو د هغو ) بهېږي ويالې ﴿ يُحَلَّوۡنَ فِيهَا مِنۡ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٖ ﴾ په لاس کول به شي دوی ته په دغه (جنت) کې وښي له سروزرو څخه ؛ مفسرين کرام وايي چې: د ټولو جنتيانو به کنګړ د سرو او سپينوزرو په لاسونو کې وي او همداسې د لؤلؤ (ملغلرو ) وښې به يې وي لکه چې الله فرمايي : ﴿ وَحُلُّوٓاْ أَسَاوِرَ مِن فِضَّةٖ وَلُؤۡلُؤٗاۖ وَلِبَاسُهُمۡ فِيهَا حَرِيرٞ ﴾ په حديث شريف کې راځي چې: د مؤمن سينګار به تر هغه ځايه پورې رسېږي تر کومه ځايه چې د اودا سه د او بو رسيدو اندازه وي ﴿ وَيَلۡبَسُونَ ثِيَابًا خُضۡرٗا مِّن سُندُسٖ وَإِسۡتَبۡرَقٖ ﴾ او اغوندي به دغه جنتيان جامې زرغونې له نرمو ورېښمو او له پرېړه ورېښمو ؛ طبري وايي : د آيت معنا دا چې : دوی ته به ګانه د سروزرو کنګړوي او جامې به يې د نرې ورېښمو او پنډو ورېښموو ي (٢)﴿ مُّتَّكِـِٔينَ فِيهَا عَلَى ٱلۡأَرَآئِكِۚ ﴾ تکيه کونکي به وي په دغو (جنتونوکې په تختونو باندې (چې ښايسته به وي په جامو او پردو باندې . ابن عباس رضى الله عنهما وايي چې: تختونه به د سروزرو وي او ملغلرې ،ياقوت به پکې وهل شوي وي وربا ندې به پردې وي يو تخت به لکه د صنعاء او أيکة ترمينځ مسافې غوندې پراخ وي او يا به لکه د عدن او جابية ترمينځ واټن غوندې ستروالی لري (٣)﴿ نِعۡمَ ٱلثَّوَابُ وَحَسُنَتۡ مُرۡتَفَقًا ﴾ څومره ښه بدله ده (دا جنتونه نعمتونه) او څومره ښه ځای د آرام دی (دا جنتونه او نعمتونه) د متقيانو لپاره) ﴿ وَٱضۡرِبۡ لَهُم مَّثَلٗا رَّجُلَيۡنِ ﴾ (او بيان کړه ته دوی ته يو مثال (د کفارو او مؤمنانو هغه ) دوه سړي ) يعني ته د غو کفارو ته چې له تا څخه يې غوښتنه کړې چې فقراء له خپله درباره وشړه د هغو دووتنو مثال وښيه. مفسرين کرام وايي چې په بني اسرائيلو کې دوه ورونه وو يو يې مؤمن او هغه بل کافرو دواړو ته له خپله پلاره په مېراث مال پاتې شو کافر په هغه مال باندې دوه باغونه راتيول او مسلمان خپل مال د الله په لاره

---

(١) أخرجه الترمذى

(٢) الطبري ١٥/ ٢٤٣

(٣) القرطبي ١٠/ ٣٩٨

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



کي ولګاوو چي د الله خوښي او رضا ترلاسه کړي آن تردې چي ګرد مال یې خلاص او نېستمن شو کافر ورور یې پېغور ورکړ خو الله جل جلاله د کافر مال هلاک او تباه کړ او دا یې د مسلمان مؤمن لپاره چي د الله طاعت عبادت کوي او هغه کافر چي د مال په ډېروالي غرور لري یو مثال راوړ ﴿ جَعَلْنَا لِأَحَدِهِمَا جَنَّتَيْنِ مِنْ أَعْنَابٍ وَحَفَفْنَاهُمَا بِنَخْلٍ ﴾ چي ګرزولي (ورکړي وو) موږ یوله دوی دواړو ته دوه باغونه له انګورو (مېوه دار په خوندور ډولونو د انګورو سره) او پټ کړي وو موږ دا باغونه په خرماوو سره (خواوشا مو د خرماوو ونو کتارې ورباندي راتاو کړي وې) ﴿ وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمَا زَرْعًا ﴾ او پیدا کړي وو موږ په مېنځ ددې دوو باغونو کي کښت (چي وياله یې په مېنځ کي بهېدله دغه په رښتیا چي یو زړه راښکونکی منظر او انځور دی چي قرآنکریم یې په خورا ښه انداز سره تعبیروي دوه باغونه چي ډول ډول انګورپکې دي خواوشا یې د خرماوو وني چاپېره کېنول شوي په مېنځ کي یې د زراعت (فصل) لپاره ځمکه او پکي رڼې د اوبو ويالې بهېږي ﴿ كِلْتَا الْجَنَّتَيْنِ آتَتْ أُكُلَهَا وَلَمْ تَظْلِمْ مِنْهُ شَيْئًا ﴾ دي دواړو باغونو به خپلي مېوې (پوره) ورکولې او نه به یې کاوو ظلم (کموالی) له خپله محصوله هیڅ شی ﴿ وَفَجَّرْنَا خِلَالَهُمَا نَهَرًا ﴾ او بهولي وه موږ په مېنځ ددې دواړو باغونو کي وياله ﴿ وَكَانَ لَهُ ثَمَرٌ ﴾ او وه دغه (کافر) ته (له دې دواړو باغونو څخه هرقسم) مېوې ﴿ فَقَالَ لِصَاحِبِهِ وَهُوَ يُحَاوِرُهُ أَنَا أَكْثَرُ مِنْكَ مَالًا وَأَعَزُّ نَفَرًا ﴾ پس وویل: دغه (کافر) هغه (مؤمن) ملګري خپل ته حال دا چي ورسره مجادله یې کوله په افتخارېږي ویل چي زه تر تا لوړ) زیات یم له جهته د ماله او ډېر عزتناک یم له جهته د سړو (چوپړیانو) ﴿ وَدَخَلَ جَنَّتَهُ وَهُوَ ظَالِمٌ لِنَفْسِهِ ﴾ او ننوت دی خپل باغ ته حال دا چي دی ظالم وو پرخان خپل) یعني خپل ورور یې ترلاس ونیو او په باغ کي یې ګرزاوو هغه وني مېوې یې ورښکارولې او دی په تکبر او کفر سره پرخپل خان ظالم وو ﴿ قَالَ مَا أَظُنُّ أَنْ تَبِيدَ هَٰذِهِ أَبَدًا ﴾ وویل یې چي زه ګمان نه کوم چي دغه باغ به هیڅېږي خراب شي ﴿ وَمَا أَظُنُّ السَّاعَةَ قَائِمَةً ﴾ او زه ګمان نه کوم چي قیامت به واقع شي (د خپل باغ د خرابي او همدا راز د قیامت له راتلو څخه منکر شو) ﴿ وَلَئِنْ رُدِدْتُ إِلَىٰ رَبِّي لَأَجِدَنَّ خَيْرًا مِنْهَا مُنْقَلَبًا ﴾ او که چېري بوتلی شم (بالفرض والتقدیر ستا په ګمان) رب خپل ته نو خامخا به مومم غوره له دې باغ څخه مرجع (تردې به ښه الله راکړي ځکه زه په الله ګران یم) ﴿ قَالَ لَهُ صَاحِبُهُ وَهُوَ يُحَاوِرُهُ ﴾ وویل: دغه (کافر) ته (مؤمن) ملګري دده حال دا چي دغه مؤمن ورسره مباحثه کوله ﴿ أَكَفَرْتَ بِالَّذِي خَلَقَكَ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ سَوَّاكَ رَجُلًا ﴾ آیا کافر شوې پر هغه ذات چي پیدا کړی یې ته (په اول کي) له خاوري بیا له نطفي بیا یې برابر کړې ته سړی (روغ رمټ اندامونه ؛ استفهام د توبیخ او تقریع لپاره دی ﴿ لَٰكِنَّا هُوَ اللَّهُ رَبِّي وَلَا أُشْرِكُ بِرَبِّي أَحَدًا ﴾ لیکن زه وایم شان دا دی چي الله زما رب (خالق) دی او نه شریکوم زه له خپله ربه سره هیڅوک (هغه یوازنی برحق دی) ﴿ وَلَوْلَا إِذْ

Bawar.net



دَخَلۡتَ جَنَّتَكَ قُلۡتَ مَا شَآءَ ٱللَّهُ ﴾(اوولي نه په هغه وخت كي چي ننوتى خپل باغ ته ويل به تاماشآء الله چي الله اراده وفرمايي هغه كيږي) يعني ولي دي كله چي باغ خپل ته ننوتې اووني ، مېوې دي وليدلې خوندېې دركړل داسي دي نه ويل؟! : چي دغه دالله تعالى فضل دى څه چي الله وغواړي هغه كيږي اوچي دالله اراده نه وي هغه نه كيږي ﴿ لَا قُوَّةَ إِلَّا بِٱللَّهِ ﴾نشته قوت (په طاعت دالله) مگر(په توفيق) دالله (اومعاونت يې) ﴿إِن تَرَنِ أَنَا۠ أَقَلَّ مِنكَ مَالٗا وَوَلَدٗا ﴾كه ماوينې چي زه له تانه له جهته د ماله اواولاده لږ يم ﴿ فَعَسَىٰ رَبِّيٓ أَن يُؤۡتِيَنِ خَيۡرٗا مِّن جَنَّتِكَ ﴾پس (اميدلرم چي ژردى ) چي رب زما راكړي ماته بهتره له باغه ستا ؛ دغه د شرط ځواب دى يعني زه دالله له فضل اواحسانه ښخه هيله من يم چي الله به زمااوستاپه حال كي بدلون راولي ماته به ستاترجنت (باغ) ښه باغ راكړي څكه چي ماورباندي ايمان راوړى اوله تاڅخه به يې واخلي چي تادهغه دنعمت كفران كړيدى ﴿ وَيُرۡسِلَ عَلَيۡهَا حُسۡبَانٗا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ ﴾اوچي ولېږي په دغه باغ ستا تندرله آسمانه(اوتباه بربادېې كړي) ﴿ فَتُصۡبِحَ صَعِيدٗا زَلَقًا ﴾پس سباته وگرزي (باغ ستا) ډاگ ميدان ښوى (چي سرې پرې ښوئېږي اوهيڅ نبات او وابنه پكي نه زرغونېږي ﴿ أَوۡ يُصۡبِحَ مَآؤُهَا غَوۡرٗا فَلَن تَسۡتَطِيعَ لَهُۥ طَلَبٗا ﴾(ياسباته وگرزي اوبه ددې باغ وچي ډوبي پس له سره به ته ونه توانېږې دې ډوبو اوبولره په لټولوسره ) يعني ياخوبه يې داوبه دومره ژوري دځمكي تل ته ننوزي نوټول فصل اووني به وچي شي اوهله به ته دغه اوبه ونه مومې چي راوېې باسې اويايې راوگرزوې دلته خبري اترې پاى ته رسېږي اونابېره (ناڅاپه) يوهېښونكي( حيرانونكي) پېښه رامېنځ ته كېږي اودمؤمن مسلمان هيلي غوتۍ سپړي له كافرڅخه نعمت اخيستل كېږي او سمدلاسه له هغه ښكلي ښايسته منظرڅخه موږ د تباهي اوخرابي كنډوالوته بيايي ﴿وَأُحِيطَ بِثَمَرِهِۦ ﴾ اوچاپېركړى شوپه انواعو دمېوو دهغه (باغ چي يومخ ايزه يې كښت اومېوې له مينځه يوړې ﴿ فَأَصۡبَحَ يُقَلِّبُ كَفَّيۡهِ عَلَىٰ مَآ أَنفَقَ فِيهَا ﴾نو وگرزېدوپه وخت دسباكي چي اړوه يې څټ او مخ دارغوو خپلو (له خفگانه پرهغه مبلغ چي لگولى يې ووپكي چي مال يې ضائع اوكوښښ يې زيان شو. قرطبي وايې چي يولاس يې په بل ټپول پښېماني يې كوله او پښېمانه خلک همداسي كوي ﴿ وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا ﴾حال داچي دغه باغ لوېدلى ووپرمناگانو د تاكو خپلو (يعني بامونه يې په دېوالونو رالوېدلي وواوخراب، تراب شو﴿ وَيَقُولُ يَٰلَيۡتَنِي لَمۡ أُشۡرِكۡ بِرَبِّيٓ أَحَدٗا ﴾ اووايې كاشكي ماله خپل رب سره هيڅوک شريک نه واى نيولى (هلته يې پښېماني وكړه چي ورته گټه يې نه رسوله ,الله فرمايي: ﴿ وَلَمۡ تَكُن لَّهُۥ فِئَةٞ يَنصُرُونَهُۥ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَمَا كَانَ مُنتَصِرًا ﴾اونه وه ده ته كومه ډله چي مددېې كړى واى له ده سره (اوهلاک يې څني دفع كړى واى) غير له الله يعني نه هم ده پخپله دالله له انتقام څخه ځان ژغورلاى شواى اونه يې تېردغه وس درلودنه يې اولادونوكوم چي ده به وربانديي فخر كاوو﴿ هُنَالِكَ ٱلۡوَلَٰيَةُ لِلَّهِ ٱلۡحَقِّۚ ﴾په دغه وخت كي ټول اختيار خاص الله لره حق دى (يوازي دالله نصرت

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net


شته نه ده پرته ده چالوان نسته موازي هغه خپلو اولياووته مرسته ورکوي ﴿ هُوَ خَيْرٌ ثَوَابًا وَخَيْرٌ عُقْبًا ﴾ (الله غوره دى نه جهته دثواب اوغوره دى له جهته دعاقبته) يعني الله دثواب ورکولوله جهته په دنيااوآخرت کي غوره دى هغه چالره چي ور باندي ايمان راوړي او هغه چالره چي ورته اميدلري او ورباندي له جهته دعاقبته عتماد کوي ﴿ وَاضْرِبْ لَهُم مَّثَلَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا كَمَاءٍ أَنزَلْنَاهُ مِنَ السَّمَاءِ فَاخْتَلَطَ بِهِ نَبَاتُ الْأَرْضِ ﴾ (اووښيه بيان کړه دغو(خلګوته ) مثال د دې دنيوي ژوندانه (په تازه ګي اوژرتېرېدلو کي) په مثل دهغواوبوچي نزلي کړي دي موږ هغه اوبه له (لوري) دآسمانه نوګڼ يوبل سره ګډوډشي په سبب ددې (اوبو) زرغونه وابښه ددې ځمکي) دغه يوبل مثال دى چي ددنيادښکلا او تازه ګي دتېرايستلو لپاره يې لکه پورتني دوه باغونه غوندي راوړي دي ﴿ فَأَصْبَحَ هَشِيمًا تَذْرُوهُ الرِّيَاحُ ﴾ نو وګرزوي (دغه زرغونه) وچه کلکه ماته ، ماته چي بادونه يې (ښي اوکيڼ لوري ته)الوزوي ) ﴿ وَكَانَ اللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ مُّقْتَدِرًا ﴾ اوالله په هرڅېزباندي تواناوقادردى (چي همدغه احياء اوافناء هم ځيني له هغودي او هيڅوک نه په آسمان اونه په ځمکه کي الله ﷻ مغلوبولاى شي ) ﴿ الْمَالُ وَالْبَنُونَ زِينَةُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ﴾ مال اوزامن زينت ښايست ددې دنيوي ژوندانه دي (دغه يې مثال اودغه يې زينت دى چي تول زوال او فنامومي په هغوى باندي پرته له احمق اوناپوه انسان څخه بل څوک نه تېروزي ﴿ وَالْبَاقِيَاتُ الصَّالِحَاتُ خَيْرٌ عِندَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَخَيْرٌ أَمَلًا ﴾ اوباقي پاتي کېدونکي نېک (عملونه) غوره دي په نزد درب ستاله جهته دثوابه اوغوره دي له جهته داميده؛ ابن عباس رضى الله عنهماوايې چي الباقيات الصالحات عبارت له پنځولمنځونوڅخه دي او همداسي بياوايې چي هرصالح عمل چي قولي اوکه فعلي وي چي دآخرت لپاره پاتي کېدونکي وي هغه له الباقيات الصالحات څخه دى[1] او په حديث شريف کي راځي چي: (سبحان الله والحمدلله ولااله الاالله والله اکبر)دغه الباقيات الصالحات دي ﴿ وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الْجِبَالَ ﴾ او(يادکړه) هغه ورځ چي روان به کړو غرونه) يعني کله چي له خپله ځايه وکاږو اوهسي يې وخوځوو لکه چي وريځ خوځېږي دوړيوغوندي په هواکي سره ګرزي ﴿ وَتَرَى الْأَرْضَ بَارِزَةً ﴾ اوګورې به ته (اى انسانه) ځمکه ښکاره (نه به ورباندي غرونه نه ځنګلونه وينې اونه هم آبادي ,غرونه به يې له بېخه ايستل شوي اوتعمېرات به يې وران شوي وي صاف ميدان به معلومېږي ﴿ وَحَشَرْنَاهُمْ فَلَمْ نُغَادِرْ مِنْهُمْ أَحَدًا ﴾ اوراجمع به کړو موږ دوى (خلګ) نوپرې به نه ږدو له دوى نه يوتن هم (نه له رومبنيو اونه له وروستنيو دحساب لپاره به يې راغونډ کړو ) ﴿ وَعُرِضُوا عَلَىٰ رَبِّكَ صَفًّا ﴾ او وړاندي به کړى شي دوى ستاپه رب صف صف (هيڅ يوبه تربل پټ نه وي) اوپه حديث شريف کي راځي چي الله تعالى به اولين اوآخرين په يوه ميدان کي راغونډ کړي صفونه صفونه. مقاتل وايې چي دوى به دلمانځه په شان صف صف دالله په وړاندي درېږي

[1]) دغه طبري غوره کړي اوقرطبي وايې چي همدغه انشآء الله صحيح دى.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



هرامت اوهره تولی به صف وي (١) ﴿ لَّقَدۡ جِئۡتُمُونَا كَمَا خَلَقۡنَٰكُمۡ أَوَّلَ مَرَّةِۭۚ ﴾ (اووبه ویلای شي دغوصفونو ته) خامخا راغلی تاسي موږ ته (یوازي لغړ، بربنډ چي نه درسره مال دولت اونه اولادشته) لکه چي موږ تاسي پیداکړي وای رومبی خلي ﴿ بَلۡ زَعَمۡتُمۡ أَلَّن نَّجۡعَلَ لَكُم مَّوۡعِدٗا ﴾ بلکه تاسي ګمان کاوو (ای دبعث منکرینو) چي موږ به ونه ګرزووتاسي ته ځای اودوعدې وخت (نه بعث اونه جزاحساب اوعذاب) ﴿ وَوُضِعَ ٱلۡكِتَٰبُ ﴾ او کتاب به کېښودلی شي (یعني دبشر عملنامې به ورته ورکول شي) ﴿ فَتَرَى ٱلۡمُجۡرِمِينَ مُشۡفِقِينَ مِمَّا فِيهِ ﴾ پس ګورې به ته ګناهګاران وېرېدونکي له هغه نه چي پکي (لیکلي) دي (له ګناهونو) ﴿ وَيَقُولُونَ يَٰوَيۡلَتَنَا ﴾ اووایي به ای زموږ هلاکه (په هغه چي موږ په دنیاکي ګناوي کولې) ﴿ مَالِ هَٰذَا ٱلۡكِتَٰبِ لَا يُغَادِرُ صَغِيرَةٗ وَلَا كَبِيرَةً إِلَّآ أَحۡصَىٰهَاۚ ﴾ څه حال دی ددې عملنامې زموږچي نه پرېږدي وړه (ګناه) اونه یوه لویه (ګناه) مګرچي حساب یې کړی دی هغه (تولي) الله تعالی فرمایي: ﴿ وَوَجَدُواْ مَا عَمِلُواْ حَاضِرٗاۗ ﴾ اووبه مومي دوی هغه څېزچي کړی یې دی (په دنیا کي په خپل مخ کي) حاضر (لیکلی په اعمالنامه کي) ﴿ وَلَا يَظۡلِمُ رَبُّكَ أَحَدٗا ﴾ اونه کوي ظلم رب ستاپه هیڅا یعني هیڅ انسان پرته له ګناه نه په عذابوي اونه هم دکوم نیکوکارله ثواب څخه څه کموي ﴿ وَإِذۡ قُلۡنَا لِلۡمَلَٰٓئِكَةِ ٱسۡجُدُواْ لِأٓدَمَ فَسَجَدُوٓاْ إِلَّآ إِبۡلِيسَ ﴾ او (یاد (کړه) هغه وخت چي وویل موږ پرښتوته چي تاسي آدم ته سجده وکړئ (تعظیما) پس ټولوسجده وکړه مګر (ابلیس (سجده ونکړه) ﴿ كَانَ مِنَ ٱلۡجِنِّ فَفَسَقَ عَنۡ أَمۡرِ رَبِّهِۦٓۗ ﴾ وودی (اصلا) له پېریانوپس ووت له امره درب خپل (آیت شریف پدې تصریح کوي چي ابلیس دپېریانوله ډلي دی له ملائکوڅخه نه دی (٢) ﴿ أَفَتَتَّخِذُونَهُۥ وَذُرِّيَّتَهُۥٓ أَوۡلِيَآءَ مِن دُونِي وَهُمۡ لَكُمۡ عَدُوُّۢۚ ﴾ آیاپس تاسي نیسئ (ای بني آدمانو!) دی اواولاده دده دوستان (چي خبره یې منئ) غیرله ما، حال داچي دی دغه (شیطان) تاسي ته دښمن ﴿ بِئۡسَ لِلظَّٰلِمِينَ بَدَلٗا ﴾ بددی (ابلیس) ظالمانوته بدل (دالله له عبادته چي شیطان مني اورحمان نه مني) ﴿ مَّآ أَشۡهَدتُّهُمۡ خَلۡقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ ﴾ نه دي حاضر کړي ما دغه (شیاطین) پیدا کولو دآسمانونو اودځمکي ته ﴿ وَلَا خَلۡقَ أَنفُسِهِمۡ ﴾ اونه پیداینښت د ځانونو ددوی ته ﴿ وَمَا كُنتُ مُتَّخِذَ ٱلۡمُضِلِّينَ عَضُدٗا ﴾ اونه یم زه نیونکی د ګمراه کونکومټ بازو (چي په پیداکولو کي راسره مرسته وکړي نوولي یې تاسي خبره منئ) ﴿ وَيَوۡمَ يَقُولُ نَادُواْ شُرَكَآءِيَ ٱلَّذِينَ زَعَمۡتُمۡ ﴾ او (یادکړه) هغه ورځ چي وبه وایي (الله مشرکانوته) چي نارې کړئ زما شریکانوته هغه چي ګمان کاووتاسي (دخدایي ددوی) چي

---

(١) القرطبي ١٠/ ٤١٧
(٢) هغه تحقیق او څېړنه وګوره چي موږ په النبوة والانبیآء کي کړي ده چي ابلیس له ملائکو څخه نه دي ص: ١٢٨

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net



ستاسي شفاعت وکړي اوعذاب د رڅخه دفع کړي ) ﴿ فَدَعَوۡهُمۡ فَلَمۡ يَسۡتَجِيبُواْ لَهُمۡ ﴾ پس وبه بولي دوی هغوی نوځواب به دوی ته ورنکړي ( اونه به مرسته ورسره کوي) ﴿ وَجَعَلۡنَا بَيۡنَهُم مَّوۡبِقٗا ﴾ اووبه ګرزوو موږ په مينځ ددوی (عابدانواو معبودانو )کي ځای دهلاکت (دوزخ) ﴿ وَرَءَا ٱلۡمُجۡرِمُونَ ٱلنَّارَ فَظَنُّوٓاْ أَنَّهُم مُّوَاقِعُوهَا وَلَمۡ يَجِدُواْ عَنۡهَا مَصۡرِفٗا ﴾ اووبه ګوري (مجرمان مشرکان) اور (چي لمبې به وهي اوله قهره به پردوی ابشي) پس يقين به يې راشي په دې چي په تحقيق دوی لوېدونکي دي په دغه (اور ددوزخ) کي اونه مومي دوی له دغه (اوره) ځای په ځنګ کولو کېدل، ځکه هغه به له ټولو خواوو وربانډي راتاو وي اودوی به ځيني تښتېدلای نشي.

بلاغت: پدې آيتونو کي چي دبلاغت کومي ښکلاوي شته لنډ بزيې دادي:

۱- دطباق صنعت چي د ﴿ بِٱلۡغَدَوٰةِ وَٱلۡعَشِيِّ ﴾ اود ﴿ فَلۡيُؤۡمِن ﴾ او ﴿ فَلۡيَكۡفُرۡ ﴾ ترمينځ راغلی دی.

۲- پدې کلام کي چي الله تعالی فرمايي: ﴿ نِعۡمَ ٱلثَّوَابُ وَحَسُنَتۡ مُرۡتَفَقٗا ﴾ او ﴿ بِئۡسَ ٱلشَّرَابُ وَسَآءَتۡ مُرۡتَفَقًا ﴾ دلته دجنت او اورترمينځ لطيفه (بديعه) مقابله راغلې ده.

۳- مرسله مفصله تشبيه چي فرمايي: ﴿ بِمَآءٖ كَٱلۡمُهۡلِ يَشۡوِي ٱلۡوُجُوهَۚ ﴾ ځکه دتشبيه ادات اود مشابهت وجه دواړه پکي ذکر شوي دي.

۴- تمثيلي تشبيه چي الله تعالی فرمايلي دي: ﴿ وَٱضۡرِبۡ لَهُم مَّثَلٗا رَّجُلَيۡنِ جَعَلۡنَا لِأَحَدِهِمَا جَنَّتَيۡنِ ﴾ ځکه وجه دمشابهت له متعدد څخه اخيستل شوي اوهمدغه تشبيه په دې کلام کي هم شته چي ﴿ وَٱضۡرِبۡ لَهُم مَّثَلَ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا كَمَآءٍ أَنزَلۡنَٰهُ ﴾.

۵- کله چي الله تعالی فرمايي: ﴿ أَوۡ يُصۡبِحَ مَآؤُهَا غَوۡرٗا ﴾ دلته دمبالغې صنعت شتون لري ځکه چي دمصدر اطلاق يې په اسم فاعل کړی دی.

۶- دکنايې صنعت چي: ﴿ يُقَلِّبُ كَفَّيۡهِ ﴾ دغه له حسرت اوندامت څخه کنايه راغلې اوپښېمانه سړی ښی لاس په چپ باندي موښي اوټپوي يې.

۷- انکاراوتعجيب لکه چي الله تعالی فرمايي: ﴿ أَفَتَتَّخِذُونَهُۥ وَذُرِّيَّتَهُۥٓ أَوۡلِيَآءَ ﴾.

تنبيه: جمهورعلماء داسي رايه لري چي باقيات الصحات هغه پاکيزه کلمات دي چي بهتري يې ثابته ده ﴿ سبحان الله والحمد لله ولااله الا الله والله اکبر ولاحول ولاقوة الابالله العلی العظيم ﴾ اوپدې باب حديث شريف راغلی چي ږومبی ذکرشوپه ترمذي شريف کي روايت دی چي رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: زه دمعراج په شپه له ابراهيم عليه السلام سره مخامخ شوم هغه راته وويل: (ای محمده! ستاامت ته زماسلام ورسوه اوپدې يې خبرکړه چي دجنت ځمکه ډېره حاصلخېزه هواره خوندوره ده أوبه يې خوږې اونهالان يې سبحان الله والحمدلله ولااله الا الله والله اکبردي. رواه الترمذی.

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net





Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net





Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner

Bawar.net

صفوة التفاسير 3 ټوک

د نصیراحمد احمدي

لخوا سکین او pdf سو

تاریخ. ۲۳-۱۱-۱۳۹۸

واتساپ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

د دعا محتاج احمدي!

Scanned by CamScanner
Scanned with CamScanner